# اسلامي ریالیزم

# او

# مارکسیستي فلسفه



ډاکټر غلام حسین فروتن

ژباړونکي او ديجتال خپرونکی: محسن خپرندویه
mohsinpubs.blogspot.com

# لړ لیک:

# اسلامي ریالیزم
# او
# مارکسیستي فلسفه

ډاکټر غلام حسین فروتن

مور ته
سپېڅلې او زيارکښه مور
هغې مور ته چې په سجده ورته پرېوځم او پښې يې ښکلوم

# د ملګری غلام حسین فروتن ژوند لیک



ملګــری غــلام حســین فروتن پــه کال ۱۲۹۰ کــې د تهــران په یــوه بیوزله کورنۍ کــې وزیږیــده او د پلار تر مړینې وروســته یې په بیوزلۍ او نیســتۍ کــې ژوند تیر کړ. پــه خورا ســتونزو یې لومړنــۍ زده کړې په بریالیتــوب پای تــه ورســولې او په همدې ترتیب د لوړو زده کړو لپاره د مســکو لخوا فرانســې تــه ولاړ او د کیمیا پــه انجینیرۍ کــې په «ډیرې ویاړلې» درجې چې ډیر لوړه مرتبه وه خپله ډاکټري واخیســتله او بیرته تهران ته راســتون شو او په پوهنتون کې یې د ښوونکي په توګه دنده پیل کړه.

هغــه چې د محمد رضا شــاه د اختناق دوره په ټول وجــود لمس کړې وه، پــه ایــران کې د تودې ګونــد له جوړیدو دوه کاله وروســته په ۱۳۲۲ کې د هغه غړیتوب ترلاسه کړ او دا د هغه د مبارزتي ژوند پیل وو چې تر پایه خپلې لارې ته ژمن پاتې شــو. هغه چې ډیر هڅانده انســان وو په خپلو نه ســتړې کیدونکو کړنو سره په پای کې د ۱۳۲۷ کال نیمه مخفي کنګره کې د ګوند مرکزي کمیټې او اجرائیه هیئت د غړي په توګه وټاکل شو او پر ګوند د ارتجاع د فشار له امله، په مخفي شرایطو کې د ګوند چارو پر مخ وړلو لپاره یو کمیسیون جوړ شو چې

فروتن د هغې غړی وو. دا هغه مهال وو چې د ایران په سیاسي ډګر کې د توده ګوند یو له انقلابي او ډېر غړي لرونکی وو.

پـه ۱۳۲۷ کال کې پر شـاه تر یو مرګوني برید وروسـته پـه ایران کې د توده ګوند په کړنو بندیز ولګیده او فروتن هم د ښـوونکي دنده پرېښـوه او په پټه یې مبارزې ته دوام ورکړ. د شاه پوځي محاکمې هغه او د توده ګوند نور مشران په لس کال بند او وروسته په اعدام محکوم کړل. د هغوی نیولو لپاره د ارتجاع له لوري ډېرې هڅې وشـوې چې له فروتـن او بهرامي پرته د ګوند اجرائیه هیئت ټول غړي د دښمن په دام کې ولویدل. د ګوند مرکزي کمیټې د نیولو شو کسان د تیښـتې لپاره یوه کمیټه جوړه کړه چې فروتن هم د هغې غړی و. له بند څخه د تیښتې پلان د ۱۳۲۹ کال په وروستیو کې په بریالیتوب سره پلی شوه چې په نړیواله کچه د هغه وخت ټولو ورځپاڼو سرلیک یې جوړ کړی وو. دغې تیښتې د شاه رژیم وارخطا کړ او د ګوند اعتبار یې په بې‌ساری توګه لوړ کړ.

د ملګـري فروتن له سـترو ځانګړنو څخه ددې تر څنـګ چې ډېر کار او د مسـئولیت احساس یې کاوه، ډېر منظم او وخت‌پیژندونکی و چې دا ځانګړنې په ټول ژوند کې وروسره وې. د همدغو ښو ځانګړنو له امله ملګري ته د نورو دندو تر څنګ خطرناک مسـئولیتونه لکه د ګوند افسـري سـازمان، د «خلکو لیک» د ګوند مرکزي خپرندوی سردبیر مسئولیت هم ورکړل شو.

ملګری چې د مارکسیزم په فلسفه پوره برلاسی و او په مسائلو به یې تل ژور فکر کاوه او له شننې او پلټنې وروسته به پایلې ته رسیده، دا د هغه د ژوندانه د بریالیتوب ستر راز وو. هغه د توده ګوند په رهبرۍ کې یواځنی کس وو چې په دلایلو یې د ګوند غلطو سیاستونو پر وړاندې مخالفت وکړ خو هغه یو منضبط او تشـکیلاتي عنصر و نو کله به چې په اقلیت کې راغی د اکثریت خبره به یې

منله خو د وخت په تیریدو د هغه د نظر ربښتینولي په ډاکه شوه.

فروتن په کال ۱۳۳۱ کې د ګوند د رهبرۍ بیروني برخې ته د ګزارش ورکولو په موخه مسکو ته ولاړ او هلته یې له قاسمي سره د شوروي کمونیست ګوند په ۱۹ کنګره کې چې د استالین تر مشرۍ لاندې وروستۍ کنګره د ګډون ویاړ تر لاسه کړ. کله چې د ۱۳۳۲ کال کودتا کې د ګوند د مشرتابه ډیرۍ غړي ونیول شول فروتن ډیره هڅه وکړه چې بیرته ایران ته ستون شي خو چا اجازه ورنکړه او په مسکو کې پاتې شو. هغه چې د علم له زده کړې سره خورا مینه لرله د مسکو په حزبي مدرسه کې یې د فلسفې اصول او مارکسیستي اقتصاد زده کړل، د نړۍ او شوروي تاریخ څیړنه یې پیل کړه او د مسکو ټولنیزو علومو په اکاډمۍ کې د بیولوژي په څانګه کې زده کړې وکړې او د ګوندي کړنو په موخه ختیځ آلمان ته ولاړ.

د استالین له مرګ وروسته د شوروي په سیاستونو کې او وروسته د توده ګوند سیاستونو کې بدلون راغې چې د ملګري فروتن په وینا د مارکسیزم-لنینیزم او سوسیالیزم له جوهر څخه لرې والی وو. هغه د رویزیونیزم پر ضد پراخه مبارزه پیل کړه او خپل نظریات یې په لیکلې بڼه ګوند ته ورکړل او د احمد قاسمي تهراني او یوبل ملګري سره د ګوند په مشرۍ کې یواځې کسان ول چې په جدي توګه یې د ګوند غلطو سیاستونو پر وړاندې مبارزه وکړه او د مارکسیزم څخه د دفاع په سنګر کې پاتې شول چې په پایله کې د شوروي د فشارونو له امله دغه درې تنه د ګوند څخه ویستل شول.

ملګري فروتن د بل تر شا تګ له مارکسیزم سره ټکر بللو له همدې کبله له واقعیتونو څخه یې حرکت کاوه او د بنسه او بد تر منځ په توپیر کولو سره یې پایله اخیستله. هغه په ناهیلۍ له شوروي څخه چې د خیانت په لور روان وو

ووت او د چین کمونیست ګوند هغه سالم نظریات چې د روسي روزیونیزم په اړه یې لرل تایید او له هغو څخه یې دفاع وکړه. کله چې چین هم د روزیونیزم کندې ته ولویده پرته له ځنډه یې د هغې پر وړاندې مبارزه پیل کړه او وروسته یې پر مائوتســه‌دون د انورخوجــه غرض‌لرونکو بریدونو ته په خپل ځلیدونکي اثــر کــې «له مائو څخه دفاع له خلاق مارکســیزم څخه دفاع ده» ځواب ورکړ. فروتن هیڅ کله په اصولو معامله نه کوله او له خپلو نږدې ملګرو سره یې هم په اصولو بحث او خبرې کولې.

کله چې په شــوروي کې ملګري ته شــرایط ســتونزمن شول او د کی‌جی‌بي له لوري هم څارل کیده نو فروتن له ملګري قاســمي او ســغائي ســره د جعلي پاسپورټ په جوړولو لویدیځ آلمان ته ولاړل او هلته له «انقلابي سازمان» سره یوځای شول خو هلته هم د غلط سیاست او تودې ګوند ځینو غړو شتون ددې لامل شو چې دا دري ملګري له هغه ځای څخه هم بهر شي. وروسته یې د څو ځوانانو په همت د توفان مارکسیستي — لنینیستي سازمان بنسټ کیښوده او د شاه رژیم پر وړاندې یې خپلې مبارزې ته دوام ورکړ.

ملګــری فروتــن په دې باور وو چې د یو ســازمان د بریالیتــوب راز دننه په هیــواد کــې مبارزه ده او په دې برخه یې ډیر ټینــګار کاوه خو کله چې په ایران کې توفان ضربه وخوړه نو دا بحث دننه په ســازمان کې تود شــو او له سازمان څخه د فروتن د لیرې کیدو لامل شــو خو د ملګري قاســمي له مړینې وروسته د مرکزي هیئت غړي بیرته د هغه شــاوخوا راټول شــول او هغه یې د توفان د مشر په توګه وټاکه.

کلــه چې په ایران کــې د آخوندانو واک ورځ تر بلې په ډیریدو وو نو فروتن لــه لومړنیو کســانو څخه وو چې د آخوندانــو د ګواښ په اړه یې کین جنبش ته

پوهـاوی ورکاوه او ګوت‌څنډنـه يې کوله چې د هغـوی په درواغجنو ژمنو ونه غولېږي خو په هغه وخت کې چا د ملګري فروتن خبرې نشـوی درک کولای. پـه کال ۱۳۵۷ کـې د توفان‌ګوند ايران ته ولاړ او ملګـري فروتن ته هم زمينه برابره شوه چې ايران ته ولاړ شي او د ټولو ګواښونو تر څنګ يې دننه په ايران کې د ملايانو او آخوندانو پر ضد لينکې خپرولې.

ملګـری فروتـن چـې يو پيـاوړی ليکوال وو د نورو ارزښـتناکه آثـارو او د مائوتسـه‌دون د ليکنـو ژبـاړې تر څنګ يې «اسـلامي رياليزم او مارکسيسـت فلسـفه» کلـه چې پـه ايران کې اوسـيده وليکه. دغه کتاب چې پـه پټه د هيواد څخه بهر ته د چاپ لپاره ليږل کيده د مطهري، شـريعتي او سـروش جاهلانه او شـډل فکرونه او مکروب‌خپرونه په ډيرې موشيګافۍ او غور سره نقد شوی او له ديالکتيک ماترياليزم څخه پکې دفاع شـوی ده. ددې کتاب هر سـطره د هغو مبارزانو په لاس کې چې د دين او مذهب خرافاتو پر وړاندې جنګيږي يوه پياوړې وسله ده.

ملګري فروتن ته پرته له شـکه د مقاومت او ودريدنې بيلګه ويلی شـو چې په ډيرو سـتونزمنو شرايطو کې يې د مارکسـيزم بيرغ رپانده ساتلی او په کلکو قدمونـو يـې دې لارې ته دوام ورکړی او آن په ۸۰ کلنـې او له هغې څخه يې پورته عمر کې هم له مبارزې څخه لاس وانخيست. ملګري يې وايی هغه يوه ورځ مخکـې لـه مرګ څخه د «راتلونکې لار» لپاره په يـوه ليکنه کار کاوه چې لومړۍ برخه يې مخکی خپره شوی وه.

ملګري فروتن چې هيڅکله واده نه وو کړی پرته له ارزښتناکه آثارو بل هيڅ شی په ميراث ندي پاتي. د هغه مغز چې د علم او پوهې زيرمه وه تل د بيوزلو او خوارو خلکو په چوپړ کې وو. هغه کولای شـو چې په هوسـاينه او مزو کې

وخت تیر خو برعکس ټول ژوند یې په سختیو او کړاونو کې تیر شو خو خپلې لار او خلکو ته ژمن پاتې شو.

ملګری فروتن د ۱۹۹۸ کال د اګست په ۸مه په آلمان کې ومړ او د پرولتاریا له ســتر رهبر انګلس څخه په الهام اخیســتنې یې جسد وسوزاوه او ایرې یې په سمندر کې وشنیدلې.

# د ژباړونکي خبرې

دغــه کتــاب په مضمون کې چې زما د زړه د مینې او احســاس رنګ پــه کې پروت دی، د انقلاب د لارې هغو بې باکه او زړورو شــهیدانو (ســیدال ســخندان، ډاکتر فیض احمد، لهیب، عبدالاله، محسن، داود، کبیر او په سلګونو نورو پیژندل شوو او ورک نومو شهیدانو) تــه چــې دغه اثــر د هغوی د فکر او نظــر ترجماني کــوي او په ټینګ ایمــان او ارادې یې د زیارکښــانو، بزګرانو او تر ســتم لاندې ربړېدلو پرګنو د ژغورنې لپاره خپل ژوند قرباني کړی او هغو مبارزینو ته چې د هغوی د ارمان پوره کولو لپاره یې د وینې څښونکي امپریالیزم او د هغوی د تالي‌څټو مزدورانو او د ځناوروبنسټپالو په وړاندې مبارزه کوي او د شهیدانو په وینو سرې شوې لار باندې په ټینګ عزم او کلکې ارادې سره مخ په وړاندې روان دي ډالۍ کوم.

دا هــم پــه ځان پور بولــم له هغه درنو مشــرانو څخه چې زه یې د دې کتــاب ژباړنې ته وهڅولم او دهغه په کره کتنه کې یې مرسته کړې د زړه له کومي مننه وکړم.

**په درنښت**

د افق په **سره** لمن کې
سور توپان شانتې ښکارېږي
چا وې **وینه** د شهید توپاني شوې
چا وې **سور** بیرغ د کار دی چې رپېږي
زه یې هم په ننداره شوم
دا انځور مې په کې ولید
چې د وینو په توپان کې
لوړ ، څټک او توېک واړه
یو د بل خوا کې ځلیږي

# د پیل خبرې

بــې له شــکه، د ایران توده ګوند (حزب تــوده) د خپل ژوند په لومړني پړاو کې (چې جوړښت یې ۱۳۲۰ کال څخه د ۱۳۳۲ کال د زمري د ۲۸ نیټې تر کودتا پورې وخت نیســي) د مارکسیزم— لیننیزم او سوسیالیزم په پېژندګلوۍ او خپرولو کې، همدا ډول د کارګرې طبقې له نړۍلید او سازماني اصولو څخه دفاع کړې او د پام وړ ستر بریالیتوبونه یې ترلاسه کړیدي. د ایران کارګره طبقه یې په بشــپړه توګه یو موټی او د ایران د تودې ګوند تر لارښوونې لاندې راټوله کــړه، د بزګرانو پراخــې پرګنې د ایران تودې ګوند یواځې او یواځې د خپلو ګټو د ســاتونکو په توګه پېژندلې. ځوان محصلین، د ښوونځیو زده کوونکي او ګڼ شمیر روڼ آندي کسان یې په شاوخوا راټول شول. د ایران تودې ګوند په ډېر لږ وخت کې د ایران په سیاســي چاپیریال کې ځای وموند. په جرئت ســره ویلای شــو چې یو دوه نســلونه د ایران د تودې ګوند په ښــوونځي کې د مارکسیزم تر زده کړې لاندې او د انټرناســیونالیزم پرولتري په روحیه یې وروزل. شــوروي اتحــاد د سوســیالیزم د څانګو په توګه په اجتماعــي، اقتصادي، فني، پوځي او کلتوري برخو کې د هغوی سترې لاسته راوړنې د فاشیستو دښمنانو پر وړاندې د هغوی ځلانده بریالیتوبونه، همدا ډول د نړیوال پیاوړي کمونیستي غورځنګ او کمینټرن (دریم نړیوال کمونیســت سازمان) د ایران د تودې ګوند په بریا کې ستر نقش درلود. هر هغه څه چې په دې اړه یې بنسټیز او اصولي اهمیت درلود هغــه د کارګــرې طبقې د نړۍ لید د لا زیاتې پراختیا لپاره، د ګوند کوښــښ او پاملرنه وه.

دغه اندیشه او فکر چې د تودې ګوند په لومړي سر کې د یو ملي ګوند په توګه جوړښــت وموند او وروسته «شــیطانانو» دهغه ملي ماهیت په کارګري ماهیت بــدل کــړ، له بیخ او بنیاد څخه ناســم دی. دغه انګیرنه په دې بنســټ رامنځته کېږي چې یو شمیر کسان لکه سلیمان، محسن، نورالدین الموتې او ځینې نور چې نه یوازې په ګوند کې یې غړیتوب درلود بلکې د ګوند لارښوونکي شمیرل کېــدل. خــو هغه څه چې د ګوند ماهیت ټاکــي، هغه په ګوند کې د هغه او یا د دغه د لوړ شخصیت غړیتوب ندی او که څه هم په لوړو مقاماتو کې یې ځای نیولی وي. د ایران د تودې ګوند د ماهیت ټاکونکې له هماغه پیل څخه په ګوند کې د کارګرې طبقې د ایډیالوژي حاکمیت و، چې هیڅوک د هغې پر وړاندې ونه درید او نه ودریدلای شول.

د کارګرانو، بزګرانو او نورو زیار ایستونکو په منځ کې د ایران د تودې ګوند نفــوذ او د ځوانانــو په منځ کې د کارګرې طبقــې نړۍلید نفوذ د امپریالیزم او د هغــه لاســپوڅې حاکمه طبقه په ویره کې واچوله، نــو ځکه یې د ایران د تودې ګوند سازمانونه په درنو ګوزارونو وځپل او د هغوی فعالیتونه یې په ټپه ودرول، د رهبرۍ ګڼ شمیر غړي او ګوندي کادرونه اړ کړای شول چې د شوروي اتحاد هیــواد او ختیځــې اروپا ته مهاجرت وکړي. د ایران د تودې ګوند د ژوند دویم پړاو له همدې وخت څخه پیل کېږي چې له کوم شــک پرته د شــوروي اتحاد پورې د تړلتیا دوره وه. په دې پړاوکې شوروي اتحاد په خپله د پانګوالې په لور تګ پیل کړی و، دا دوره په تئوري او عمل کې یوه رویزیونیستي دوره وه، چې پایله یې همدا اوس زموږ د ســترګو پر وړاندې بریښــي، ځومره ناوړه او ناپاکه پایله!

د مارکســیزم پر وړاندې په ځانګړې توګه د مارکسیســت فلسفې پر وړاندې

ایډیولوژیکـه مبـارزه د روحانیت او توحیدي نړۍلید پیروانو لخوا پیل شـوه. کولای شو مطهري او شریعتي څخه د دې مبارزې د پیژندل شویو او مخکښو شخصیتونو په توګه نوم واخلو. د دې مبارزې مجسم کېدل په څو ټوکه کتابونو کـې لکـه «اصول فلسـفه و روش ریالیـزم» ترعنوان لاندې تر سـترګو کېږي. مطهری د هغه لیکل او یادداښـت اخیسـتل پر غاړه اخیسـتي دي، چې ځینې یـې د کتـاب د څپرکو پـه ډول راغلي دي. د پام وړ خـو داده چې د دې کتاب یادداښتونه د اصلي متن څخه څو برابره ډېر دي، د همدې یادداښتونو په لړ کې د کلاسیکې او اسلامي فلسفې د ماتو او ګوډو توکو په راټولولو د مارکسیست فلسـفې سره د جګړې لپاره را مخې ته شـوی دی. داسې جګړه چې موخه یې باید د مارکسیزم له دام او لومې ځینی د ځوانانو خلاصون او «اسلامي فلسفې» یا «الهي حکمت» ته د هغوی رابلل وي، هغه د کتاب د لومړني ټوک په سریزه کې داسې لیکلي دي:

«په دې کتاب کې کوښښ شویدی چې د ماتریالیزم ډیالکټیک ټول انحرافات په ښـکاره توګـه بربنډ شـي.... باید ووایو چـې موږ د دې فلسـفي او منطقي ارزښـت په پام کې ندی نیولی، ځکه چې د ماتریالیزم او ډیالکټیک په هکله له اندازې زیات نشـرات او خپرونې په هیواد کې خپري شـوې دي، د ګڼ شمیر ځوانانو افکار یې ځانته اړولي، ښایی یو شمیر به وي چې واقعاً په دې یې باور کړی وي چې ماتریالیزم ډیالکټیک تر ټولو غوره فلسفي سیستم دی، د علومو مسـتقیمه او له هغه ځینې نه بیلیدونکې لاسته راوړنه ده، د حکمت الهی دوره تیره شـوی، نو لازمه ده د دې رسالاتو ټول فلسفي او منطقي محتویات تجزیه او تحلیل شـي، ترڅو دهغوی واقعي ارزښـت په ښـه ډول واضح کړای شي».

(«اصول فلسفه و روش ریالیزم»، لومړي ټوک ۳۱مخ)

پــه دې ډول د دې کتــاب د ليکلو موخه داده، کومې ليکنې چې د ماترياليزم ډيالکټيک په هکله ليکل شويدي، د هغه ټول «منطقي او فلسفي محتويات» تر غور لاندې ونيول شي، ترڅو د «ماترياليزم ډيالکټيک ټول انحرافات» په ډاګه شي او د هغه «واقعي ارزښت په ښه ډول واضح شي».

پداســې حال کې چې د هغه فلســفي او منطقي ارزښت يې په پام کې نيولی نــدی، نو په څه ډول امکان لــري چې د ماترياليزم ډيالکټيک ټول انحرافات په ډاګه کړي او د هغه منطقي او فلســفي محتويات تر زره بين لاندې ونيســي کله چې د هغه منطقي او فلسفي ارزښت په پام کې ونه ساتي؟

د دويم ټوک په ســريزه کې وايې: «نه ښــايی چې د مارکســيزم فلسفې د رد کولو لپاره په دومره ډېر زحمت سره لار هواره کړو، کافي ده چې د جنګ ډګر ونيســو او «جادو» ځينې کارواخلو، ترڅو مارکسيستي فلسفه په يو وار لوګی او په هوا شي.»

که چېرې همداســې وي نو د ټولو رســالاتو او ليکنو د محتوياتو فلسفي او منطقــي څېړنو ته څه اړتيا ده؟ او ولې د کتاب موخه «له مارکسيســتي تبليغاتو ځينې د ځوانانو خلاصون» معرفي کېږي کله چې موخه دومره کوچنۍ ده؟

د توحيدي نړۍ ليد او د مذهب پيروانو پر وړاندې مارکسيزم او مارکسيستي فلســفه يــو جدي ګــواښ دی بايد ډېر ژر پــه اغيزناکه توګه د هغــې د له منځه وړلو لپاره لاس په کار شــي. د «اصول فلســفه و روش رياليزم» د کتاب ليکلو موخه د مارکسيســت فلســفې ردول دي که څه هم د کتــاب د ليکونکي اصلي موخه د اسلامي او الهي فلسفې تشريح په ډاګه شويده. په دې وروستيو کې يو بــل روحاني د حجتي کرماني په نوم د «متد ډيالکټيک مارکسيســتي» تر عنوان لاندې يو کتاب خپور کړی چې خپل تير شــوي پخواني کوښښونه يې مخې ته

اچولي دي.

له هغه وخته چې مارکسـیزم په ډګر کـې د خپل موجودیت ګام پورته کړی تراوسـه (۱۵۰) کلونه په چټکۍ سـره تیر شـوي او له هغه سره سم جګړه هم پیل شـویده. بورژوازي چـې د مارکس عقاید او اندونه د خپـل ورکاوي لپاره سـتر ګواښ احساسوي، مارکسـیزم سره له سیاسي او ایډیولوژیک اړخه خپلې مبـارزې ته پـه عملي پړاونو کې ځای ورکړی. نـږدې ۱۵۰ کلونه کیږی چې د بورژوازي ټول ایډیولوګ او تبلیغاتي رسـنیو خپلې هڅې د مارکسـیزم د ردولو لپاره رواني کړی دي، چې د مارکسیزم یوه ګوښه او څنډه هم د هغوی له نیوکو په امان کې پاتې شوې نده چه «رد» نه وي. خو مارکسیزم اوس هم د یو سترې ډبرې په شـان پخپل ځای ټینګ ولاړ دی، داسـې ډبره چې ډېرو تیزو بادونو او بارانونو ورله زیان ندی رسولی، په ټینګ باور ویلای شو چې زیان ورله رسولی نشي.

ښـکاره ده چې شـیعه روحانیت او د توحیدي نړۍلید نور لارویان لومړني کسـان ندي چې د مارکسـیزم د «رد» لپاره یې ملا تړلې په یقین سـره دا به هم اخرین نه اوسي.

همدارنګه د لویدیځ هیوادونو د نیوکې کوونکو او د اسلام د لارویانو ترمنځ یو سـتر توپیر شـتون لري هغه دا چې په لویدیځ کې د نیوکې موضوع د هغوی د پـوره پیژندنې په بنسـټ تر نیوکـې لاندې نیول کیږي، حال دا چې اسـلامي نیوکه کوونکي په مارکسیزم او د مارکسیست په فلسفې نیوکه کوي او هغه «رد» کوي، پرته له دې چې مارکسـیزم او مارکسیسـتي فلسـفه وپیژني او وربانديې پوه شـي. د «اصول فلسفه او روش ریالیزم» د کتاب «حاشیه لیکونکي» د دې لپاره چې ځان د مارکسیسـتي اثارو د لوسـت او کتنې له زحمت څخه ګوښـه

کړي، په دې پلمه استناد کوي «ډاکټر اراني په خپل مشهور او پیژندل شوي اثر کې چې د فارسي ژبې او ادبیاتو په څنګ کې عربي ژبې سره هم اشنایي لري، ماتریالیزم ډیالکټیک ته یې له مارکس، انګلس، لینن او نورو څخه ښه بڼه ورکړیده:

سره لدی چه نږدې پنځلس کاله د ارانی له مړینې څخه تیریږي په ایران کې تراوسه د ماتریالیسم ډیالکټیک پلویان ندی توانیدلی ترهغه غوره لیکنه وکړی. داکتر ارانی د فارسی ادبیاتو ترڅنګ عربی سره هم بلدتیا درلوده ماتریالیزم ډیالکټیک ته یې له مارکس، انګلس، لینن او نورو څخه ښه بڼه ورکړیده،

لدې کبله دهغه فلسفي کتابونه د خپلو تیرو کسانو له فلسفي کتابونو څینې غوره والی لري» (لمړی ټوک ۳۲مخ)

کاش د ډاکټر اراني فلسفي کتابونه یې په ژوره توګه تر لوست لاندې نیولي وای او له هغوی سره سرسري چلند نه وای شوی. که څه هم د ایران کمونستان د ډاکټر اراني درناوی کوي او د هغه اثارو ته ارزښت ورکوي، خو هیڅکله دغه باطله او ناروا دعوی نه مني چې ګواکې د ډاکټر ارانی فلسفي اثار د مارکسیزم بنسټ ایښودونکي او د نورو څخه یې ډېر د مارکسیست فلسفې ته ښه بڼه او څیره ورکړې ده.

مارکسیستي ډیالکټیک علم دی، هغه باید په ژوره توګه زده او جذب شي. د ډیالکټیک مارکسیستي پوهه او درک لږ او ډېر د عصري علومو پیژندګلوي ته اړتیا لري، ځکه چې علوم د هغه بنسټ او بنیاد جوړوي. مطهري په حیرانونکې توګه ټینګار کوي او د لجاجت تر پولې وړاندې ځي، وایې چې ماتریالیزم ډیالکټیک علومو سره هیڅ اړیکې نلري:

«ماتریالیزم ډیالکټیک د خپلو پلویانو د ادعاګانو سربیره بیا هم علومو سره

اړیکــه نلــري، د هغه ټــول اصول یو ډول اړول شــوي تحریفات او شــخصي استنباط دي چې یو شمیر کسانو د خپل ذوق سره برابر کړیدي»(لومړی ټوک ۲۸ مخ)

د مارکسیست فلسفې په هکله همدغه ارزیابي د دې حقیقت د ښکاره کولو لپاره پوره ده چې د کتاب «حاشیه لیکونکی» نه له مارکسیزم او نه هم له علومو څخه هیڅ درک او پوهه نلري. معلومه نده کومه فلســفه چې د هغې اصول «یو ډول تحریفات او شــخصي اســتنباط دی چې یو شــمیر کسانو د خپل ذوق له مخــې برابر کړیدی» څرنګه کولای شــي د ۱۵۰ کلونــو په موده کې د علومو او فلســفي پوهانو د بریدونو او نیوکو پر وړاندې پیاوړی پاتې شــي؟ همدا ډول په ایران کې د ډاکټر شــریعتي د اعتراف له مخي مارکس د دې فلســفې راوړونکي د هر ځوان په زړه کې ځای نیولی او خپلو مخالفینو سره په جګړه کې دي او په دې جګړه کې بریالیتوب هم د مارکس په برخه دی.

د «اصول فلســفه و روش ریالیزم» کتــاب یوائې په دې هڅه کې ندی چې په مارکسیست فلسفې نیوکه وکړي او هغه دړې وړې کړي بلکې غواړي چې د مارکســیزم او مارکسیست فلسفې پرځای «الهي فلسفه» د ځوانانو او روڼ اندو په مغزونو کې ځای پرځای شــي او په ځانګړي توګه د الهي فلســفي ارزښــت چې مخکښــان یې اســلامي پوهان دي هڅه کوي، ترڅو مادي فلسفه په خپلو تبلیغاتو کې پای ته رسیدلې دوره معرفي کړي.

خو دا کتاب داســې کتاب ندی چې وکولای شــي د مارکسیســت فلســفې پــر وړاندې ځــان اوچت کړي او ځوانان ځانته راکش کــړي، په ځانګړې توګه هغوی د «الهي فلســفې» په صحت او د مارکسیســت فلســفې په «رد» باورمند کړي ځکه چې:

۱- د علومو په دې کتاب «ریالیزم تګلاره او فلسـفي اصول» کې هیڅ علم ته لار نده ورکړل شـوې، چې هیڅ کله هـم په کتاب کې په هغو لومړنیو علمي حقیقتونو چې هیڅ څوک حتی هغه پوهان چې په میتافزیک «ماوراء طبیعت» پوره باوري دي شک نلري، خو دوی پرې انکار کوي، یا یې په بل ډول وړاندې کوي. اوس په دې هکله چې ونه (ونه د یو فرد) په توګه یو ژوندی موجود دی او هیڅـوک د هغـه خلاف خبره نکوي دا یو حقیقـت دی هر زده کوونکی یې زده کوي خو د «اصول فلسفه و روش ریالیزم» کتاب کې ونه د مړو موجوداتو پـه ټولګـي کې د جماداتـو په کتار کې ځـای لري. مطهري دغه سـتره تیروتنه پخپلـې توضیحي لیکنـې کې ظاهراً اصلاح کړې، خو پـه خپله یې یوه بله غټه تیروتنه پر هغې زیاته کړې.

هغه له یوې خوا ژوندي موجودات یواځې په دوه ډلو ویشي، حیوان او غیر حیـوان. دوی فکـر کوي چې د موجوداتو لیکه کـول (څیړل) کوم چې پوهانو د تاریخ په اوږدو کې تر لاس لاندې نیولي، کېدای شـي هر څوک یې د خپلې خوښـې او ارادې سـره سم په بل ډول اړولی شي. د موجوداتو لیکه کول یا رده بنـدي عیني خویونه او خصلتونه لري، که چېرې داسـې وي، چې ذهنیت ته د عینیت ځای ورکړو، هر څه ویجاړیږي. څه اړتیا ده چې د علمي حقیقت ځای یوې سترې تېروتنې ته ورکړو، د دې کار موخه او منظور څه دی؟

له بل پلوه مطهري حیوان داسې راپیژني:

«د حیوان کلمه هغه موجوداتو ته ویل کیږي چې په (طبیعت) کې د شعور، تشـخیص او تر تشـخیص د مخه د حرکت او ارادې لرونکی وي»(دویم ټوک ۱۶۸مخ)

کوم دي هغه پوهان چې حیوان په دې ډول تعریفوي؟ دغه تعریف په مطلق

ډول له عصري علومو او د «پخوانيو» فکرونو او نظرونو څخه د هغه بې خبري او بې باوري په ګوته کوي. په دې تعريف سره خر او غوايي چې د شعور نه لرلو له پلوه د خاص او عام پر وړاندې شهرت لري، د حيوان په مفهوم کې ځای نشي نيولای، د وريښمو چينجي او مچ چې ټول يې د حيوان په توګه په رسميت پيژني د غير حيوان په توګه رامخې ته کيږي. «پخوانيو» ښايي دا ډول ګډې وډې او لاطائلات سره پيوند کړي وي، خو اوسنۍ نړۍ دا ډول پخواني د تاريخ کندې ته سپاري.

په بل ځای کې بله تيروتنه راپورته کيږي:

«د علم الحيات پوهان په خپلو کتنو او مطالعاتو کې دې پايلې ته رسيدلي چې ژوندي موجودات په يو ډول دايمي هڅه کې دي، چې دغه هڅه تل د ګټو راکښلو او له زيان څخنې تيښتې کولو ته متوجه ده, هر کوښښ او فعاليت چې له يو ژوندي موجود څخه رامنځته کيږي، په هغه کې يوه غوښتنه او منظور پټ پروت دی او هغه منظور له منابعو څخه د ګټې او فايدې ترلاسه کول د ګواښونو او د تاوانونو له خطر څخه د ځان ژغورل دي. نو له همدې کبله د ژونديو موجوداتو د ټولو فعاليتونو اصلي محور خپل ژوند ته دوام او بشپړتيا ورکول دي. دغه اصل يعنې ژوند ته د دوام ورکولو او بشپړولو لپاره هڅه د بقا د اصل په نوم هم يادېږي. دغه اصل يو له هغه اصولو څخه دی چې ډاروين پخپلو مشهورو او پيژندل شويو نظرياتو کې راټول کړی، د انواعو په بدلون او تکامل کې يې په هغوی ډېره لګولې ده»(دويم ټوک ۱۴۰ مخ)

د دې بيان او لومړني بيان ترمنځ تضاد دومره ښکاره او روښانه دی لکه اغزي چې په سترګو کې چخيږي. که چېرې دا صحيح وي چې د ګټې او تاوان تشخيص، د ګټو ترلاسه کول او له تاوان څخه تيښته، شعور او تشخيص او

ارادي پـورې اړين یا لازمــي وي او د ژوندي موجود په حیاتي کړو او وړو کې منظـور او مقصــود پروت وي، په دې صورت کې د مطهري په پورتني تعریف کــې چې د حیوان په اړه یې کړیــدی او ژوندي موجوداتو ته یې تعمیم ورکړی چــې یو شــمیر «غیر حیوان» لکــه بوټي او ګیاه هم په کــې راځي. په دې ځای کــې د حیوان او بوټو ترمنځ توپیــر د منځه ځي. د حیوان په اړه د مطهري او د پخوانیو«قدما» تعریف په هوا کې پاتې کیږي.

که چیرې ډاکټر شــریعتي د نړۍ لپاره شــعور، اراده او موخه مني، مطهري ژوندي موجودات د شــعور، ارادي او هدف څښــتنان مني. په دې صورت کې بایــد ومنل شــي چې د نري رنځ مکروبونه (چې هیــڅ پوه او عالم د مکروبونو په ژوندیتوب باندې شــک او تردید نلري) په انســان حمله کوي او هغه په نري رنځ اخته کوي، هغوی دغه کار د شــعور او ارادي له مخې ســرته رسوي، دغه کار باید د هغوی د پخواني تشــخیص له مخې چې د کوم انســان په ســینه کې ځــای ونیســي ومني. همــدا ډول باید ومنو چې د وریښــمو چینجــي په څیر د حشــراتو پیله اوبدل د دغو ژوندي موجوداتو د شــعور، ارادې او تشــخیص له مخې صورت نیســي او د پیلې اوبدلو موخه یې انســانانو ته د وریښــمو سپارل دي. باید ومنو چې لیوان (شرمښــان) د شــعور له مخې میږې او پسونه داړي، نه دا چې لوږه هغوی دې کار ته اړباســي او د رمې په منځ کې تشــخیصوي چې کوم بدمرغه د خپلې لوږې قرباني کړي.

تر ټولو ناوړه دا چې بې ځایه راوړل شوې خبرې ته چې د یو اصل په توګه د «ډاروین په پیژندل شــوي نظریې کې» ورته ځای ورکوي، چې په خپله ډاروین له هغې څخه بې خبره دی. د «تنازع بقا» او «بقا اصلح» اصل، له کوم سره چې مطهري ورته ځای ورکړی، هیڅ کومه یوه شــریکه اړیکه نه لري. هغه څه چې

اســلامي فلســفه هغه ته علم وایي، بلکې علم ندی، دهغه بدل دی په هغه کې درغلي او تحریف دی، هغوی د دې پروا نکوي چې خلک په غلطه او ناســمه لار کابږي. اصــولاً علم او دین له یو او بل ســره هیڅ اړیکه نلري، په کوم ځای کې چې علم ســر پورته کوي هلته دین خپل سنګرونه دلاسه ورکوي. د ژوندیو موجوداتــو د تکامــل تئوري چې په اســنادو، مدارکو او انکار نــه منونکو ژورو څیړنو باندې ولاړه ده، په خپله د پیدایښــت (افرینش) له تیوري څخه ښــکاره انــکار دی، کــه څه هم ډاروین په خپل زړه کې په بل ډول فکر وکړي. دا به بې ځایه نه وي، چې شیعه روحانیت اوس هم د هغه له منلو سر غړوي.

۲- د «ریالیزم تګلاره او فلســفي اصــول» د ډېرو تضادونو او عیبونو څخه ډک دی، پــه یــو ځای کې له حکمونــو څخه خبرې کوي او پــه بل ځای کې په اســانۍ ســره د هغه متناقض حکم راوړل کیږي. پام وکړئ: آیا شونې ده چې د انسان حس تیروتنه وکړي یا دا چې حس هیڅکله هم تیروتنه نکوي، په کتاب کې دواړه خواوې تایېد شویدي، د حیرانتیا خبره خو داده چې د دې نظر ښکاره کوونکي هغه څوک دي چې پرته له شک څخه د «امتناع تناقض» په اصل هم بــاور لــري. «په تجربي علومو د بې باورتوب په اړه بل دلیل هم راوړل شــوی او هغه دا چې تجربي علوم بالاخره په محسوساتو پای ته رسیږي او حس هم تیروتنه کوي». [۶] (لمړی ټوک ۱۴۴ مخ)

«حــس پــه خپله تیروتنه نکــوي، کله چې پــه ځینو مواردو کــې ویل کیږي چــې حــس تیروتنه کړیده، پــه واقعیت کې دحــس تیروتنه (مجرد احســاس) نده.» [۷] (هماغلته ۱۶۷ مخ)

له دغه دواړو متضادو اړخونو څخه د لیکونکې لخوا کوم یو د منلو وړ دی؟ یا د دغې بلې بیلګې له مخې:

د اسلامي فلسفې پربنسټ سوچونه (افکار) او ادراک د شمول په دايره کې بدلون نه مومي، لدې کبله بدلون منونکی ندی.

«د مــادې عمومي خويونه او خواص له هغې جملې څخه ادراکات د بدلون خاصيت نلري. ســره لدې امکان لري چې د انسان مغز له خپلو ټولو محتوياتو ســره د عمر په اوږدو کې څو ځله بدليږي؟؟» (دغه امکان څومره له مانا ډک دی) چــې«د شــخص ســوچونه او افکارپه دغه ټول وخت کــې ثابت او پخپل ځای پاتې شي»[۸](لمړی ټوک ۱۷۳ مخ)

کــه چېرې ادراکات او افکار د بدلون خاصيت نلري د شــخص افکار بايد اصولاْ د ټول عمر په اوږدو کې ثابت پاتې شــي. خو کله چې د امکان موضوع منځته راځي «(امکان لري)» دغه حکم خپل صحت دلاســه ورکوي او دا پايله په لاس راځي چې افکار او ادراکات هم امکان لري بدلون ســره مخامخ شــي. خو دغه نظريه چې افکار او ادراکات د بدلون خاصيت نلري دومره له واقعيت ســره په ټکر او تناقض کې لويږي چې په هيڅ منطق سره نشو کولای په چاپې ومنو. همدا ســبب دی چې وروســته د مطالبو له بيان څخه چې موضوع ســره هيڅ اړيکه نلري، په پای کې زياتوي:

«لمړی لدې کبله چې حقيقتونه غير مادي دي بدلون نکوي، دويم که چېرې بيا هم (فرضاً) بدلون وکړي نو ټول افراد به په هغه کې يو ډول وي»

وينو چې په ناڅاپي توګه د «حقيقتونو» کلمه د افکارو او ادراک ځای نيسي، آيــا کولای شــو چې د «افــکارو او ادراک» او حقيقتونو په منځ کې د مســاوي علامه کيږدو؟. ولې بايد فلسفي مفاهيم او مقولات مجهول او مخدوش کړو؟ هو ځينې حقيقتونه شتون لري چې مطلق، بدلون نه منونکي او تل پاتې دي: خمينــي پــه ۱۳۶۸ کال د جــوزا په ۱۴ نيټه له ژوند ســره مخه‌ښــه وکړه يو

«مطلق او تل پاتی حقیقت دی» یا په صفر سرعت کې د جسم کتله ثابته پاتې وي، یـو مطلـق او ابدي حقیقت دی، خو آیا ټـول افکار او ادراکات دغه ډول حقیقتونه دي؟

د «اصـول فلسـفه» کتاب په هماغه حال کې چې افـکار او ادراکات بدلون منونکـی نه بولي، له یوې فرضیې څخه بلـی فرضیې ته اوړي او را اوړي او په هغـې ډډه لګوي، وایی چې فرضیه یو احتمالي حقیقت دی، نو ځکه لنډ مهاله ده. خو فرضیه که څه هم احتمالي وي، آیا د افکارو او ادراکاتو یوه برخه نده؟

کـه چېـرې افـکار او ادراکات (په دې ځـای کې د هغـوی احتمالیتوب یا یقینیتـوب څخه کومـه خبره په منځ کې نشـته) د «بدلون خاصیـت نلري» نو څرنګه کېدای شي چې فرضیه یې کولای شـي، بدلون ومومي او نوې فرضیه د هغې ځای ونیسـي؟ البته دا ټول کلماتو سـره لوبې کول دي او د کلمې ترشا تضـاد او تناقـض په سـترګو کېږي. په یو ځـای کې افـکار او ادراکات بدلون منونکـي نـدي او په بل ځای کې فرضیه (چې هغـه هم افکار او ادراکات دي) بدلون سره مخامخ کېږي.

بله دا چې د اسـلامي فلسـفې له مخې تجربوي علوم یقیني ندي، خو: «په دېکې خنډ نشـته که چېرې یوه فرضیه یا تیوري په یو شـمیر تجربو کې تطبیق او پلي شـي، تر هغه چې د هغې خلاف نور څه ثابت شـوي نه اوسـي، کولای شـو هغه د یو علمي قانون په توګه فرض کړو، البته هر وخت که چېرې د هغې پرځای بله فرضیه منځته راشـي او له نورو زیاتو تجربو سـره سمون ولري، نو هغه به د یو علمي حقیقت په توګه وپیژنو.»[۹]

علمـي قانون او علمـي حقیقت یقیني دی او که احتمالي؟ که چېرې یقیني وي ښکاره ده چې تجربه کولای شي احتمال په یقین بدل کړي، په دې صورت

کــې دغــه خبــرې چې تجربي علــوم يقيني ندي، بــې بنســته دي او که چېرې احتمالــي وي، په هغه صورت کې د فرضيــې د علمي قانون او علمي حقيقت ترمنــځ څه ډول تفاوت او توپيــر ومنو؟ کله چې يوه فرضيه احتمالی وي او په زياتو تجربو کې تطبيق شي، اسلامي فلسفه ولې هغه يو علمي حقيقت بولي؟ کــه چېرې فرضيه او علمي حقيقــت دواړه احتمالي وي، کوم معيارونه هغوی يو له بل څخه جلا کوي چې اسلامي فلسفه يوه فرضيه او بل علمي حقيقت، علمــي قانــون او تيوري بولــي؟ آيا د جاذبې قانون چــې د ډېروعلمي تجربو له مخې يې بنســټ اينښودل شــوی يقيني خبره نده؟ آيا د منديليف دوراني جدول چــې ډېرو علمي تجربو د هغه صحــت ثابت کړی يقيني ندی؟ په دې صورت کې بايد پوښــتنه وکړو چې يقيني څه شی دی او څه معنی لري؟ «بيا هم» په يو ځــای کې تجربي علــوم يقيني ندي او په بل ځای کــې تجربه له احتمال څخه يقين جوړوي.

۳- د کتــاب د ليکنې طريقه پداســې ډول ده چــې د مطلبونو درک او پوهه د لوســتونکو لپاره ســتونزمنه کوي، کلمات او عبارتونه چې په هغه کې کارول شــوي، ډېر پيچلي او نه پيژندل شــوي کلمات دي، په زحمت او ســختي سره د درک وړ ګرځي او لوســتل يې ســتومانه کوونکی کار دی. دې عبارت چې د ليکنې بڼه يې په ګوته کوي پام وکړئ:

«موږ د تور او ســپين بنسټيزې جوړې ته رسيږو، يعنې تور او سپين چې هر څــه دي(په خپل ذات کــې) په هغه ډول دي چې زموږ پر وړاندې بريښــي، نه هغه څه چې سوفســطي يا قائلين يې د ارواو په توګه په ذهني وجود کې ويني. هغوی وايی تور او ســپين چې زموږ پر وړاندی بريښــي دواړه يو شان دي. خو د دې دوه خبرو په منځ کې غټ توپير موجود دی.»[۱۰]

د کتاب لوستلو څخه کېدای شي په ډېر زحمت د اسلامي فلسفې اساسي ټکي پیدا شي، کتاب یو سرسام (مننژیت) ناروغته ورته والي لري چې په هغه کې له هرې دروازې اپلتې را پورته کېږي. د اسلامي فلسفې مطالب د ډېرو پیچلو پردو په منځ کې درک کېږي. په فلسفې او له هغې ټولګې په کلاسیکې فلسفې کې هر مفهوم په فلسفي اصطلاح کې باید ځانګړی ځای ولري او په خپل ځای کې وکارول شي، هغه څه چې په دې کتاب کې له نظره لویدلي، همدغه ټکي دي. په ټینګ باور سره ویلای شو چې دغه کتاب هغې موخې ته چې دوی ځانته ټاکلي، رسیدای نشي.

د سلواغې (دلو) تر انقلاب وروسته ګڼ شمیر سازمانونو د مارکسیزم تر نوم لاندې په فعالیت بوخت شول. د «اصول فلسفه و روش ریالیزم» کتاب په پراخه کچه چاپ او خپور شو، د مطهري درې ټوکونو دفترونو لخوا د «مارکس او مارکسیزم» تر عنوان لاندې ګڼ شمیر کتابونه او رسالې چاپ کړې، چې وروسته یې د خپریدو مخه ونیول شوه، د ډاکټر شریعتي اثار آن دا چې ثبت شوې غبرېزې برنامې، د ګڼ شمیر خلکو واک کې ورکړل شول. د ۱۳۶۱ او ۱۳۶۲ کلونو په منځ کې هم د مارکسیزم فلسفې د «رد» او د اسلامي ریالیزم د دفاع په هکله د تهران ورځپاڼو هم ګڼ شمیر مقالې خپرې کړې. زه د دې اثارو په لوستلو چې بې ځایه او ناروا بریدونه یې په مارکسیزم او مارکسیست فلسفې کړې وې، اړشوم چې د کارګرې طبقې نړۍلید څخه د دفاع په څنګ کې یو سلسله مسایل، مفاهیم او د مارکسیست فلسفې مقولات د خپل وس او توان په کچه توضیح کړم او د دې ترڅنګ هغه ګڼ شمیر تحریفات چې د ناپوهۍ او د مارکسیست فلسفې له درک څخه د بې وسۍ له مخې د اسلامي فلسفې د مبلغانو په اثارو کې راغلي، بې ځوابه پاتې نشي او دا په ډاګه کړم چې

اســلامي فلســفه تر کومې اندازې په تناقضاتو او تضادونو کې خپله لاره ورکه کړې ده. اصولاً دغه فلسفه تضادونه او تناقضات له ځان سره لري. دغه کتاب چې د دې هڅې زيږنده ده، د همدې شــپيتمې لســيزې په لومړنيو کلونو کې په ايــران کې ليکل شــوی و چې له نيکه‌مرغه اوس يې د چــاپ او خپريدو امکان ترلاسه کړ.

اســلامي فلســفه تېرو وختو پورې اړه لري ډېرو ليرې پخوانيو دورو پورې، په هغه دوران کې چې نوی علوم زيږيدلي نه وه او بنســټونه يې هم ټينګ شوی نه وه، په دې دوره کې واکمنه فلســفه د کليســا فلســفه او په اسلامي هيوادونو کې اســلامي فلســفه وه. بنــايي هلته او دلته د واکمن تفکر په وړاندې غبرونه پورته شــوی وی، خو انګازی يې نه درلودي او نه يې درلودای شــوی. کله چې طبعی علومو پرمختګ پيل کړ او په چټکې سره پر مخ ولاړل، په ځانګړی توګه هغــه وخت چې طبعی علومو د شــيانو او پديدو تــر منځ اړيکې او ترلتيا ثبوت ته ورســوله. کله چې د مارکســيزم پيدايښــت سره ســم ټولنه او د هغې بدلون ځانتــه د علم بڼه غوره کــړه، کله چې علوم د طبيعت او ټولنې د پيژندنی په اړه په ســترو لاســته راوړنو بريالي شــول او د رواني پيړۍ په دويمی نيمايی کې د طبيعت په پيژندنی کې اوچت ګامونه پورته شول او پورته کيږی. هوکې پداسې دوران کې فلسفه نشی کولای چې پدغه ټولو لاسته راوړنو سترګی پټې کړی او نــړۍ له علوموڅخه جــلا ووينی او په تخيلي ډول يې بيان کړی او تر دی بدتر پــه علمي دود او علمی څيړنو د بطلان قلم کش کړی يا علمی حقيقتونه په بله بڼه وښايی.

مارکسيستي فلسفه يواځنی فلسفه ده چې د ايدياليزم او متافزيک پېټی يی د نړۍ د واقعی پيژندګلوی له اوږي څخه کښــته کړ. ماترياليزم ته يې ډيالکټيکي

خصلت ورکړ، ټولنيز پراتيک او د هغه اهميت د مادی نړۍ د پيژندنی لپاره په ګوته کړ، مارکسيستي فلسفه د طبيعت او ټولنې د بدلون او بدلون لپاره د پيژندنې غوره وسيله ده او په ورته وخت کې پيژندنې (شناخت) او بدلون ته لاربښوونه کوی. مارکسيستي فلسفه يواځنې فلسفه ده چې د بهرنيو واقعيتونو بدلون او د انسان په مغز کې د هغه د آزانګه (بازتاب) له قوانينو سره بشپړ سمون او انطباق لري، طبيعت د مارکسيست فلسفی د تلا ډبره (محک) ده. دغه ويناوی له تعصب څخه نه راپورته کيږی بلکې حقيقت سره تړاؤ لري، مارکسيزم يو حقيقت دی، حقيقت تعصب ته اړتيا نلري.

آيا مارکسيزم څخه دفاع - جوته ده چې زه مارکسيزم يواځې مارکس او انګلس پوری محدود نکړم. د هغه وروستنی تکامل چې د انقلابی پوهانو پواسطه لکه لنين، مائوتسه دون او نور هم په پام کې لرم پداسې شرايطو کې چې د مارکسيزم او سوسياليزم په ضد د تبليغاتو ستري څپې هر کس او هر څه له ځان سره وړی، پداسې وخت کې چې (بورژوازی) دموکراسي او د ټاکنو آزادي د يو بت په بڼه لمانځي او ټول د هغه په وړاندی په سجده پريوځی يو عبث او بی ګټي ندي؟ زه پرته له ځنډه او زړه نازړه‌توب څخه دې سوال ته ځواب ورکوم. ځکه چې مارکسيزم يو علمي حقيقت دی، که نن هغه د چين او شوروي اتحاد بورژوازي رهبرانو د خيانت له مخې وکولای شول چې د هغه په مخ توره پرده واچوي، خو دوام به ونکړي او ډېر ژر به دغه پرده ورسته او خوسا شي. ترشا به يې د مارکسيزم او سوسياليزم ځلانده څيره وځليږي.

سربيره پر دې سوسياليزم د پانګوال نظام پر واقعيت ولاړ دی، ترڅو چې دغه نظام پر ځای ولاړ وي د سوسياليزم زده کړه هم پر ځای ده. مارکسيزم موږ ته زده کړه راکوي چې که څه هم وروستنۍ بريا د کارګرې طبقې او کمونيستو

مبارزینــو پــه برخه ده، خو په دې ډول ســتونزمنې او پیچلې مبارزې کې نشــي کېدای چې له ماتې څخه ژغورلي پاتې شو. ماتې او برى دواړه یو د بل ملګري او مرســتندویان دي. ښکاره ده چې مارکسیزم په دې ډول پراخه ماتې لیدلې نه وه، خو څه پروا لري، باید له ســره مبارزه پیل کړو که چېرې اړینه شــي له هیڅ څخه به یې پیل کوو. په ربښــتیا ســره وایی چې کمونستان تل د جریان مخالف لامبو وهي، دا ځل سیلاب هر څه د ځان سره وړي دي. اوس واقعي کمونستان باید دغه ویجاړونکی ســیلاب له ســره تیر کړي او تیرویيې. مارکسیزم موږ ته زده کوي چې دغه ســیلاب به مهار شــي، که څه هم د مهار کېدو لپاره یې ډېر زیار او کوښــښ لازم دی. دغه هڅې به ژر یا ځنډ تر ثمره ورسیږي، ځکه چې د ټولنې وده په همدی لاره روان ده. د دښمنانو خوښي به تر ډېره پاتې نشي او د سوسیالیزم ځلانده لمر به یو ځل بیا په نړۍ وغوړیږي.

**فروتن**

**۱۳۶۸ کال، د کب میاشت**

# د اسلامي ریالیزم او مارکسیستي ماتریالیزم تر نامه لاندې آیډیالیزم

اسلامي ریالیزم لدې کبله چې ماتریالیستان هغوی ته ایډیالیزم وایي په غصه کیږي، ځکه ریالیزم باور لري چې واقعیت له ذهن څخه بهر وجود لري او هغه زده کړه چې په بیروني واقعیت باور لري نشو کولای چې هغه ایډیالیزم وبولو. په دې توګه ګویا د ریالیزم او ایډیالیزم اساسي توپیر له ذهن څخه بهر د بیروني واقعیت په نفې یا ثبوت پورې تړلی دی. د ماتریالیزم دغه نظر چې مادي نړۍ وړاندې د انسان له شعور څخه خپلواک وجود لري، په بشپړه توګه د علومو لاسته راوړنو سره اړخ لګوي. ځکه نن د علومو د هر اړخیز پرمختګ له مخې نشو کولای په دې انکار وکړو چې مادي نړۍ مخکې تردې چې انسان د ځمکې پرمخ پیدا شي او بیا د هغه په اړه قضاوت وکړي، وجود درلود. انسان او د هغه شعور د همدې مادي نړۍ په مخ پیدا شوی او له همدې مادي محیط څخه راپورته شوی. د مادي نړۍ وجود عقل او شعور پورې تړلي ندي، برعکس شعور د مادې او مادي نړۍ زیږنده ده.

ایډیالیزم برعکس دغه علمي حقیقت چې مادي نړۍ انسان څخه لومړی دی او انسان او د هغه شعور د همدې مادي نړۍ محصول دی، نفې کوي. بیروني واقعیت شعور پورې اړوند بولي، داسې ښکاره کوي چې شعور د دې مادي نړۍ جوړونکی دی. په ځینو مواردو کې دغه شعور د انسان مال دی او

په ځینو مواردو کې مطلق شــعور. مطلق شــعور هماغه د انسان شعور دی چې لــه خپلې مــادي هډې (مغز) ځینې جلا کېږي او مطلــق جوړېږي. په هر حال د هغوی د نظر له مخې د نړۍ جوړونکی شــعور دی او یا د هغه یوه برخه لکه عقل، اراده او داسې نور. په دې ډول د بیروني واقعیت اړیکه له ذهن سره یا د مارکسیســتانو په وینا د مادې او ایدهو اړیکه هغه اساسي مسئله ده چې د هغې په مرســته مارکسیزم له ایډیالیزم څخه جلا کوي. خو په دې منځ کې د ریالیزم موقعیت په کوم ځای کې دی او په اساسی توګه ریالیزم څه شی دی؟

## اسلامي ریالیزم:

ریالیزم په مختلفو ماناګانو کارول شــوی خو اصولاً د کلیساګانو د منځنیو پیړیــو هغــه زده کړه ده چې په دریو بنســټونو ولاړ دی: لومړی هر هغه څه چې واقعیت دی او «ریل» دی، کل دی. بیا (ورسته) د کل او عام مفهوم د افرادو او اشــیاؤ څخه ترمخه وجود لري، په پای کې کل تر جلا جلا شیانو د واقعیت پــه لــوړ او پورتنۍ درجه کې ځای لري، که مطلب په نــورو کلماتو کې وڅېړو ریالیــزم د کل (عــام) پــه مفهوم هاغه کل وینې چې د انســان له شــعور څخه بیرون او خپلواک دی، خو په ورته وخت کې له جلا جلا افرادو او اشیاؤ څخه ترمخه شــتون لري او دغه کلمه په واقعیت کې هماغه خدای دی. د کلیســا د زده کړو لارویانو د ایرلنډي اســقف برکلي(berkely) د فلسفې په مقابلې کې چې د اتلســمې پیړۍ د نوي راپورته شوي ماتریالیزم سره د مبارزې په خاطر د بیروني نړۍ په نفې کولو لاس پورې کړ. د ریالیزم نوم یې هماغه شان خوندي وساته ځکه چې په بنسټ کې یې تر مخه اختلاف نه درلود، په ورته وخت کې یې وغوښــتل چې د خپلې زده کړې (ریالیزم) او د برکلي د زده کړې ایډیالیزم ترمنځ جلا کرښــه وکاږي، خو په حقیقت کې د دوی ریالیزم پرته له ایډیالیزم

څخه بل شــی ندی. وروسته به وویل شــي، که برکلي واقعیت د انسان د پنځه ګونو حواســو زیږنده یعنې د شــعور مقدماتي پړاو ګڼي، ریالیزم باور لري چې بیرونی واقعیت له ذهن څخه خپلواک شــتون لري. که څه هم د دغه واقعیت پیل او پای، مبداء او موخه خدای دی چې ټوله هســتي له هغه پیدا شــوې او د هغه د ارادې تابع ده.

باید زیاته کړو چې ریالیزم په ورته وخت کې د هغو فلاسفه وو له ډلو څخه د فلســفې زده کړه او د (شــناخت) تیورې ده چې نه غواړي د فلسفې د اساسي مسئلې په اړه موضع ګیري وکړي، هغوی ته د واقعي نړۍ وجود له ذهن څخه بهــر د منلــو وړ دی، پرته له دې چې د هغه د خصلت (مادي یا ایډه یي) په اړه خبــرې وکړي. په دې ډول ریالیزم یو ناروښــانه او بــې لارې کوونکې زده کړه ده. ځکــه چــې بیرونۍ نړۍ کېدای شــي مادي وي یا ایډه یــي، د پیداکوونکي پیدایښت وي یا ازلي او ابدي چې په خپله خپلواک وجود ولري.

اســلامي ریالیزم په خپل اصلي او اساســي خط کې هماغه د کلیســا فلسفې زده کــړه ده چــې بڼه یې نوې شــوې ده، ځکه چې د هغوی په آند هر هغه شــی چې واقعیت ولري او موجود وي، هغه کل دی او عام دی که څه هم هغوی دا خبره په روښانه او څرګند ډول نه وایي چې د کل ترمخه جلا جلا افراد او شیان وجود لري. اسلامي ریالیزم په ورته وخت کې په ډېر جدیت سره کوښښ کوي، ترڅو خپل حســاب له ایډیالیزم څخه جلا کړي او د فلســفې د اساسي مسئلې له موضع ګیري څخه ســترګې پټوي. که څه هم د خپلو خبرو او توضیحاتو له لارې په واقعیت کې خپل ځای په ګوته کوي.

اوس د اسلامي ریالیزم او ایډیالیزم ترمنځ د ویش په اړه بحث کوو، لومړی غواړو ووینو چې ایډیالیزم له کومې چینې څخه اوبه څښي؟

ايډياليـزم د مـادي نړۍ د معرفـت په څنګ کې منځته راغلـی، له دې کبله معرفتي ريښه لري. ايډياليزم د مادي نړۍ د پيژندنې په لړ کې څرګند شوی، د مادي نړۍ د شـناخت لړۍ دوه ځانګړي پړاونه لري چې د کيفيت له مخې يو بل څخه توپير لري، لومړی حسي مرحله ده چې په هغې کې انسان د خپلو پنځه ګونو حواسـو لـه لارې د مادي نړۍ څيزونه او پدېـدې درک کوي دغه مرحله په خپله نورې درې مرحلې لري چې د احساس مرحله د هغې بنسټ جوړوي.

احساس په دې مانا دی چې انسان د خپلو حواسو په واسطه مثلاً د بوی په بويولو سره يو شی درک کوي يا د ذايقې په مرسته د يو شي خوند معلوموي يا د غوږونو په مرسته غږ پيژني يا د سترګو په مرسته د مختلفو شيانو ځانګړتياوې لکه (رنګ، شـکل او داسـې نور) پيژني. له هغه ځايه چې هر څيز په يو حس يا د پنځه ګونو حواسـو له ټولګي څخه په څو حواسـو اغيزه کوي. انسان له يو څيز څخه يواځې يو احسـاس نلري، بلکې مختلف احساسـونه پيدا کوي، کله چې د انسـان پر وړاندې يوه مڼه ايښـودل شـوې وي د باصرې په حس د هغې شـکل او رنګ احساسـوي د ذايقې په حس د هغې خوند احساسوي د بويايي په حس د هغې بوی پيژني د لامسې حس د هغې له کلکوالي او پوستوالي څخه خبر راکوي، په واقعيت کې د دغو احساسـونو مجموعه موږ ته امکان راکوي چې مڼه ادراک کړو، دا تر احسـاس څخه لوړ ګام دی. احسـاس هغه شناخت دی چـې موږ يې له هـر حواس څخه ځانته ترلاسـه کوو او ادراک هغه شـناخت دی چې د ټولو حواسـو په واسطه ترلاسه کيږي، دريم ګام تصور دی يعنې وروسـته تر هغې چې مڼه زموږ د حواسـو له لاسرسي څخه ليرې شوه او احساس په منځ کې نشته انسان کولای شي پرته د پنځه ګونو حواسو څخه مڼه تصور کړي. احساس، ادراک او تصور د حسي معرفت درې پړاونه دي.

تر حسي مرحلې وروسته د شناخت تعقلي مرحله منځ ته راځي. حسي مرحله، تعقلي مرحلې ته د ورتګ لپاره لازمي ګام دی. په دې مرحله کې د انسان مغزي فعالیت په لومړي سر کې ساده او علمي مفاهیم (د ونې مفهوم، انسان، اتم، رنګ، ګل او داسې نور) جوړوي او وروسته د مفاهیمو په مرسته فکر او شعور بشپړې درجې راپورته کیږي. د شناخت په تعقلي مرحله کې انسان په انتزاع، تعمیم او یو سلسله نورو ذهني عملیاتو لاس پورې کوي چې له مادي نړۍ څخه د انسان شناخت ته ژورتیا او پراختیا ورکوي.

د مادي نړۍ د پیژندنې لنډه تګلاره په همدې ډول ده. ایډیالیزم په سمه توګه د شناخت له همدې پروسې څخه سر راپورته کوي. ذهني ایډیالیزم شناخت یواځې حسي مرحلې پورې په ځانګړي توګه احساس پورې محدودوي. د طبیعت ټول شیزونه او پدیدې مصنوعي احساس ګڼي. ذهني ایډیالیزم د فرد احساسونه یواځنی واقعیت ګڼي او په دې باور دی چې په نړۍ کې ټول شیان د احساسونو له ترکیب څخه جوړیږي، منه پرته له شکل، رنګ، بوی او خوند څخه بل څه ندی. یعنې پرته د ذهن محتوا او د احساس محتوا څخه بل شی ندی، هغه څه چې واقعیت لري، هغه د انسان احساسونه دي، د احساسونو ترشا په خبرو باور کول، ګویا په واقعیتونو سترګې پټول او د تجربې له ډګر څخه تیښته کول دي. په پای کې ذهني ایډیالیزم دې پایلې ته رسیږي چې انسان یواځې خپل احساسونه پیژني او بس، نه ښایې چې تر هغې وړاندې ولاړ شي. ذهني ایډیالیزم د احساسونو واقعیت مني، خو د هغه ترشا مادي نړۍ نفې کوي. بریکلي په وروستنیو پیړیو کې د دې ایډیالیزم بنسټ ایښودونکی دی چې له دې مسلک څخه یې موخه د نوي دوران له ماتریالیزم سره مبارزه کول وو، هغه وایي:

«زه په هيڅ ډول ترديد نلرم، کوم شـيان چې موږ يې په سـترګو وينو او په خپلـو لاسـونو يې لمس کوو وجود لري او واقعاً چـې وجود هم لري، يوازنۍ څيز چې زه يې تر اعتراض لاندې نيسـم، هغه دادی چې فلاسـفه هغه ته ماده يا جوهر وايي»

دا پـه دې مانا دی چې ذهنـي ايډياليزم د څيزونو واقعيت په دې مانا پيژني کوم چې په احساسـونو کې شـتون لري. که چيرې زما احسـاس نه اوسي، نو مادي نړۍ هم شتون نلري، ذهني ايډياليزم احساس ته واقعيت وايي او مادي نړۍ د احساسونو د جوړښت جوړجاړی ګڼي، په دې ايډياليزم کې احساس او مادي نړۍ دوه جلاجلا واقعيتونه ندي. مادی نړۍ هماغه احساس دی.

که چيرې ذهني ايډياليزم، د شناخت پروسه په حسي مرحله کې په ځانګړې توګه په ادراک کې پای ته رسـوي، عيني ايډياليزم ترهغې مخ پروړاندې ځي او تعقلي مرحلې ته ننوځي. له ايده يي، شعور، ارادې او عقل څخه خبرې کوي، خو دغه شـعور د يو کل يا د هغه له يوې برخې لکه ايده، اراده، عقل او داسـې نـور د هغـه له اصلي پايګاه څخه چې د انسـان مغز دی جلا کوي، هغه مطلق جـوړوي، هغه ته واقعيت او عينيت بخښـي او هغه د مادي نړۍ پيداکوونکی بولـي، پـه دې توګـه عيني ايډياليزم پـه دې انکار نکوي چـې واقعيت له ذهن څخه بهر وجود لري خو هغه د شـعور، ايـدې او ارادې زيږنده ګڼي. د رياليزم د فلسـفې او کرنـلارې اصول په خپله پـه دې مطلب پوهيـږي، د ايډياليزم د توضيح په اړه ليکي:

«لومړنی کس چې په فلسـفي اصطلاحاتو کې يـې د ايډياليزم کلمه کارولې هغـه افلاطـون دی.» «افلاطون د مادي نړۍ د ټولو موجوداتو له انواعو څخه د هغه هر نوع لپاره يو مجرد عقلاني وجود چې د هغه نوع محسوسه افراد د هغه

جلوه او د هغه فرد د بشپړ انځور په توګه پيژني او هغه يې «ايده» نوموليې، کوم چې د اســلامي دورې ژباړونکو هغه «موثل» ژباړلی دی. افلاطون د محسوسه افرادو له وجود څخه منکر ندی، بلکې هغه مبدلون، جزيي او فاني ګڼي. ايده يا موثل بر خلاف د هغه د باور له مخې بدلون نه منونکی، کلي او تل پاتې وجود دی»[11] (لمړی ټوک، ۵۵مخ)

افلاطــون چې پــه خپله يې د ايډياليزم کلمه کارولــې ده، په مجردو عقلاني وجودونــو په «ايده ګانــو»، (موثول) چې ګويا عيني واقعيت لري، د هغه په تل پاتــې او نه بدلــون باور لري، دغه ايده يوائځې ذهني محتــوا نده، بلکې له ذهن څخه بهر د «ايده ګانو په نړۍ» کې ځای لري. څيزونه، انواع، وړانګې (جلوي) د هغه تجسم او زيږنده ده.

آلماني ســتر فيلســوف هيګل فکر او ايده چې د بهرنۍ نړۍ د پيژندنې ثمره ده له انسان څخه جلا کوي او هغه ته د «ايده مطلق» تر نوم لاندې واقعيت او عينيت وربخښي، دغه «ايده و مطلق» د هګل په خبره له خپلې اصلي پايګاه او تيکاؤ څخه په لاره لويږي، په تدريج سره خپل ځان «نفې» کوي، له ځان څخه بيګانه کيږي او له «ځان څخه د بيګانه کيدو» په لړ کې په کراره د واقعيت ټول صورتونه يعنې طبيعت او تاريخ منځته راوړي.

شــوپن هاور او ځينې نور فيلســوفان «اراده» د نړۍ لومړني علت او د ټولې هســتې اصلي بنسټ ګڼي، په دې ډول فلسفي مکتبونه چې عيني ايډياليزم سره تړاو لري شــعور چې د انســان د عالي عصبي سيســتم خاصيت دی، له خپلې اصلي اډانې څخه جلا کوي، ټول يا دهغه يوه برخه د يو مستقل موجود (عقل کل، اراده کل، ايــده مطلــق، ورته نړۍ) په صــورت رابولي، مطلق کوي يې او د مــادي نــړۍ پيدا کوونکی ترې جوړوي. لکه چې وينــو ايډياليزم هرو مرو په

هـر حـال د بهرني واقعيت د نفې په مانا نده، البتـه د ايډياليزم ځينې ډولونه دا ډول ځانګړتيـاوې لري، بهرنی واقعيت يواځې د ذهــن محتوا بولي او په پايله کې له ذهن څخه بيرون د بهرنۍ نړۍ په څيزونو او پدېدو باور نلري، خو عيني ايډياليســتان د طبيعت وجود او د بهرني نړۍ وجود د انسان له ذهن څخه بهر او مستقل نه نفې کوي. نظام او ټاکلی انتظام حتی د هغه ځينې عيني قانونمندي مني، خو ســربيره پر دې ايډياليســتان دي، ځکه چې هغــوی طبيعت له عقل، ايديې او شعور څخه مستقل نه مني. مادي نړۍ او د هغه د قانونمندۍ سرچېنه په خپله طبيعت کې نه لټوي، بلکې هغه په غير مادي ځواک په عقل کل، اراده مطلــق او ايده مطلــق پورې تړلي ګڼي. پورتني توضيحات د دې ښــکارندويې کــوي چــې ايډياليزم عيني دی که ذهني، دواړه د ايديې او مادې ترمنځ، د فکر او طبيعت ترمنځ، د شعور او مادي نړۍ ترمنځ؛ ايده، فکر او شعور ته اصليت او لمړيتوب ورکوي. ماده، طبيعت او مادي نړۍ هغه پورې تړي او هغه څخه يې جوړ شــوی بولي. د ذهني ايډياليزم پروړاندې احســاس د مادې او طبيعت جوړونکی دی، خو د عيني ايډياليزم پروړاندې انديشــه، شــعور او عقل البته د مطلــق پــه بڼه کې د مادي او طبيعت پيدا کوونکــی دی. د ذهني ايډياليزم لپاره واقعيت احســاس پورې تړلی دی او د عيني ايډياليزم لپاره واقعيت شــعور او احســاس پورې تړلی دی. لکه چې وويل شــول دا د مقدماتي شــعور د مرحلې پرتــه نــور څه ندي. له همدې ځايه ده چــې د هر ډول او هر مکتب پورې تړلی ايډياليزم د شــناخت ټيکاو د معيار له مخې روښــانه کيږي او دا هغه معيار دی چې د مارکسيســت په فلســفه کې د مادي او ايدي د اړيکــو تر عنوان لاندې د فلسفې د اساسي مسئلې په توګه تر بحث لاندې نيول کيږي.

هغه فلســفي زده کړه چې ماده، طبيعــت او عيني واقعيت تر ايدي مقدم او

ایــده د مادي زیږنده پیژنــي، د ماتریالیزم مختلفو مکتبونو پورې اړوند بولي او هغه فلسفي زده کړه چې تر هر نوم او عنوان لاندې شعور او ایده د مادي نړۍ او د طبیعت پنځوونکی پیژني د ایډیالیزم مختلفو مکتبونو پورې تړلی دی.

هغه فلســفي زده کړه چې د مادي نړۍ لپاره منشــاء او مبــدا نه پیژني، هغه ازلي او ابدي ګڼي او هغه ټولې پیښې چې په هغې کې منځته راځي، پرته له دې چــې کوم خارجي ځواک پــه هغه کې لاس وهنه وکړي، هغــه د قانونمندئ او اصل علت پایله بولي، د ماتریالیســتي زده کړې پورې اړه لري او هغه فلســفي زده کــړه چې یو ډول په پنځوونکي(افرینـنــده) عقیده لري، د دې نړۍ نظام او انتظام ماورالطبیعه ځواک پورې تړلی ګڼي، ایډیالیستي زده کړه ده.

د ریالیــزم پروړاندې د ایډیالیزم د تشــخیص د معیار نشــتوالی د دې لامل ګرځیدلی چې دوه «فیلســوفانو»، دوه «عالمانو» په شــریکه د «اصول فلسفه و روش ریالیزم» لیکنه تدوین کړه، د شــوپن هاور د فلســفې د زده کړې په سر یو بل سره د نظر اختلاف پیدا کوي. پداسې حال کې چې د کتاب اصلي لیکونکی، دغه آلماني فیلسوف په ډېر صراحت سره د برکلي په څنګ کې د ایډیالستانو او سوفیستانو په ډله کې شمیري، حاشیه لیکونکی چې په خپل تکلیف نه پوهیږي داسې لیکي:

«سربیره پر دې که څه هم شوپن هاور د نړۍ معلومات بی حقیقته بولي؟ او له دې پلوه ایډیالیســت بلل کیږي، خو په یو حقیقي نړۍ قانع دی، کوم چې د نړۍ (ماوراء نړۍ) په هکله معلومات دي او هغه نړۍ د حس، شعور او عقل پواسطه نه تر لاسه کیږي، هغه د ارادې نړۍ ده، له دې کبله کولای شو هغه ته ریالیست ووایو»[۱۲] (لومړی ټوک ۶۰-۵۹مخ)

د دې لیکنو لیکونکی دا نه په ډاګه کوي چې څه ډول کېدای شي، یو فیلسوف

هم ایډیالیسـت وي او هم رئالیسـت؟ که چېرې ایډیالیزم او رئالیزم هغه ډول چې«اصـول فلسـفه» مدعي دی، یو د بل په مخ درېـږي او یو بل نفې کوي او کـه چېرې ایډیالیزم د واقعیت د نفې کولو په مانا وي او ریالیزم عیني واقعیت منـي، نو په څه ډول امکان لري چې شـوپن هاور په یـو وخت کې د متضادې او متناقضې فلسـفې د زده کړې اسـتازی وبلل شي؟ که چېرې د دغو دوو آیت الله پروړاندې د ریالیزم توپیر کول شـونی نه وي، نو په ناچارئ سـره به په یو ځای کې د ایډیالیزم ګوډ او مات تعریف وي. په واقعیت سـره هم د ایډیالیزم تعریف په «اصول فلسـفه» کې لکه چې پورته راغلی، معیوب او نیمګړی دی. دغو«فیلسوفو علاماوو» په دېه کله فکر نه دی کړی. واقعیت دا دی چې شوپن هاور د ایډیالیزم لاروی دی، عیني ایډیالیزم چې ریالیزم یې یو ډول دی.

ریالیـزم یعنـې هغه فلسـفي جریان چې ادعـا لري چې نـه ایډیالیزم دی او نـه ماتریالیزم، هـم د ماتریالیزم پر وړاندې موضع نیسـي او هم د ایډیالیزم پر وړاندې، په واقعیت کې د عیني ایډیالیزم یوه بڼه ده. د ریالیزم پربنسټ واقعیت د انسـان له شـعور څخه مسـتقل وجود لري، خو نه مستقل له شعور، عقل او ارادې څخه او نه مسـتقل له هغه پنځوونکي (افریننده) څخه چې ټوله هسـتي لـه هغه څخه پیدا شـوې او د هغه د عقـل او ارادې له مخې یې نظام او انتظام تر لاسه کړی. دغه عیني واقعیت د انسان له شعور څخه مستقل او په وروستي تحلیل کې د شـعور محصول دی، منتها مطلق شعور د کمال په وروستني پړاو کې چې په خپله انتزاع ده.

اسـلامي ریالیزم هم پرته له دې بل څه ندی. دا د اسـلامي ریالیزم او ذهني ایډیالیزم ترمنځ یوه کربنـه ده، نه د ایډیالیزم ترمنځ. اسـلامي ریالیزم یو ډول عینـي ایډیالیـزم دی چې خپله ایډیالیسـتي څېره یې د ریالیزم کلمې ترشـا پټه

کړېده. همدا ډول اسلامي ريالېزم هيڅکله هم د ايډياليزم پرضد په هغه کچه مبارزه نده کړې، کومه چې يې د مارکسيست ماترياليزم په ضد کړې ده. د مارکسيزم په ضد د مذهب او ايډياليزم د (ريالېزم په ګډون) نا مقدس اتحاد چې د ستمګرو او ښکيلاکګرو واکمنو طبقاتو لخوا يې ملاتړ او حمايت کيږي. د دغو طبقاتو ګټې په ټولو برخو کې د مارکسيست ماترياليزم سره په مبارزه کې خوندي ساتل کيږي. په دې ډول هر هغه زده کړه چې مارکسيزم سره په مقابله کې راپورته کيږي له هغه څخه ملاتړ کوي. د ايډياليزم او د هغه د ډول ډول مکتبونو ټولنيزې جرړې په دې کې ځای لري چې د هغی ترشا بورژوازي ولاړه ده، د هغې د پراختيا او خوندي کولو لپاره هلې ځلې کوي. اوس به وګورو چې «اصول فلسفه» له ايډياليزم او ريالېزم څخه څه ډول تعريف وړاندې کوي:

«ريالېزم... د «ريل» کلمې څخه چې د واقع مانا لري مشتق شوې ده»، «ريالېزم... يعنې د بيروني واقعيت اصالت، په دې مانا کې ريالېزم په غوڅه توګه د ايډياليزم په مقابل کې چې د ذهن د اصالت يا تصور په مانا دی ځای نيسي»[۱۳] (لمړی ټوک ۵۷ — ۵۸ مخ)

په دې توګه د ريالېزم تعريف يعنې د بيروني واقعيت «اصالت»!يعنې دا چې موږ څخه بهر «واقعيت وجود لري» خو دغه واقعيت څه شی دی؟

هغه شيان چې موږ يې په خپل چاپيريال کې هغوی سره سروکار لرو يا مادي دي يا ايده يي، دريم څيز ندی. د ريالېزم «واقعيت» له دغو دوو څخه کوم يو پورې تعلق لري؟ په طبيعت کې موجود شيان لکه غر، ډبره، حيوان، نبات، اوبه، سيندونه ټول واقعيت لري. دا څيزونه مادي دي او که ايده يي؟ خو مذهب، فلسفه او هنر هم واقعيت لري، دا بايد مادي وګڼو که ايده يي؟. اسلامي ريالېزم دغو پوښتنو ته ځواب نه ورکوي او د پردو ترشا يې پټ ساتي،

ترڅو خپل ګريوان د ماترياليزم او ايډياليزم له منګلو څخه ليرې وساتيII. که چېرې د اسلامي رياليزم بحث ته د «واقعيت» او «هستي» په توګه پام وشي هغه وخت کېدای شي چې د اسلامي رياليزم ماهيت او سرشت په ډاګه شي.

د اسلامي رياليزم لپاره په طبيعت کې هر شی دوه ګونی خاصيت لري يا د «اصول فلسفه» په وينا:

«موږ د تل لپاره په شيانو کې دوه ماناګانې تشخيص کوو، هستي او ماهيت (جوهر). د بېلګې په توګه پوهيږو چې انسان شتون لري، ونه شتون لري، عدد شتون لري، خو عدد ځانته هستي او ماهيت لري او انسان بل ډول هستي او ماهيت لري»[۱۴]

په دې ډول هر شی له يوې خوا شتون لري، پرته له دې چې څه شی دی او له بلې خوا هستي او ماهيت لرونکی دی چې د هغه په بنسټ شيان يو بل څخه توپير پيدا کوي. واقعيت او هستي د طبيعت د ټولو شيانو لپاره يو شان دی او د ټولو شيانو لپاره يوه شريکه وجه ده، په داسې حال کې چې د يو څيز ماهيت د بل څيز ماهيت څخه توپير لري. اوس چې وپوهيدو چې په ذهن کې هر څيز دوه مفهومه په زغرده ځای نيسي، بايد وليدل شي چې له دغو دوو(وجود وماهيت) څخه کوم يو عيني او اصل دی او کوم يو ذهني او «اعتباري» دی.

«که وجود او ماهيت څخه موږ هر يو اعتباري وپيژنو په هيڅ ډول نشو کولای، هغه ته په عيني او بيروني اړخ کې ځای ورکړو، نه د اصل او بنسټ تر عنوان لاندې او نه د فرعي او پايلې تر عنوان لاندې»[۱۵]

د دې پوښتنې په ځواب کې چې د دغو دواړو مفاهيمو هستي او ماهيت (وجود او ماهيت) څخه کوم يو عيني دی په دې ډول يې توضيح کوي:

«اصيل اصل په هر څه کې د هغه وجود او هستي ده او ماهيت يې انګيرنه

(پندار) ده. یعنې د هستي واقعیت په خپله (بالذات او بنفسه) واقعیت لري، یعنې عین واقعیت دی. ټول ماهیتونه هغه سره واقعیت لرونکې دي او پرته له هغه (پخپل ذات کې) یوه انګیرنه او اعتباری ده. خو دغه ماهیتونه یواځې جلوه او بڼکلا ده چې د هغه بیروني واقعیتونه زموږ په ذهن او ادراک کې را ټوکوي، که داسې نه وي ادراک څخه بهر نشي کولای چې وجود څخه جلا او په یو ډول مستقل شي».[۱۶]

په دې ډول د اسلامي ریالیزم لپاره هغه څه چې له ذهن څخه بهر واقعیت لري وجود او هستي ده، نه څیزونه او پدېدې. دا وجود او هستي ده چې څیزونو ته ژوند ورکوي، دا وجود او هستي ده چې ماهیتونه له «پټې نړۍ» او د «ابهام له تورو پردو» څخه راباسي. ماهیت ترهغه وخت پورې چې د وجود جامه یې په تن کړې نه اوسي، تر انګیرنې (پندار) بل څه نه دی، کله چې د وجود په جامه ملبس شي هغه وخت «زموږ نظر ته راڅرګندیږي، څیزونه او پدېدې په خپله واقعیت نلري، هغه یواځې بڼکلا او انځورونه دي چې بیروني واقعیتونه زموږ په مازغو او ادراک کې راټوکوي.»

«د هغوی په هر یو (څیز او پدېدې) کې بیرونی وجود یو شي پورې اړه لري او په هر ځای کې یو شی دی چې د جامو په تن کولو سره ترینه وجود جوړشوی او په یو بل عبارت یې زموږ ذهن ته داسې را څرګندوي چې له دغو مواردو څخه هر مورد د یو ټاکلي څیز وجود له پټ پوښښ ځینی بهر، او د یوې نا څرګندې تورې پردې څخه یې په ډاګه کړیدي».

د دې زده کړې پر بنسټ دا انسان نه دی چې له موږ څخه بهر واقعیت لري، بلکې موږ هغه د «انسان شتون» د بررسي له مخې رامنځه کوو، برعکس، دا د «انسان شتون» دی کله چې موجود شي انسان منځته راولي.

«نـو دا وجـود دی چـې عيـن واقعي شـتون او عينيـت دی، د بهرني عالم جوړوونکـی او عين دی، خو ماهيت د وجود جوړولو لپاره يو ذهني قالب دی چـې ذهـن د خپل ځانګړي خاصيت له مخې بيروني واقعيت سـره د اړيکو په واسطه د هغه قالب جوړوي.»[۱۷]

څرګنده ده کوم چې اسلامي رياليزم د بيروني واقعيت څخه خبرې کوي هغه وجـود او هسـتي ده. ماهيتونه او (څيزونه او پديدې) ذهنـي قالبونه دي. دغه قالبونه چې ذهن يې له «وجود» سره د اړيکو له مخې جوړوي.

دغه ليکوال د «علوم اسـلامي» تر عنوان لانـدې خپل کتاب کې له عيني او ذهني څخه خبری کوي، «عيني هستي» په دې ډول تعريفوي:

«عيني هسـتي» يعنې بيرونۍ هسـتي چې زموږ له ذهن څخه مستقل وجود لـري که زموږ ذهن يې تصور کړي او کـه تصور نکړي. که موږ او زموږ ذهن وجود ولري او که وجود ونلري غرونه، سيندونه او دښتې وجود لري»[۱۸]

داسـې بريښـي چې د کتاب ليکونکې هيره کړې ده چې په وړاندې پاڼو کې يې څه ليکلي دي؟ د دې نظر او تر دې دمخه نظر ترمنځ تناقض روښـانه دی. د دې تعريف له مخې غر، سـيند او دښـته ماهيتونه دي چې د انسـان له ذهن څخه بهر مسـتقل وجود لري، که چېرې داسـي وي نو څرنګه کېدای شي چې په ورته وخت کې هغه د ذهن قالبونه وبولو او ذهن د هغو جوړوونکی وګڼو»؟

کله چې غر، سـيند، دښـته او هر بل ماهيت وړاندې تر هغه چې انسان وي او ذهن وي، وجود لري. او د وجود لپاره انسان او د هغه ذهن ته اړتيا نه وي، کـه چېـرې دا صحيح وي چې ماهيتونه ذهني قالبونه دي، په دې ډول بايد دې پايلې ته ورسيږو چې غر، سيند او صحرا د انسان او د هغه د ذهن تر پيدايښت وړانـدې شـتون نه درلـود، په دې وخت کې دغه خبره چـې «که زموږ ذهن او

موږ وجود ولرو یا وجود ونلرو غږ، سیند او صحرا وجود لري»؟. په هر حال د اسلامي ریالیزم پربنسټ هر څه چې له موږ څخه بهر عینیت او واقعیت لري، هغه څه چې «د خارج او عالم جوړوونکي دي» هستي ده او وجود دی.

هســتي څه شــی دی؟ هســتي او وجود یو ذهني مفهوم دی او یو له فلسفي مقولاتو څخه دی. دغه مفهوم لکه هر فلسفي یا بل علمي مفهوم او مقولې په شــان له بهرني عالم څخه اقتباس کېږي. له ذهــن څخه بهر ډول ډول څیزونه او پدیدې شــتون لري چې په هیڅ ډول یو بل ســره ورته والی نه لري او په ګڼ شــمیر صفتونو یو بل څخه توپیر لري لکه ونه، ډبره، اوســپنه او داســې نور. په دې ډول یــوه ســاده پرتله په ډاګه کــوي چې هغوی په یو څیز کې یو بل ســره مشــترک دي او هغــه دا چــې پرته له هغه ټولــو ډول ډول توپیرونــو او راز راز صفتونو او ځانګړتیاؤ څخه یو بل څخه جلا کوي «وجود لري». «هســتي» او «وجود» د بهرنۍ نړۍ د ټولو څیزونو او پدیدو مشترکه وجه ده. د انسان ذهن د دغه څیزونو د پرتله کولو له مخې د هغوی مشترکه وجه ترلاسه کوي، له هغوې څخه مفهوم یا مقوله «هستي» جوړوي، د هستي مقوله د ذهن د فعالیت لاسته راوړنه ده، ذهني ده، انتزاعي ده.

اســلامي ریالیزم دغه ذهني مقولــه د هغه له اصلي ځای ګوتې چې مغز دی جــلا کــوي، مطلق کوي، هغه تــه عینیت او واقعیت وربخښــي او هغه د ټولو څیزونو، پدیدو او ماهیتونو پیداکوونکی بولي، برعکس څیزونه او پدیدې چې عینیت او واقعیت لري د ذهن قالب بولي. آیا دغه فکر نسکور او سرچپه ندی؟ آیا لازمه نده چې ســر په خپل ځای او پښــې په خپل ځای کېږدو؟ د «فلســفې اصول» لیکوال ســربیره پردې چې هســتي د (ټولو چارو ترمنځ مشترک) ټکی ګڼــي او دا په خپله په ډاګه کوي چې د هســتي مقولــه د ټولو څیزونو او پدیدو

ترمنځ مشـترکه وجه ده يا په بل عبارت هسـتي له ماهيت څخه راپورته کيږي خو بيا جريان سـرچپه کوي او هسـتي ته د واقعيت عيني بڼه ورکوي چې ټول ماهيتونـه لـه هغه ځينې پيـدا کيږي. ليکونکـی پدې باور دی چـې د «وجود» مفهـوم له بيروني واقعيت څخه رامنځتـه کيږي او «رامنځته کيدل يو ځانګړی ذهني عمل دی»[۱۹]

خـو هغوی دغه رامنځته کيدل چـې د ذهن محصول دی عينيت ورکوي او ليکي: «اصالت په خارج کې د هسـتي مال دی او ماهيتونه انګيرنې او اعتباري دي» آيـا ايډياليـزم له دې پرته بل څه وايي؟. د اسـلامي رياليزم لپاره خارجي واقعيـت يـو مثالي حقيقـت او يو عام مفهـوم دی چې د طبيعـت هر څيز او پديـدې تـه يوه ځانګړې جامه په تن کـوي او هغه له پټ خوب څخه په وجود راولـي. پـه دې ځای کې هم بيرونی نړۍ لکه د ذهنـي ايډياليزم په څير د ذهن زيږنده ده په دې توپير چې ذهني ايډياليزم مادي نړۍ د احسـاس زيږنده بولي او رياليزم د شـناخت په پړاونو کې له احسـاس ځينې اوچت ګام پورته کوي او تعقلي پړاو ته رسيږي. وروسته ترهغې چې د هستي مقوله د خارجي نړۍ پايله بولي او هغه ته د يو مسـتقل جوهر بڼه ورکوي چې ګويا عيني ده، تر شـناخت وړانـدې او په مسـتقله توګه وجود لـري. تر دې مهم دا چـې د هغه پيژندنه د انسان د وس او واک له چوکاټه بهر ګڼي:

«موږ له هيڅ پلوه نشو کولای د هستي واقعيت وپيژنو»[۲۰] د «فلسفې اصول» پنځم ټوک چې په کلونه کلونه د هغه ليکل او خپرول ځنډيږي، «هستي» چې بيا يې هم تکراروم يوه فلسفي مقوله ده په دې ډول يې ستاينه کوي:

«هسـتي چې پـه خپله حقيقت دی ډېر لوی والـی، جلال، عظمت، کمال، وړتيا او اسـتقلال دی. ځکه چې دغه ټولې چارې واقعي او حقيقي دي او که

چیرې عین هستي نه وي او د نیستي له جنس څخه وي، نو واقعي ندی او د ماهیتونو له جنس څخه دی، چې بیا به هم اعتباري او غیر واقعي وي. کله چې په خپله هستي د عقل په سترګو ووینو د یو واجب الوجود ذات پرته بل څه ته رسیدلی نشو»[۲۱]

په دې ډول د هستي عامه مقوله چې د ټولو ماهیتونو «مشترکه وجه» ده مطلق کیږي او له خپل اصلي ځای څخه لیرې کیږي، عیني خصلت مومي او د واجب الوجود په بڼه په ماوراء نړۍ کې راڅرګندیږي چې د کائناتو پیداکوونکی دی. د حیرانتیا خبره ده کله چې له «هیڅ پلوه نشو کولای» د هستي واقعیت وپیژنو بیا هم هغه ته د جلال، کمال، استقلال او عظمت صفتونو نسبت ورکول کیږي! د اسلامي ریالیزم ایډیالیستي خصلت او د ایډیالیزم اړیکه مذهب سره سر ترپایه د دې فلسفې د زده کړې ښکارندویې کوي. د هیګل ایډیالیزم چې په هغې کې «مطلقه ایده» د طبیعت او تاریخ پیداکوونکی دی او د اسلامي ریالیزم په منځ کې چې «هستي» د مادي نړۍ پیداکوونکی دی، څه توپیر وجود لري؟ «مطلقه ایده» او «هستي» په ظاهر کې یوبل سره توپیر لري خو د ماهیت له مخې د هغوی په منځ کې توپیر نشته ځکه چې دواړه مطلق شعور دی او همدغه مطلق شعور دی چې د دواړو فلسفي زده کړو پر وړاندې د مادي نړۍ پیداکوونکی دی. مذهب په خپل ماهیت کې هماغه ایډیالیزم دی خو د بیان او د مسایلو د طرح کولو په طریقه او په ځینو نورو فرعي ټکو کې یو تربله توپیر کوي.

باید وویل شي چې د «اصالت» کلمه که څه هم د عینیت په معنی کارول شوې ده، خو په واقع کې له هغې څخه د اصلوالي او بنسټوالي معنی ترلاسه کیږي او په عین حال کې د مادې پرځای فکر او اندیشه مقدم ګڼل (د «هستي»

پرطبیعت) د ایډیالیستي موضعګیري په معنی ده چې د فلسفې اساسي مسلې ته په کتو سره اسلامي ریالیزم په ډاګه کوي.

په هر حال هغه څه چې د اسلامي ریالیزم لپاره خارجي واقعیت دی «وجود» دی او نه په هغې معنی چې ټول ورباندی پوهیږي، یعنې خارجي څیزونه او پدیدی بلکې «وجود» د «وجود» په بڼه او «هستي» د «هستي» په ډول. اسلامي فلسفه هم د وجود او هستي پوهه ده. مطهری د «اسلامي علومو» کتاب کې د اسلامي فلسفې موضوع په ډېر صراحت او روښانه بیانوي:

«فلسفه په نادود شوي اصطلاح د لمړنۍ فلسفی نوم دی او دا هغه علم دی چې د هستي د ټولو مسلو په هکله چې هیڅ ځانګړې موضوع پوری اړه نلري، د ټولو موضوعاتو په تړاؤ بحث کوي. هغه علم دی چې ټوله هستي د یوې واحدې موضوع په عنوان تر مطالعې لاندې نیسي»[۲۲]

که چیرې د «فلسفې اصول» په دې خبرو چې «موږ په هیڅ ډول نشو کولای د هستي واقعیت وپیژنو» باور وکړو، په دې وخت کې باید ووایو چې د اسلامي فلسفې علم هغه څه دی چې علم هیڅ وخت هغه ته لاس نه ورکوي او په هیڅ وسیله د هغه پیژندل امکان نلري. جوته ده د داسې علم په لټه تلل چې له وړاندی هغه ته د لاسرسي وس او توانایي نه اوسي یو عبث او بې ګټې کار دی او هیڅوک د ځان لپاره دا ډول زحمت روا نه ګڼي، په ځانګړي توګه هغه څوک چې د حقیقت لټه کې دي. په «هستي» باندې باور کول پرته له تخیلاتو بل هیڅ شی ترلاس کولای نشي. دوی هغه په داسې کلماتو او عبارتونو رانغاړي چې پرته له «احبابو» څخه د نورو لپاره مفهوم نلري. د «فلسفې اصول» لیکونکی د خپل کتاب په پنځم ټوک کې د الهي فلسفې په اړه په دې ډول نظر وړاندې کوي:

«پرته له شــک څخه د الهي حکمت معنــی او مفاهیم که هر کله وغواړي د فلسفي تعلقاتو په کچه ښکاره شي، یو ځانګړی فکري ظرفیت ته اړتیا ده چې ادبي یا فني یا طبیعي یا ریاضي ظرفیت څخه په بشــپړه توګه توپیر لري، یعنې ذهن باید په یو ځانګړي بوعد او لوري کې پراخوالی وموموي تر څو د دې ډول سوچونو او فکرونو ظرفیت پیدا کړي»[۲۳]

دا ډول «فکري ظرفیت» په ډېر لږ کســانو کې تر ســترګو کیږي، په اوســنۍ نــړۍ کې نشــو کــولای دا ډول کســان پیدا کړو چــې خپل فکر په یــو بوعد او ځانګړي جهت کې په کار واچوي، هر څوک زیار ګالي چې مسائِل په مختلفو ابعــادو کــې په هر اړخیز ډول وڅیړي. صحیــح لار هم همدا ده، ځکه چې هر اړخیزه څیړنه په مختلفو ابعادو کې حقیقت ته د رســیدلو یواځنۍ لار ده. خو الهی حکمت تاســو ته وایي چې خپل فکر ته یو بوعد او یو جهت ورکړئ، په دې لار کــې پــه هغه اندازه وړاندې لاړ شــئ، ترڅو چې ســر مو د لحد په ډبره ولګیږي او تازه پوه شــئ چې ټول عمر مو په «مرکب جهل» کې تیر کړی دی. هغــه وخت د دغه «فلســفي اصــول» او د دغه ډول تفکر له مخې کېدای شــي ځوانان «توحیدی نړۍلید» ته جلب شــي او ســیال مارکســیزم له میدان څخه وشړل شي.

## مارکسیستي فلسفه

مارکسیســتي فلســفه نــه د «احبابو» فلســفه ده او نه د زده کــړې لیوالانو ته توصیه کوي چې شــعور مو یو ځانګړی جهت او یو بوعد پورې محدود کړي. برعکس هغوی هڅوی تر هغه ځایه چې وس ولرئ مسایل په هر اړخیزه توګه پــه ټولــو ابعادو کې وڅیړئ. یواځې له دې لارې کېدای شــي زیات حقیقت ته نژدې شئ او بریالیتوب ته لاس رسی پیدا کړئ.

مارکسیستي فلسفه د فلسفې د تکامل تر ټولو لوړ شکل دی چې د متضادو نړۍ لیدو د اوږدې مبارزې په جریان کې یی بنه موندلی او د هغې په پیدایښت کې نه یوازې مختلفو ماتریالیستي مکتبونو، بلکې مختلفو ایډیالیستي مکتبونو هم خپل نقش لوبولی دی. مارکسیستي فلسفه د تاریخ د زړګونو کلونو فلسفو ټولو مثبتو لاسته راوړنو او مترقي فلسفې وارثه ده.

ځینې وختونه مارکسیستي فلسفه تر ربړلو او نیوکو لاندې راغلې، چې ګویا دغه فلسفه په خپله یو ځانګړی لوری لري، د ټولنې ټولې طبقې او قشرونه له یاده وباسي او یوازې کارګرې طبقی ته یې د خپل لید په مرکز کې ځای ورکړی، یوازې د کارګرې طبقې د ګټې او ارمانونو ژمنه کوي. هوکې له همدی کبله ده چې مارکسیستي فلسفه د پرولتاریا فلسفه ده او تر ټولو فلسفو د تکامل په لوړ پړاؤ کې ځای لري. پرولتاریا د اوسنۍ ټولنې تر ټولو انقلابي او مخکښه طبقه ده. دا چې مارکسیزم او د هغه فلسفه په کارګري طبقه تکیه کوي دا په خپله د پانګوالې د ژورې او هر اړخیزې څیړنې او بررسي څخه راپورته شوي، کوم چې د ښکېلاکګر نظام وروستنی شکل دی.

دغه پانګواله ټولنه به په ناچارۍ سره خپل ځای داسې ټولنې ته پرېږدي چې په هغې کې به په تدریجي توګه طبقات له منځه ځي په ټولې نړۍ کې به بې طبقې ټولنه چې له زبیښاک، طبقاتي او ملي ستم څخه آزاده ټولنه وي، ځای ونیسي او د انسان لپاره به تر هر څه دمخه د ټولنې او طبیعت له قید څخه د خلاصون لاره پرانیزي، د دې ډول ټولنې ټیکاو د خیالاتو محصول ندی بلکې د پانګوالې ټولنې له واکمنې قانونمندي ځینې سرچینه اخلي چې تینښته ترې نشي کېدای. د لومړۍ نړیوالې جګړې په بهیر کې د دې ډول ټولنې جوړښت پیل شو او د دویمې نړیوالې جګړې په پای کې د هغې لمن تر هغه ځایه پراخه

شوه چې د ټول بشریت دریمه برخه یې په غیږ کې ونیوله. په خواشینۍ سره د پرولتاریا دغه ستره انقلابي لاسته راوړنه تر ډېره پاتې نشوه او د یوې سختې طبقاتـي مبـارزې او د پرولتاریا د کافي تجربې د نـه درلودلو له کبله د انقلاب موخې او مقاصد تباه شـول، خو پرولتاریا بیا مبارزه له سـره پیل کوي او پرته لـه شـک څخه د بل وار لپاره د بې طبقې ټولنـې لار پرمخ وړي. په دې ډول د پرولتاریا فلسـفه له غوره هیلو او بشـر دوستۍ څخه ډکه ده او دغه خصلت د دغې فلسـفې له ځانګړتیاؤ څخه ده چې له نورو فلسـفو څخه یې جلا کوي. د پرولتاریـا تکامـل د ټولنـې د تکامل په لور د هغوی د طبقاتي مبارزې رشـد او تکامل لوړ پړاو ته د ټولنې د رسـیدلو لـوري دي. د پرولتاریا راتلونکی هغه راتلونکـی دی چې د پانګوالې ټولنې قوانین د هغه وړاندوینه کوي. پرولتاریا او د هغـوی طبقاتي مبارزه د همدی ډول راتلونکي لپاره د خوځښـت اسـاس او بنسـټ جوړوي. مارکسیستي فلسفه د پرولتاریا فلسفه ده ځکه چې پرولتاریا د بشـریت راتلونکی دی، ځلانده او روښـانه راتلونکی. پرولتاریا د ټولو مفاسدو او چټلیو څخه د پاکې ټولنې د ټیکاو لپاره بنسـټیز رکن دی. آیا مارکسـیزم حق نلـري چـې د دی ډول راتلونکې لپاره پرولتاریا ته د خپل لید په مرکز کې ځای ورکړي؟

مارکسیسـتي فلسـفه خپل طبقاتي خصلت نه پټوي، په صراحت سره خپل طبقاتـي لوری اعلانوي او په دوامداره توګه د هغه پالنه کوي. اصولاً فلسـفه د ټولنیز شـعور یو شکل دی چې طبقاتي اړخ لري او په ژوره توګه طبقاتي موخو او ګټو سـره پیوند لري. د پرولتاریا فلسـفه او له هغې څخه دوامداره ملاتړ د ټولنې د تکامل او پرمختګ لار ده او په پای کې د ټولنې او طبیعت له شیطاني ځواک څخه د زیارکښو پرګنو او مترقي بشریت د خلاصون په مانا ده. نو ولې

په دې ډول خصلت او په دې ډول مبارزې سرپوښ کېښودل شي؟ بورژوازي يا يې په ډاګه ووايم بورژوازي فلسفه د موجوده وضعې په ساتنه او د پانګوالې ټولنې له بنسټيز بدلون ځينې د مخنيوي په هڅه کې ده، دا هغه فلسفه ده چې د انسان راتلونکې تياره کوي، طبيعت او ټولنې څخه د انسان پوهاوی او په پايله کې له طبيعي او ټولنيزو ستونزو او بنديزونو څخه د انسان خلاصون ناشونی کوي. د زبيښاککرو طبقو فلسفه ناهيليتوب، خپګان او بدبيني ځينې ډکه ده. ټولو مفاهيمو کې ګډوډي او تګماري رامنځته کوي، حقيقتونه بل ډول ښکاره کوي، پرګنې له مبارزې څخه ناهيلې کوي يا ورله غولونکې او د غير واقعي راتلونکي زيری ورکوي. دا ټولې هڅې د دې لپاره دي چې خپله طبقه او خپلې طبقاتي ګټې او امتيازات خوندي وساتي، زبيښاک او طبقاتي ستم ته جاويداني او تل پاتې بڼه ورکوي. ښکاره ده چې دا ډول فلسفې نشي کولای خپل طبقاتي ماهيت په روښانه او بربنډه توګه اعلان کړي.

په طبقاتي ټولنه کې د شعور ټول ټولنيز شکلونه لکه سياست، حقوق، هنر، مذهب او داسې نور طبقاتي خصلت لري، فلسفه هم له دې حکم څخه بهر نده، کله چې بورژوازي په سياسي او اقتصادي برخو کې قوانين او انتظامي ځواک جوړوي او د قهريه قوې په واسطه خپلو ګټو او سياسي واک څخه ساتنه کوي، څرنګه کېدای شي د ټولنيز شعور نور ډولونه لکه علم، فلسفه، مذهب او هنر ځينې ګټه ترلاسه نکړي؟ بورژوازي خپله ايډيالوژي لري او دهغې زده کړه او پالنه د ټولو عمومي رسنيو او تفريحي وسايلو له لارې په نسلونو تپي. بورژوازي په هر حال کې د کارګرې طبقې د ايډيالوژي پروړاندې راپورته کيږي او دغه کار د خپلو ايډياليوګ (ايډيالوژي جوړونکو) لخوا د هغو روڼآندو په لاس چې د دوی په چوپړ کې ځای لري، ترسره کوي. د ايډيالوژي

طبقاتي شــتون هغومره څرګند او ښکاره دی چې هر څوک يې په سترګو ويني. دا د مارکسيست فلسفې لومړنی ځانګړنه چې د هغه طبقاتي خصلت دی.

د مارکسيســت د فلســفې دويمــه ځانګړنــه د هغــې علمــي خصلــت دی. مارکسيســتي فلسفه د علومو د لاســته راوړنو پربنسټ ايښودل شوی او علومو ســره نژدې اړيکې او تماس لري. مارکسيستي فلســفه د علومو پايلې او لاسته راوړنې د مادي فلسفې پربنسټ او د ډيالکټيک د دود له مخې تحليلوي، تعميم ورکوي او نړۍ څخه يوه اړخيزه او علمي بڼه وړاندې کوي. په واقعيت کې دغه علوم مختلف دي چې د فلســفې دندو لپاره وړ مواد او مصالحې د فلســفې په واک کې ورکوي. مارکسيســتي فلســفه نه يوازې علومو څخه زده کړه تر لاسه کوي بلکې د هغو لاســته راوړنو ته په تعميم ورکولو ســره يو منسجم نړۍ ليد د علمي څېړنو دود، پلټنې او د شــناخت تيوري علومو ته وړاندې کوي. په دې ډول مارکسيستي فلسفه او علوم يو بل تکميلوي او يو د بل لازم او ملزوم دی.

مارکسيســتي فلسفه تر علومو اوچته نده، د علومو په څنګ کې يو علم دی. علم نه د مارکسيســت فلسفې څخه بې نيازه دی او نه مارکسيستي فلسفه ځان له علومو څخه بې نيازه ګڼي. دغه نظريه چې مارکسيســتي فلســفه نه يوازې د علومو لپاره ګټوره نده بلکې د هغوی د رشــد او تکامل مخه نيســي، همدا ډول دغــه نظريه چې فلســفه تعقلي ده، نه ښــايي هغو علومو ســره چې پر تجربې اســتوار دي ســروکار ولري، په پای کې دغه نظريه چې شــناخت علمي لاسته راوړنــو پورې تړلی ګڼي او هغه له فلســفې بی نيازه شــميري، د مارکسيســت فلسفې له ليد لورې په غوڅه توګه رد او رټل شويده.

مارکسيســتي فلســفه د علومو د لاســته راوړنو پر بنســټ ولاړه ده. د هغې اصول، حکمونه او قوانين د علومو پايلو ســره سمون لري او د علومو پايلې او

لاســته راوړنې هم د مارکسيست فلســفې اصول، حکمونه او قوانين تاييدوي. په دې ســترګې پټيدلی نشي چې مارکسيستي فلســفه يوه علمي نړۍليد ده. که څوک د مارکسيست فلسفې له علميت څخه انکار کوي، يا يې په موضوع سر نه خلاصيږي يا حقيقت په درغلۍ سره نسکوروي.

اســلامي رياليستان مارکسيزم ســره د مقابلې لپاره ډېره هڅه کوي، ترڅو د مارکسيست فلسفي علمي پايلو څخه انکار وکړي پرته له دې چې کوم دليل يا شــاهد وړاندې کړي. «اصول فلســفه و روش رياليزم» د لمړي ټوک پيلامه کې په ښــکاره ډول خپله موخه ماترياليزم ډيالکټيک ســره مبارزه کول اعلانوي او ليکي:

«ماترياليزم ډيالکټيک او د هغه د پلويانو ادعا ســره ســره بيا هم ماترياليزم ډيالکټيــک هيڅ کلــه هم علومو ســره اړيکې نلري، د هغه ټــول اصول يو ډول شــخصي تحريفات او اســتنباطات دي چې يو شمير کسانو د خپلې سليقې له مخې کړي دي»[۲۴]

رښــتيا هم يواځې اســلامي جرئت کولای شــي چې په دومره بی پروايي او سپين سترګيتوب حقيقتونه تر پښو لاندې کړي. همدغه ليکونکی د څو لسيزو تر تيريدو وروسته مجبوريږي چې خپل نظر سم کړي او ووايي:

«دغه مارکسيســتان لــه يوې خوا وايي چې زموږ فلســفه علمي فلســفه ده يعنې ســل په ســلو کې يې پر علومو بنســټ ايښودل شــوی، د فلسفې د پايلی بنســټ او مبادي علومو څخه اخيستل شــوی په واقعيت کې علمي قواعدو ته تعموم ورکول دي او د هغو مسائلو ترمنځ د پل حيثيت لري چې په علومو کې ثابت شــويدي او د دغې ټولګي څخه يې د علمي فلســفې په نوم فلسفه منځته راوړې چې هيڅکله هم نشــي کيدای په دې ډول کړنو ټولټال داسې فلسفه چې

فيلسوفانو جوړه کړې جوړه کړي»[۲۵]

معلوميږي چې د څو کلونو په تيريدو سره د ليکونکي سوچ او نظر کې د ناچارئ له مخې د مارکسيست فلسفې په اړه خپل چلند کې يو څه اوښتون (تحول) منځته راوړي. اوس دا خبره نشته چې«ماترياليزم ډيالکټيک... علومو سره اړيکه نلري». دا خبره نشته چې د ماترياليزم ډيالکټيک اصول شخصي تحريفات او استنباطات دي، خبره د دې په سر ده چې د دې فلسفې مبادي او استنتاج د علومو پربنسټ منځته راغلی، مارکسيستي فلسفه په واقعيت کې د علمی قواعدو تعميم دی او د هغو مسايلو په منځ کې چې په علومو کې ثابت شوی د يو«پل حيثت لري» البته دا د مارکسيستانو له خولي وايي. نو بيا د شخصي تحريفاتو او استنباطاتو او علوموسره د نه اړيکو خبره نشته، خو دا ځل د مارکسيست فلسفې د انتقاد او رټلو لپاره دغه لاسوندی (دست اويز) ته لاس غځوی، چې په استنتاجاتو تکيه کول او د علومو په لاسته راوړنو او هغوی ته تعميم ورکولو سره نشی کېدای چې«فلسفه په هغه کليت سره کومه چې فيلسوفانو جوړه کړی جوړه شی» او دا رښتيا ده د فلسفی هغه دوران چې «فيلسوفانو په هغه کليت سره جوړی کړی» پای ته رسيدلی. مارکس او مارکسيزم هم په دې باور نلري چې دا ډول فلسفه جوړه کړی. پداسې دوران کې چې علومو په حيرانوونکې توګه پرمختګ او پراختيا موندلی، د انسان شناخت ته يی د اتم له کوچنۍ زری څخه نيولی د کهکشان تر سترو ستورو په بیساري توګه پراختيا ورکړی او ورکوي يی نور نو هيڅوک په دې ليونتوب لاس نه پوری کوي چې د تړلو دروازو شاته کښيني د تخيلاتو او سوچونو په نړۍ کې پداسې کليت سره چې کانت، هيګل يا حتی فويرباخ جوړه کړی جوړه کړې. علمی فلسفې کلاسيکې فلسفي ته د پای ټکې کېښود، علم د نړۍ

پېژندنی اړوند مسايلو ته ځواب ورکړ يا ځواب ورکوي. يواځېنی ممکنه فلسفه هغه فلسفه ده چې د علومو د پايلو او تعميم پر بنسټ جوړېږی او دا هماغه دمارکسيستي فلسفه ده.

په علمی فلسفه کې داسې مسئله نشته چې په علمی بنسټ ولاړه نوی او داسې مسئله هم نشته چې علم (هر علم) ته اړتيا ونلري. يواځې مارکسيستي فلسفه ده چې د نن او سبا ورځي فلسفې مسايلو ته ځواب ورکوونکې ده. البته د دی ډول فلسفی عاشقان اوس هم کولای شی چې خپل ځان او نور پداسې مسايلو لکه روح، ماوراء طبيعت، د اخرت نړی، د انسان فطرت، د انسان حقيقت، توحيدی نړی‌ليد او په داسې نورو خبرو بوخت وساتی. هغوی چې په علم باور نلري هيڅکله نه خلع سلاح کيږي. سره له دې چې علم هغوی له يو مورچل څخه بل مورچل ته په شا تمبوی، خو د هغوی طبقاتی ګټې ايجابوی چې علم څخه مخ وګرځوی. دا مسايل ټول خيالی او له دې نړۍ څخه چې موږ په کې ژوند کوو بيګانه دی، هغه به هيڅکله هم پرته له هغه چې علم ورله ځواب ورکوي بل څه ځواب ورنکړای شی.

د مارکسيست فلسفې دريمه ځانګړنه د هغی انقلابی خصلت دی. که تيرې فلسفې يواځې د نړۍ په تفسير او بيان بوخت وې او د دی کار لپاره يی خپل افکار او سوچونه پکارول، مارکسيستي فلسفه د نړۍ په اړه ځانګړی چلند لري. مارکسيستي فلسفه په دې باور ده چې د فلسفی دنده يواځې د نړۍ تفسير او بيان ندی بلکې تر هر څه د مخه د هغې د بدلون او بدلون لارښوونه ده. «فيلسوفانو يواځې د نړۍ تفسير او بيان کړيدی، خو اصلي خبره د هغې د بدلون او بدلون خبره ده». تر مارکس د مخه سره له دې چې ماترياليزم د طبيعت پديدی په صحيح توګه توضيح کوي خو د متافزيک له اړخه، کله

چې به يې پېښې ټولنې ته وغځېدې په ځای به پاتې شو او ایدیالیستی ځانګړنه بـه يــې غوره کړي. تر مارکس د مخه د ماتریالیزم لپــاره د ټولنې تحول د افکارو او ســوچونو ثمــره ګڼل کېــده، د واکمنو او اتلانو افکار او ســوچونه د تاریخي تحولاتو او خوځښــتونو سرچینه شمیرل کېده. مارکس ماتریالیزم د ټولنې ډګر تــه رامنــځ ته کړ، د ټولنې د تفســیر او بیان لپاره یې په کار واچوه، د لمړي ځل لپــاره د فلســفې په تاریخ کــې د انســانانو د ټولنیز پراتیک د نقــش په ماهیت وپوهیــدل او د فلســفې پــه دایره کې د پراتیــک منځ ته راوړلو ســره تیوري او پراتیــک پــه خپلو کې ډیالکتیک یوالي ترلاســه کړ. د تیــوري او پراتیک یوالي دې پایلې ته رســیږي چې مارکسیستي فلســفه یواځې علمي نړۍلید نه بلکې د عمل لارښــود او د مادي نړۍ د بدلون لار ښــود هم دی. د تیوري او پراتیک نه شــلیدونکې یووالی مارکسیست فلسفې ته ژوره انقلابي ځانګړتیا ورکوي. د موجوده ټولنې د ژور اوړون (تحول) او بدلون په موخه په مارکسیست فلسفې باور او په انقلابي مبارزې ټینګار پرته له شــک څخه نوې ټولنې ته د رســیدلو یواځېنۍ لار ده. دا د مارکسیســت فلســفې یو له غوره ځانګړتیاو څخه ده چې نه ښــایی هغه له پام څخه لیري کړو. له پراتیک څخه پرته مارکسیســتي فلسفه به یوه خوا، مړه او بې شــکله زده کړه وي، انقلابی روح، ډیالکتیکي روح چې د هــر اړخیــزو تضادونو د تکامل زده کړه ده له هغې ځینی اخیســتل کیږي. له همــدې ځایــه ده چې د طبیعــت، ټولنې او تفکر د عینــي قانونمندی پیژندنه د کارګري طبقې د ګوند فلسفی بنسټ دی او د نړۍ د بدلون لپاره له هغې څخه د یــوې توپاني ایدی په توګه د کارګری طبقې موخو (سوســیالیزم او کمونیزم) ته د رســیدو جوګه کیږي. لکه چې وینو مارکسیســتي فلسفه ټولنیز ژوند څخه بیګانه تیوري نده، یو علم دی چې د انسان د مبارزی لپاره بنسټیز نقش لري.

په مارکسیستانو نیوکه کوي چې مارکسیستان ولی وایی هر هغه څوک چې مارکسیزم نه پیژني حق نلري چې په هغه نیوکه وکړی، دا ربښتیا خبره ده. د هری مسئلی په قضاوت کې ناچار یو، هغه وپیژنو هر څومره چې د یوې مسئلې په اړه هر اړخیزه او ژور پوهاوي ولرو قضاوت هم د هغی په اړه صحیح او د منلو وړ وي دغه حکم چې «پرته له تحقیق څخه د خبرو حق نشته» (مائو) صحیح خبره ده. په مارکسیزم باندی تر نیوکې وړاندی باید پر هغه وپوهیږو یایی وپیژنو. خو په اسلامي ایران کې هر عمامه لرونکي او بږیرور چې د هر او بر تر منځ توپیر نشی کولای ځانته اجازه ورکوي چې په مارکسیزم نیوکه وکړی.

کله چې یو اخوند د جماعت په لمانځه کې ادعا کوي وایی چې:

«اصولاً اخلاق، رحم، زړه سوي، فداکاری، مروت، ایثار او داسې نور د مارکس مکتب کې په اساسي توګه ځای نلري له تبعیض پرته د یوې سالمی انسانی ټولنی جوړول چې په اخلاقو سمبال وی د مارکس په برنامه کې ناشوني کار دی او د هغه په لټه کې هم ندی»

هغه چې د مارکسیزم له الفبا څخه بی خبره ده هیڅ، خو چې مارکسیزم د «ولایت فقیه» او اسلامي جمهوری له قیاس ځینی راکاږی دا سړي منتقد نه بلکې مفتری دی.

کله چې یو «استاد»، «علامه» تور د سپین په مخ راکاږی:

«مارکسیستان چې دا ډول اصلاحاتو سره لکه روغتون، یتیم خانه او داسې نورو جوړښتونو سره مخالف دي، که څه هم دغه اصلاحات د وضعی او حالاتو د سمون لپاره هم وی خو چې د انقلاب مخنیوی کوي هغه سره مخالفت کوي... خلک باید تر دی زیات محرومیت وګالی تر څو موجوده وضعی څخه د خلکو د ناراضی توب کچه نوره هم لوړه شی او انقلاب ژر تر

ژره پای وومومی»(مارکس او مارکسیزم دریم دفتر ۱۶۰ مخ)

باید ومنو چې «اســتاد» نه یواځې مارکسیزم څخه اګاهی نلري او مارکسیزم ځینی د لویدیځوالو دښمنانو په خبرو شخوند وهی، بلکې په هغه واقعیاتو چې په ســترګو یی وینی هم په بی پروایی ســره تیریږی یا یی مارکســیزم ته نسبت ورکــوي او ادعــا کوي چې «حقانیت مســاوی ده له بریالیتوب ســره، که موږ بریالی شــو حــق زموږ دی»(هماغه ځــای ۲۴ مخ). یا دا چې په مارکســیزم کې «موخه وســیله توجیه کیږي»، ډېری داسې نور اسناد. آیا بیا هم کولای شو چې ووایو دا خلک مارکسیزم پیژنې؟

د مارکســیزم پیژندنه مارکسیســت کېدو پوری هیڅ اړه نلــري، د بورژوازی ایدیولوګانو په منځ کې کېدای شــی داســې کسان پیدا کړو چې مارکسیزم پیژني خو مارکسیســت ندی. کېدای شــی مارکسیستي فلســفه د مادی نړۍ د تکامل د ډېــرو عامــو قوانینو د تفکر له مخی زده کړو. یا پانګه‌واله سیاســی اقتصاد د مارکــس د «کاپیتال» له مخی یا د سیاســی اقتصاد د زده کړی کتابونو څخه تر لاسه کړو. د لنین زده کړی د هغه د بشپړو اثارو له مخی چې د ټولو په واک کې شــتون لري تر لاســه کېدای شی. د مارکســیزم پیژندنه کمونیست یا کمونیست کېــدو پوری تړلی نده، هغــه کس چې په واقعی توګــه ماتریالیزم وپیژانده هغه کولای شی چې په ماتریالیزم نیوکه وکړی. سربیره پر دي مارکسیزم نه وایی:

«تر څو مارکسیســت نشــی، نشــی کولای مارکســیزم وپیژنــي او که څوک مارکسیست هم نوی او نیوکه وکړی وایی چې «څرنګه چې مارکسیست ندی، مارکسیزم نه پیژني»(«مارکس و مارکسیزم»، دریم دفتر ۱۰۶ مخ)

له دی سره باید په دې ځای کې دوه ټکو ته پام وکړو: لمړې دا چې مارکسیزم لکه د هر بل شــناخت په څیر له ټولنیز پراتیک څخه ســرچنه اخلی. پراتیک له

چاپيريـال څخـه د انسـان د پيژندنې منشـاء او مبداء ده. تر څـو د پراتيک په واسـطه خپل چاپيريال ته بدلـون ورنکړی هغه څخه پيژندنه تر لاسـه کولای نشی. د منې پيژندنې لپاره بايد هغه په غاښو وچيچی، هغه بايد غوڅه کړې تر څـو د هغی منځ او دانــې ووينې، هغه بايد کيميايی تجزيه کړی څو يې داخلی مواد وپيژني. د اتم د کوچنيو ذراتو د پيژندلو لپاره بايد هغه وسـپړی ،د اتم له سپړلو او د هغه د هستي ماتولو پرته چې د دی کار لپاره لازم وسايل او سامان پکار دی آتم پيژندلی نشــی او د اتم فيزيک خپلو اړونده تيوريګانو سره منځ ته نـه راځي. هر څوک کولای شــی پرته له دې چې په خپلـه د اتم په ماتولو لاس پوری کړی، کولی شي د اتم فيزيک سره د مطالعی له لاری د اتم زراتو او دهغه اړونده تيورې سره اشنا شی. خو هيڅکله دې له ياده ونه باسي هغه څه چې په واک کې لري او تر لاسه کړی مو دي، هغه د نورو د ټولنيز پراتيک پايله ده چې ور څخه ګټه پورته کوئ. د اتم د پيژندلو منشـاء پراتيک دی، که زه په هغه کې برخه ولرم يا برخه ونلرم. خو که چېری په خپله انسـان په پراتيک لاس پوری کړی له موضوع څخه لا زيات دقيق شناخت تر لاسه کوي حتی امکان لري د دی شناخت په ژورتيا او پراختيا کې شريک شی.

اساسـاً د علومـو پرمختک چې په هره برخه کــې وی د پراتيک د دوام ثمره ده، دا واقعيت دی چې انســانی ټولنه تر دوه ميليونه زياتو کلونو په جريان کې ښــودلی ده چې د مارکســيزم تيوري له دې قانون ځينی جلا نده، دغه تيوري د بشريت په تاريخ کې د انسانانو د پراتيک ثمره ده، د طبقاتی مبارزی د پراتيک ثمـره، د مـادی نعمتونو د توليد پــه خاطر مبارزه او د چاپيريـال د پيژندنی په خاطر علمی مبارزه. منل شويده چې هر څوک کولای شی دغه تيوريکې لاسته راوړنې چې له پراتيک څخه راپورته شوی زده کړی.

خو هر څوک چې مارکسیزم زده کړي، مارکسیست ندی او دا دویم ټکې دی چې باید پام کې ونیول شي. د مارکسیزم فلسفه د ډیالکټیکې تیوري او پراتیک وحــدت دی. تیوري(د مارکســیزم پیژندنه) یواځــې د دې د وحدت یو مخ دی. هغــه څــوک چې د تیوري په زده کړی قناعت وکــړی او په پراتیک لاس پوری نکړی مارکسیســت ندي. د تیوري او پراتیک یووالي مارکســیزم څخه انقلابی زده کړه جوړوی. که هر یو له دغه دوه غاړو څخه یو حذف شی د مارکسیست فلســفی ځینی خبــری کول عبث او بی مانا خبری دی. تیــوري پرته له پراتیک څخه مړه ده همدا ډول پراتیک پرته له تیوري ځینی راتلونکې تفکر او لیدلوری نلري. هغه څوک چې واقعاً په مارکسیست فلسفی ایمان لري تیوري له پراتیک ځینی نه جلا کوي. له دې پرته په دې صورت کې د مارکسیست فلسفی یو رکن تر پښو لاندې کوي. مارکسیست د انقلابی مبارزی په جریان کې مارکسیزم ښه پیژنــي، د هغی انقلابی روح تر لاســه کوي او پــه خپله د پراتیک په جریان کې نوې تجربي لاس ته راوړی چې کېدای شی د مارکسیزم په غنا او پیاوړتیا پای ته ورســیږی. مارکسیستي فلســفه، د یوی تیوري په بڼه ټولنیز پراتیک څخه را ټوکېدلی او د ټولنیز پراتیک په لړ کې یی تکامل پیدا کړی، پیداکوي یی او پیدا بــه یی کړی. هغه څوک چې د مارکســیزم پوهاوې، عملې فعالیتونه او انقلابی مبارزی ســره یوځای کوي او په کتابی زده کړو قناعت نکوي، په یقین ســره له مارکسیزم ځینی ژور او هر اړخیز پوهاوي لري. دغه صحیح خبره ولی «عجیبه غلطی» نومول کیږي؟ ولی «یو ځوان چې تر تبلیغ لاندې نیول کیږي له عجیبه کوډ لوبی (شعبده) سره مخامخ کیږي»(هماغه ځای ۱۰۵ مخ)

عمل ســره د تیوري یوځای کېدل چې د ټولو لپاره د منلو وړ ده د «اســلامي ریالیــزم» پــه قاموس کــې ولی «مغالطــه او کوډ لوبــه» نومول کیــږي؟ علم د

پیژندګلوې کتاب دی، خو یوه خوا ده، نیمګړی ده. ښـایی هغه عمل سـره یو ځای کړو تر څو دهغه نیمګړتیا وپیژندل شی او له منځه یوړل شی. البته د هغه کسـانو سـروکار چې د ګرد وهلو کتابونو پاڼو اړولو سره ده، او سروکار یی له احادیثـو او روآیاتو سـره دی، د تیوري او پراتیک یووالـی ورله مطرح ندی او په مطلق ډول په هغه نه پوهیږی. خو مارکسـیزم واقعی علم سره سروکار لري او پوهیږی لکه د هر بل علم په شـان باید عمل سـره یو ځای شـی تر څو هغه پوهاوی نور هم پسی دقیق او هر اړخیزه شی.

علم که څه هم زیات ولولې خو که عمل در کې نه وي ناپوهه یې

په هر حال د پراتیک (پراکسیس) فلسفی مفهوم چې تر مارکس د مخه یی په فلسفه کې ځای نه درلود او که یو کم شمیر فیلسوفانو لکه فویرباخ او هیګل هغه ته اشاره هم کړی خو د هغه له څنګ څخه تیر شوی دی، پراتیک له ټولنیز واقعیت څخه راپورته شـوی ده. انسان د طبیعت یوه برخه ده، د دی لپاره چې ژوندی پاتی شی ناچاره دی چې تل باید طبیعت سره په اړیکه کې وې. باید تل خپل طبعی چاپیریال ته بدلون ورکړی تر څو هغه ته ژوند په برخه شی. طبیعت سره د انسان د اړیکو چلند هم اګاهانه دی او هم ټولنیز. پراتیک (پراکسیس) همدغه د انسان مقابله له طبیعی چاپیریال او ټولنی سره دی. داسې مقابله چې شعور د هغه لارښوونه کوي او د ټولنی په چوکاټ کې منځ ته راځي. ښکاره ده چې پراتیک له آسمان ځینی راکښته شوی نده او دعلوی عالم څخه مارکس ته الهام شوی نده، پراتیک د مارکس په فلسفه کې د مادی نړۍ د بدلون او بدلون لپاره د ټولنیزو چلندونو ټولګه ده.

پراتیـک مختلـف اړخونـه لـري: تولیـدی فعالیـت، سیاسـی فعالیت، په ازموین‌ځایونـو کې پوهنیز فعالیتونه چـې په دې فعالیتونو کې تولیدی فعالیت

بنسټیز مقام لري چې د هغه په مرسته انسان نه یواځې ځان د حیواناتو له نورو څخه جلا کوي بلکې دا هغه مقام دی چې د انسان ژوند او د حیات بقا سمبالوی[۳] د پراتیک بل اړخ تولیدي فعالیت پوری تړلی دی په ورته وخت کې هر یو له دغه فعالیتونو څخه په خپل وار په تولیدی فعالیت اغیز کوي او مخ په وړاندې یې وړي.

پراتیک د انسان د ژوند یواځینی بنسټ او تګلاره نده، د انسان د شناخت تیوري هم له پراتیک څخه سرچینه اخلی. د بشری پوهی مبداء او بنیاد، د صحت معیار، موخه، هڅونکې ځواک هغه مسائل دي چې له ډیر وخت څخه یې را په دې خوا د فیلسوفانو فکرونه ځانته اړولي دي. تر دی پخوا او د نن ورځی بورژوازی فلسفه له هغی ټولګې اسلامي ریالیزم د مسئلې د حل لپاره رواني او عاطفي لاملونه پکارول، د بیلګې په توګه د زده کړی ځواکمن محرک یې له پوهی او دانایی سره عشق او مینه په نظر کې نیولی د «اصول فلسفه و ریالیزم اسلامي» په پیلامه کې دا ډول لیکې:

«که چیری د انسان علاقه‌مندی یواځې د خپل ژوند د مادی اړتیاؤ پوره کول وه نو د علم په لار کې دومره له ځان څخه تیریدنه، له عیش، خوند او د ژوند د خوشحالیو څخه صرف نظر کولو ته څه اړتیا وه؟ علم سره د بشر د روح پیوند تر دغه نورو بې ارزښته او خوارو پیوندونو ډیر لوړ دی کوم چې په لمړیو کې یې تصور کیده» (لمړی ټوک، ۳مخ)

د نړۍ د تمدن تاریخ په دې حکم د بطلان کرښه کاږی، پوهی سره عشق ولی د تاریخ په اوږدو کې کښته او پورته ځی، د یو دوران تود عشق خپل ځای بل دوران ته ورکوي او سوړ شی؟ څرنګه کېدای شی چې یونان د بردګې په دوران د پوهی او فلسفی په مرکز بدلیږی، علم او فلسفه د خپلې زمانی لوړی

ځوکې ته رسيږي او نن ورځ يونان د علمي څيړنو له پلوه د نړۍ د وروسته پاتې هيوادونو په کتار کې ځای نيسي؟ آيا يونانيانو په لرغوني دوران کې علم او فلسفي سره ډېر عشق پاله او نه‌نني يونانيان علم سره لږ عاشقي پالي؟ که داسې وي بايد په ډاګه يې کړو چې علم سره د انسانانو د عشق د ادلون بدلون لامل له کوم ځايه او د څه شي تر اغيز لاندې منځ ته راځي؟ څرنګه وشول چې تر سلګونو کلونو چوپتيا وروسته په اروپا کې له علم او پوهې سره عشق په ناڅاپي ډول ځلانده کيږي او همدا ډول دوام مومي؟ څرنګه وشول چې په شلمې پيړۍ کې د علم مرکز له اروپا څخه اتازوني ته انتقال کوي پداسې حال کې چې نه چندان ليرې وخت کې علم هلته ښه والی نه درلود؟ جاپان ولې شاوخوا سل کاله مخکې علم او پوهې سره تود عشق او مينه پيداکړه چې آن په ځينو څانګو کې تر امريکا وړانده تللې؟ ولې.....

پوهې سره عشق او مينه نه يواځې د خلکو د تاريخ په اوږدو کې د سمون او رکود دورانونه له سره تير کړي بلکې د مختلفو هيوادونو په منځ کې هم يو ډول ويشل شوی نده. لکه چې ګورو نن ورځ وروسته‌پاتې هيوادونه د علم او تخنيک د پرمختک له پلوه له پرمختللو هيوادونو څخه ورځ په ورځ په لوی واټن کې تر شاپاتې کيږي، دا هغه واقعيتونه دي چې وروسته پاتې هيوادونه دې ته اړباسي تر څو هغوی ته د علم او تخنيک د زده کړې لپاره د سوال لاسونه وغځوي. علم او پوهې سره عشق ولې د نړۍ له درې برخو څخه په دوه برخو خلکو کې نه تر سترګو کيږي؟ د علم او تخنيک د پرمختک توپير ولې د جاپان، چين يا ايران او المان تر منځ دومره زياد دی؟ آيا چينايان او ايرانيان علم او پوهې سره عشق نلري؟ که چېرې د «اصول فلسفه» ليکوالو د دې مسئلې په هکله ژور فکر کړې وای د ځواب لپاره يې په غور سره څيړنه

کړی وای ښایی بل ډول یې فکر کړی وای، نو د مسوولیت له مخې به یې قلم د کاغذ په مخ کا ږلی.

البته هغه علم چې اسلامي ریالیزم ور څخه خبری کوي هاغه علم ندی چې ټول پر هغه پوهیږی، اسلامي ریالیستان دغه پټ راز د عمومی افکارو د فریب لپاره پټ ساتی. د اسلامي ریالیستانو په وړاندی علم په دې ډول یو شئ دي:

«د اسلام اصول او فروع د هغه په استناد ثابتیږی یعنې قرآن، سنت لکه د قرائت علم، د تفسیر علم، د حدیث علم، د نقلی کلام علم، د فقه علم او د نقلی اخلاقو علم» («علوم اسلامي»، مطهری، ۱۰ مخ)

په لوړه کچه کولای شو چې «فلکیات»، حساب، هندسه او طب (ابوعلی سینا) په هغو ور زیات کړو. د «فلکیاتو» په اړه دا ډول زیاتوی:

«د نجوم علم تر هغه ځایه چې ریاضیاتو پوری اړه لري او د آسمان مکانیزم بیانوی او یو سلسله ریاضی وړاندوینی لکه خسوف او کسوف په ګوته کوي د اسلامي علومو د مباح ځانګه ده. خو کله چې د ریاضی محاسبی له حدودو څخه بهر ته وځی، د مځکې او آسمان تر منځ مرموزو پیښو سره اړیکه نیسی د اسلام له نظره حرام دی.» (هماغه ځای)

په دې ډول د آسمانی اجرامو پیژندنه نباید د خسوف او کسوف له حدودو چې د بطلمیوس او المجستی په کتاب کې د «فلکیاتو» په اړه تاکل شوی وړاندی لاړ شی. اوس په همدی مفهوم علم د مادی اړتیاؤ د رفع کولو لپاره په کار اچول دی. د هغه قشر مادی اړتیاوی چې دغه «علوم» د رزق پیدا کولو لپاره د وسیلی په توګه پکاروی

د پراتیک بنسټیز اهمیت د انسان د ژوند په مختلفو برخو کې او همدا ډول د ټولنی پرمختګ او ترقی د دی شاهدی ورکوي چې شناخت له همدی لاری

تر لاسه کيږي. پراتيک په لمړی سر کې د شناخت بنسټ او د شناخت پيلامه ده او هغه وسيله ده چې د هغی له لارې د شيانو عينې واقعيت، ځانګړتياوی او د هغوی تر منځ اړيکې د انسان په لاس ورکوي. انسان د خپلو پنځه ګونو حواسو او خپل مغز يا په بل عبارت د خپل مادی فعاليت له مخی خارجي نړۍ څخه شناخت تر لاسه کوي: د «احساس» له لاری هغه واقعيتونه راټولوی چې طبيعت د انسان په واک کې ايښودی دی، د تجربې، ماشين آلاتو او نورو وسايلو په مرسته يی له طبيعت څخه راکاږی کوم چې په هغه کې پټ پراته دی. دا هغه واقعيت دی چې د طبيعت د شناخت ټول تاريخ هغه په اثبات رسوی. هر څومره چې پراتيک ډېر مترقی او تکامل يافته وی په هماغه اندازه د انسان شناخت هر اړخيز او ژور وې. ښکاره ده چې له اوسنې تکامل يافته پراتيک پرته د فضايي بيړيو او سپوږمکيو جوړول ناشونې وو. همدغه وسايل دي چې له فضا څخه يی د انسان شناخت نوې پړاو ته په لاره اچولی دی. د اتم د هستي ماتول او د هغه د متشکله ذراتو پيژندل اوسنيو ډېرو پيچلو دستګاه ګانو ته اړتيا در لوده، همدغه دستګاه ګانې دې چې د انسان شناخت يی د اتم د جوړښت په هکله مخ په وړاندی بوولي دي.

پراتيک د شناخت يوائځني بنسټ او مبداء نده. د حقيقت معيار او د محک ډېره ده، يوائځي پراتيک کولای شی چې د مسئلې صحت او سمون په ډاګه کړی، مارکسيست فلسفی په لمړی ځل د فلسفی په تاريخ کې د حقيقت معيار په لاس راکړ. تر مارکس وړاندی فيلسوفان په دې آند وو چې نشوکولای د حقيقت لپاره معيار وټاکو، په دې اړه هرهغه څه چې موږ يې حقيقت وشميرو معلومه نده چې حقيقت به وي او که موږ خپله انديشه او خپل سوچ حقيقت شميرو. خو د هغی انديشی د حقيقت معيار چې په خپله د حقيقت معيار دی

څه شـئ دی؟ امریکایی فیلسـوف ویلیام جیمز، ګټورتوب د حقیقت معیار په ګوته کوي: «هر هغه څه چې په ټولنه کې ګټور وی حقیقت دی» خو ګټور د چا لپاره؟ دغه مسئله چې د علمی حقیقت لپاره څه ډول محک وړاندی کولای شو ځواب یی د جیمز په پراګماتیزم کې نه پیداکیږي. دغه معیار یواځې او یواځې پراتیک دی او بس.

پورتنیو مطالبو څخه څرګندیږی چې د انسان د ژوند چلند او تګلاره همدغه پراتیـک دی، ټولنیز چلنـد چې د مادی نړۍ چاپیریال تـه بدلون ورکوي او په بلـه بڼـه یی جوړوی. پراتیک یوه فلسـفی مقولـه ده چـې د ماتریالیزم له لمن ځینی ټولنې ته راغلې او تر همدی عنوان لاندې یی د مارکسیسـت په فلسـفی کـې ځای پیداکړی. خو د ډاکټر شـریعتي په ګمان د «پراکسـیس» مقوله ګویا مارکس د دی لپاره اختراع کړیده چې خپل «جبر تاریخ» تعدیل کړی. «مارکس د خپـل کار پـه منځ (او په بل ځای د کار په وروسـتیو کې راغلی دی/ ف.)[۴] متوجه شـوی چې دغه د تاریخ جبر کوم چې مارکس وړباندی ډډه لګولی هغه د انســان رسالت او د روڼ آندو رسالت نقض کوي نو ناچاره شوی چې مسئله د«پراکسیس» په نوم مطرح کړی»

هغه د مارکسیســت په فلسفه کې د پراکســیس محتوا سیاسی محیط پوری محدودوي او لیکي:

«کله چې مارکس د انقلاب لپاره بلنه ورکوي باید انسانی عمل د تاریخ جبر په وړاندې په رسمیت وپیژني او د شناخت په پای کې وینو چې د پراکسیس په مسئلې ډډه لګوي»(«مذهب و تکامل نړۍ لید»، نشر پیام و خون، ۶، ۹مخ)

د اســلامي ریالیســتانو لپاره د «تاریخ جبر» مفهوم یوه داسـې ګرانه معضله ده چې هغوی یی هیڅکله د درک توفیق تر لاســه نکړای شو. هغوی د «تاریخ

جبر» د یوې هیولا په بڼه مجسم کوي چې له بنسټ څخه په لار لویدلی او په ټاکلی مسیر تګ کوي او په دې مسیر کې انسانان تر پښو لاندې ځپې او مخ پـه وړاندې درومې او انسانان د هغه په وړاندی پرته له تسلیم کېدو بله چاره نلري. هغوی د «تاریخ جبر» په مارکسیستي فلسفه کې هغه ډول ویني لکه د برخلیک او تقدیر په شان. اسلامې ریالیستان د«تاریخ جبر» په اړه دغه فکر القاء کوي چې:

«همدا د "تاریخ جبر" ده بله هیڅ چاره وجود نلري. زموږ اراده هم د برخلیک په اړه، د اوضاع او احوال په هکله هیڅ اغیزه نلري»(هماغه ځای)

په رښتیا دغه د «تاریخ جبر» څه شئ دی چې د مارکسیزم مخالفانو څخه په ځانګړې توګه د اسلامې ریالیستانو څخه لار ورکه کړی او دومره یې فکرې خپکان سره مخامخ کړیدی؟ د «تاریخ جبر» په دې مانا ده چې ټولنه هم د طبیعت پـه ډول د عیني قانونمندیانو مطابق تکامل مومې، هغه تکامل چې ټولنه وار په وار د بیدیایی(بدوی) ژوند له پړاو څخه عالی او لوړ پړاو ته مخ په وړاندی کاږی. د ټولنیز تکامل قوانین لکه د طبیعت قوانین د انسان له ارادي او شعور څخه مستقل دي، انسان کولای شی هغه هم لکه د طبیعت قوانین وپیژني او د ټولنې له قیوداتو څخه د خپلې آزادي لپاره تری ګټه پورته کړی. د «تاریخ جبر» هماغه د ټولنی قانونمندانه تکامل دی نه هیولا چې هرڅه او هر څوک د لاری په سر ورټې او وټکوې، په خپله ډاکټر شریعتي په ټولنه کې د تکامل په قوانینو باورمند دی:

«هغه څه چې د دې دوه ځوانو علومو (ټولنپوهنه او تاریخ) په اړه منل شویدی هغه د قوانینو شتون دی. خو هر مکتب ټولنه په ځانګړی توګه تر شننې لاندې نیسی او قوانین د هغه په بنسټ استنباط کوي... دغه علم باید په هغه

اندازه پرمختګ وکړی تر څو موږ وکولای شو خپل منځی اختلافات یوی خوا تــه پریږدو او هغه ډول چې د طبیعی مســایلو په هکله هیڅوک د نظر اختلاف نلري، په انسانی مسایلو کې هم اختلافات له منځه لاړ شی»(«فلسفه انسان»، دریم دفتر، ۸۰مخ)

که چېری قوانین په تاریخ لکه د طبیعت په شان حکم چلوی ښکاره ده چې ټولنه او تاریخ هم لکه طبیعت دعیني قوانینو پر بنســټ، چې د انســان له شعور او ارادي څخه مســتقل قوانین دی تکامل مومی او د «تاریخ جبر» له دې پرته بل څه ندي. ډاکټر شــریعتي تصور کوي چې په اوســنې ټولنه کې کېدای شی د ټولنیزو قوانینو په سر هم لکه د طبیعت د ډېرو قوانینو په شان اتفاق ته ورسیږو او اختلافات له منځه یوسو. دا د هغه له ټولنې څخه د ناپوهی لویه تیروتنه ده. کــه چېری د طبیعت د عینې قوانینو کشــف، په زیاتو برخو کې د انســانی ډلو ګټو ســره ټکر نکوي له همدی کبله په اســانی سره د منلو وړ ګرځی خو په ټولنه کې دا شان نده. ټولنیز قوانین د ټولنې د طبقاتو او ډلو له ګټو او موخو سره ټکر کوي چې په پایله کې په اسانې سره ځانته ځای خلاصولی نشی. په ټولنه (حتی کلــه ناکله په طبیعت) کې طبقاتی ځواکونه د قوانینو یا هغه اکتشــافاتو تر بار لاندې نه ځې کوم چې د هغوی له ګټو سره سمون ونلري. ستمګر او زبیښاکګر طبقــات د ټولنــې د تکامــل عینې قوانین په رســمیت نه پیژنــي ځکه چې دغه قوانین ټولنه په هغه لورې پر مخ کاږی کوم چې د هغوی په ورکاوي تمامیږی. ښکاره ده چې هغوی دا ډول قوانین نه مني او د هغه د بی باوره کولو په موخه په مبارزی لاس پوری کوي. د طبقاتی مبارزې قانون له هغې ټولګې په اوســنې ټولنــه کــې د پرولتاریا او بورژوازی تر منځ مبارزه یــو نه انکار منونکې واقعیت دی چې هر څوک یی پخپلو سترګو وینی. خو له دې سره سره زبیښاکګر هغه د

مارکسیزم جوړجاړی بولی او د طبقاتو په وحدت او یووالی (ملی وحدت) ډډه لګوي. آیا دا امکان لري چې زبیښــاکګره طبقه د کارګرې طبقې مبارزه د ژوند او کار د ښــه والی لپاره او تر هغی بدتر د واکمنو زبیښــاکګرو د نســکورولو په موخه او د زبیښاک له منځه وړلو لپاره مبارزه چې د پانګوالي ټولنی انکارناپذیر قوانیــن دی په رســمیت وپیژني او په هغې به باور وکــړی؟ په یاد یی کړو چې کلیســاګانې څه ډول د داروین نظرئ سره په مبارزی راپورته شوی تر څو هغه بی اعتباره کړی. اسلامي ریالیزم اوس هم دغه نظریه نده منلی. ډاکټر شریعتي چې په خپله د داروین نظریه یو ارزښــت ګڼی، او د انســان پیدایښت له خټو او د خــدای روح څخه ګڼی. مذهب نشــی کولای د ژوندیــو موجوداتو تحول په ځانګــړی توګه د انســان پیدایښــت د نړی د حیواناتو لــه ټولګې څخه ومنی په دې ډول هغه ســره په مخالفت کې راپورته کیږي (لکه چې په اولســمې پیړی کــې د ځمکې حرکت په هکله دګالیله نظر ســره مخالفت وشــو) هر کله چې فرصــت په لاس ورشــی پــه ټولنه کې د هغی د له منځه وړلــو لپاره هڅه کوي. همدا اوس امریکا کې کوښــښ کیږي د پیدایښت نظریه چی له علمی او درسی کتابونو څخه ایســتل شــوی وه، لږ تر لږه یی د دویم ځل لپاره د موجوداتو د تحــول نظــرې تر څنګ ځای ورکړی تر څو دغه دواړه نظریو ته په یوه ســترګه وکتل شی. دغه تصور چې په اوسنی طبقاتي ټولنه کې علم، ټولنپوهنه او تاریخ «بایــد دومــره پرمختګ وکړی تر څو موږ خپل منځــي اختلافات یوی خوا ته پریــږدو» یــو عبث او خیالی تصور دی. د ټولنی د تکامل قوانین مارکســیزم په لاس راکــړی، دغــه قوانین چې د ټولنی له ژور تحلیل څخه را پورته شــوی او پراتیــک د حقیقت معیار په توګه د هغه صحت په اثبات رســولی دی. یواځې زبیښــاکګر او ســتمګر طبقات په دې قوانینو کې خپل زوال وینی نو طبیعی ده

چې هغوی د دی قوانینو د نسکورولو او نفې کولو لپاره هڅه کوي. د ټولنی او طبیعت عیني قوانین یواځې هغه وخت له مقاومت سره نه مخامخ کیږي کله چې طبقاتی ټولنه خپل ځای بی طبقی ټولنی ته وسپاری.

معلومه نده چې ولی د اسلامي ریالیستانو په وړاندی د «تاریخ جبر» او «پراکسیس» یو بل سره په تضاد کې لویدلی. مطهری په دې باور دی چې:

«هغه فلسفه چې د جبر تاریخ خبری کوي نشی کولای مبارزه وکړی»، «هوکې، دا خبره (د مبارزی علم) په دې ځای کې دغه جهت نه نفې کوي، مارکسیزم هم د مبارزی اصل ته بلنه ورکوي(منتها د جبر تاریخ پر بنسټ کولای شو هغوی سره ستونزه پیدا کړو)»

په دې ډول «د تاریخ جبر» او پراتیک ګویا «نه پخلا کېدونکې» دي او یوبل سره یوځای کېدای نشی. ډاکټر شریعتي هم دغه مطلب ته په دې بڼه پالنه ورکوي او لیکې:

«تاریخی جبر... انسان له خپلې فردی ارادي او هغه اغیزه چې د شعور، عقل او ارادی له مخی کولای شی په تاریخی او ټولنیز برخلیک کې نقش ولري جلا کوي»(«فلسفه و انسان»،دریم دفتر، ۸۸مخ)

دغه ټول په دې مانا دي چې د انسان عمل (عمل د پراتیک په مفهوم) په جبر تاریخ اغیزه نلري او جبر تاریخ د انسان د ارادي او شعور لپاره ځای نه پریږدی. جبر تاریخ پرته له دي چې د انسان شعور او اراده په پام کې ونیسی خپله لار وهی او هر هغه ځای ته چې د هغه اراده ده په مخه ځی. له همدی لاری کله چې مارکس د مبارزی بلنه ورکوله ویی نشو کولای په جبر تاریخ چې ګواکې د انسانانو پراتیک نفې کوي ډډه ولګوی له دي کبله یی په «وروستیو» کې د «پراکسیس» خبره مطرح کړه تر څو «جبر تاریخ» تعدیل کړی.

آيا واقعاً پراتيک له جبر تاريخ سـره په تضا د کې ځای لري؟ نه داسـې نده. «جبـر تاريـخ» د تاريخ جبر دی، د انسـانانو د تکامل قانـون دی چې په ټولنه کـې ژوند کوي او پخپلو منځو کـې ډول ډول اړيکې جوړوی، د «تاريخ جبر» هغـه قوانين دې چې د انسـانانو له پراتيک څخه، په ځانګـړی توګه د پراتيک عمـده اړخ ځينی چې توليدې فعاليت دی راپورته کيږي. آيا کېدای شـی ټولنه له انسـانانو جلا تصور کړو؟ آيا کېدای شی تصور وکړو چې انسان په ټولنه کې فعاليت نلري؟ که چيری دا ډول تصور باطل دی، په دې حالت کې د ټولنی او تاريخ قوانين هغه قوانين دې چې د انسـانانو له اګاهانه عمل او فعاليت څخه بيرون شويدی په دې ډول پراتيک او عمل په خپله «جبر تاريخ» کې ځای لري او د پراتيـک پـه وړاندی د تاريخ ودرول او په دې باور کول چې دا دواړه يوبل نفـې او نقـض کوي له جبـر تاريخ او پراتيک دواړو څخـه د هغوی بی خبرې او د درک نشـتوالی دی. که انسـان نوې او د هغه تر شا فعاليت نوې، له ټولنی او د ټولنپوهنـی له قوانينو څخه خبرې کـول يو عبث او بې‌ځايه خبري دي. له هغه انسـانانو څخه چې په ټولنه کې عمل او فعاليت ونلري، په هغه اندازه بی مانا خبره ده لکه چې په يوي ټولنه کې انسان وجود و نلري. او بيا هم ووايی د تاريخ جبر يعنې دا چې خلک د لاس تر زنې کيږدې او انتظار د وباسـی چې د تاريـخ جبر به هر څه برابروی او د تاريخ جبر به سوسياليسـتی انقلاب په ټيله ټيلـه راکاږی او کارګرې طبقی ته به يی ډالـۍ کوي. مبارزی او د مبارزی بلنې ته اړتيا نشته!

برخـلاف په طبيعت او په ټولنه کې هغه ځواکونه عمل کوي چې شـعور او ارادی څخه برخمن دي او د خپل عمل لپاره په پوهی سـرهتصميم نيسـی او د ارادی له مخی هغی موخی ته د رسـيدو لپاره چې ځانته يی غوره کړی هڅه

کوي. انسانان د خپلې پوهې او ارادې له مخې د خپل ژوند چاپیریال ته بدلون ورکوي او هغه ته د خپلې اړتیا وړ بدلون ورکوي. انسانان د ټولنې او طبیعت د قوانینو په پوهاوې سره کولای شي هغه په خپل چوپړ کې وګماري. دا هغه پدېده ده چې انکار ترې نشي کېدای او مارکسیستانو په سمه توګه په لمړې ځل دغه واقعیت پراتیک (پراکسیس) ونوماوه او تکیه یې پرې وکړه. خو د مارکس او مارکسیزم «انتقاد کوونکې» په دې باور دی:

«مادییون (په دې ځای کې خبره د مارکسیستانو په سر ده) سل په سلو کې په جبر باور لري او له انسان څخه هر ډول آزادي او واک د چاپیریال د مادي لاملونو په وړاندې او همدا ډول د جبرتاریخ په مقابل کې منتفي ګڼي. مادییون کوښښ کوي چې انسان سل په سلو کې د طبیعت محکوم، د طبیعت مقهور او د طبیعت تابع وښايي او هغه د ټولو افعالو، اثارو، افکارو، کړنلارو، مسلک او عمل په ټاکلو کې د مادي چاپیریال د ځانګړي وضعې تابع وښايي»(«اصول فلسفه»، دریم ټوک، ۱۷۴ مخ)

په دې ځای کې قصد دا ندی چې د«جبر او اختیار» په اړه خبرې وشي. دغه بحث په بل ځای کې راغلی دی. خبره د لیکوال د بشپړې ناپوهې په سر ده چې نه یوائې له موضوع څخه انتقاد په خپله د «انتفاد» وړ ده. په اوسنۍ نړۍ کې چې انسان د طبیعت په ستری برخې فرمان چلوی، کوم لیونې به وې چې انسان«د طبیعت تابع او د طبیعت مقهور» وبولي یا وغواړی وښايي او خیال وکړی چې په دغه کم عقلانه خبرو به د خلکو باور تر لاسه کړي. دا به کوم لیونې وې چې لږ تر لږه د خپل ژوند د ورځینیو تجربو پر بنسټ انسان له اختیار، آزادي او ارادي څخه بی برخی وبولی. که داسې بېړا یا لیونې پیدا شي په یقین سره هغه د مارکسیستانو له ټولګې ندی. د مارکسیستانو خبره دا

ده: اختيار او اراده حدود او ثغور لري چې له هغو څخه پښې نشو اړولې. دغه حدود او ثغور نسبي دي. پر طبيعت او ټولنې د واکمنو عيني قوانينو د شناخت درجې پوری او همدارنګه د مولده ځواک د تکامل درجي پوری تړلتيا لري. تر هغه چې انسان د بيلګې په توګه د شرې ناروغي ونه پيژني د هغه مقهور دي او قرباني ورکوي. خو کله يې چې د هغه جزييات وپيژندل ځان يې د هغې بلا له قيد څخه خلاص کړ اوهغه وخت يې وکولای شول چې اراده وکړي خپل ماشوم واکسين کړي او ځان له ناروغې څخه وژغوري. که چېري ناروغي پيژندل شوې نه وای د انسان اراده د اغيزي منشاء نشي کېدای. لکه چې سرطان اوس هم قرباني اخلي او تر اوسه هيڅ ارادی ونشو کولای چې انسان له دي وژونکې ناروغي څخه خلاص کړي. کله چې د ملخانو يرغل د يو هيواد د غلې، دانې ټول فصلونه له منځه وړي، د غلې قحطی او لوږه منځ ته راوړي په پايله کې انسانان د طبيعت مقهور وي. کله چې انسانانو الکتريسيته نه پيژندله خپلې شپې يې د تيلو په څراغونويا په شمعو روښانه کولی آن يا يې په تورتم کې شپې سبا کولی. پدغه زمانو کې انسان د طبيعت مقهور وه او تر دې زيات که چېري د اندونزيا ځينو جزيرو ته سر د ننه کړو، اوس هم انسانان په دې ډول وضعيت کې ژوند تيروي. آيا د دغه ښاغلو چې اوسنې تمدن يې سترګي تياره کړي اوس هم داسې خيال کوي چې دغه ستر پرمختګونه د ارادي محصول دي، ګويا که اراده ولري هرڅه لري. هغه څه چې مارکسيستان يې تر پوښتنې لاندې نيسي هغه له حدودو اوثغورو څخه د ارادي بهر کول دې. د انسان اراده کولای شي په هغه ځای او هغه کچه اغيزه پرځای پرېږدي چې ټولنې د ارادي عملي کولو لپاره لازم امکانات په لاس ورکړي وي. ډاکټر شريعتي په دې باور دی چې:

«هر ډول جبر له هغې جملې مادي جبر نشي کولای د «مسئولیت» خبرې وکړي ځکه په دې کې شک نشته چې یواځې «آزاد» «مسئول» دي او آزاد هغه څوک دي چې د خپلې ارادې او غوښتنې منشاء دی یعنې هغه شئ انتخابوی چې وکولای شي انتخاب یې نکړي» («فلسفه انسان»، دریم دفتر، ۹۷مخ)

البته که په اوسني وخت کې یو سړی خپل ځوی د شرې په مقابل کې بیمه نکړي مسئول دی ځکه آزاد دی چې دا کار وکړي یا یې ونکړي. خو په هغه زمانه کې چې د دې ناروغۍ د مخنیوي او درملنې امکان وجود نه درلود آیا بیا هم پلار «آزاد» وه او مسئولیت یې درلود چې ځوی یې په دې ناروغۍ هلاکت ته ورسید؟ آزاد هغه څوک دی او تر هغه ځایه آزاد دی چې د طبیعت وړانده ځواکونه وپیژني او تر خپل واک لاندې یې راولي. آزادي او مسئولیت له طبیعت او ټولنې څخه د انسان د شناخت او د هغه پر بنسټ له پیښو څخه د مخنیوي درجې پورې تړلې ده. هغه پلار چې څلور پیړۍ مخکې د خپل ځوی د مړینې مسئول نه وه ځکه چې د ناروغۍ په وړاندې «آزاد» نه وه، اوس مسئول دي ځکه چې آزاد دي. ولې؟ د دې لپاره چې نن ورځ د شرې د ناروغۍ لامل پیژندل شوی او درملنه یې کېدونکې ده. ښکاره ده چې آزادي او مسئولیت د ټولنې او طبیعت له ځواکونو ځینې د انسان د شناخت او په هغوی د بریا درجې پورې تړاو لري. د انساني ټولنې تکامل ته له کتو پرته آزادي او مسئولیت څخه خبرې کول ډېرې وهل دي. انسان د ځمکې په سر تر پیدایښت وروسته په زرګونو کلونو لکه د حیواناتو په څېر د طبیعت مقهور وه. په هره کچه چې د هغه شناخت له څیزونو او د طبیعت له عواملو لوړیده، په هره کچه چې د مولده ځواکونو تکامل د طبیعت په ځواک د بریالیتوب امکانات په لاس ورکول په هغه کچه د هغوی آزادي او مسئولیت زیاتیده تر څو چې د نن

ورځي کېچې ته ورسېد. که څه هم نن ورځ آزادي او د هغه په تړاو مسئولیت شتون لري، سره له دې اوس هم انسان د طبیعت او ټولنی له قهر څخه خلاص شوی ندی. کافی ده هغه قربانی ګانی چې زلزله یی اخلی یا هغه زیانونه چې زلزله، اورشیند (آتشفشان) یا یی د طبیعت د قهر نور عوامل منځ ته راوړی فکر وکړو. هغه ماشوم چې پانګوالی ټولنی کې سترګی نړی ته پرانیزی او په هغی کې روزل کیږي په همدی ډول ټولنی کې په ژوند کولو محکوم دی، هیڅ اراده د هیڅ چا له خوا او هیڅ مقام نشی کولای چې د نن نړۍ د فیودال په نړۍ یا د برده‌داری نړۍ ته په شا وتمبوې. همدا ډول هیڅ اراده، د هیڅ چا له خوا او هیڅ مقام نشی ګولای چې نن ورځ سوسیالیزم په ټولی نړۍ کې ټینګ پر ځای ودروی. نه‌نني انسان کولای شي کهکشان ته مسافرت وکړی خو شل کلونه پخوا یی نشو کولای د سپوږمۍ کروی ته ولاړ شي. اوس هم اړ دي چې د آسمان په لیري افق کې په تک راتګ سترګی پټي کړی لکه چې د تیرې پیړۍ په ربع کې مجبور شوی وو چې له فضایي مسافرت څخه مخ واړوی. دغه ټول توضیحات د دی لپاره دی چې بیځایه اراده او اختیار له پولې هغی خواته کش نکړو او د ارادی لپاره د ماوراء طبیعت منشاء ویونکې نشو. ډاکټر شریعتي په یو ځای کې له مادی نړۍ سره د ارادی د مقام تړاو له مارکسیست ځینې هم را ټیټوي او لیکې:

«په طبیعت چې د سترګو په رپ کې د سیاراتو په حرکت باندی اثر پریوځې، اراده څه ډول کولای شی د طبیعت له ټولو عواملو او علتونو ګوښه پاتی شی او په هغه نړۍ کې چې هر علت په خپله معلول دی، څرنګه کیدای شی چې اراده په خپله خوښه ژوند وکړی؟»

په بل ځای کې انسان په اراده کې خلاصه کوي «انسان یعنې اګاه، پنځوونکې

او جوړوونکې اراده». ډاکټر د «ارادي او اجبار په دوه لارې کې» لا لهنده او سرګردان دي. له يوې خوا نشي کولای اراده د «طبیعت له علل او عواملو» څخه مستقل تصور کړي او له بلې خوا «مجبور» دی او پخپلې خوښه نشي کولای ژوند وکړي» او له بلې خوا وينې چې اسپارتاکوس خپله اراده په کار اچوي او د بردګي رژيم په وړاندې راپاريږي او قيام کوي يا هغه بودايې راهب يا چکسلواکې محصل ورپه ياديږي چې د خپلې اوسپنيزې ارادې له مخې ځانته اور اچوي تر څو يې د خارجي نيواکګرو په وړاندې اعتراض کړی وي، له يوې خوا چې اراده په خپل زړه ژوند نکوي او له بلې خوا د ارادې منشاء په خپله انسان دی او د انسان غوښتنه ده. څه ډول کولای شي چې دغه دواړه خواوې سره يو ځای کړي؟ ډاکټر شريعتي چې د معما له حل څخه بې وسې دی پرته له دي چې آسمان مرستې ته را وبولي بله چاره نه ويني او اراده د «الهی بارقه(بريښيدنه) او ملکوتې عنصر» شميرې چې د مجرداتو له نړۍ څخه د علتونو او اسبابونو دې نړۍ ته راالويدلی ده»(هماغه ځای، ۹۸/۹۹مخ)، د الهی بارقه يعنې څه؟ ملکوتی عنصر څه شئ دی؟ د مجرداتو نړۍ کومه ده او چيرې ده؟ اساساً د يوې علمې او فلسفې مسئلې لپاره دا څه ډول د حل لار ده؟ اسلامي ريالیزم په هر ځای کې له دغو نخرو څخه کار اخلی او په هر ځای کې چې بند پاتی شي لاسونه آسمان ته پورته کوي او خپله بيوسی د مشکلاتو د حل لپاره د ملکوت نړۍ ته منسوبوی. چې په واقعيت کې د حل لار نده.

اراده د الهی بارقه ده. خو په واقعيت کې ستونزه دوه برابره جوړيږی، تر اوسه موږ ارادې سره سروکار درلود او غوښتل مو چې دغه مجهول معلوم کړو او اوس يو بل نوې مجهول «د الهی بارقه» پرهغه ور زياتيږی. اراده «ملکوتی عنصر» ده، ملکوتی عنصر يو بل مجهول دی چې د ارادې د درک لپاره بايد

هغه تر غور لاندې ونيسو. اراده د «مجرداتو عالم» څخه ده. واقعاً ستونزې څوچنده شوې. د مجرداتو عالم څه ډول عالم دي؟ په کوم ځای کې ده؟ ارادې په هغه ځای کې څه کړيدی او ولی «د دې عالم په علل او اسباب کې پريوتې» ده؟ په دې ډول د «ارادې» د درک لپاره ګڼ شمير مجهولاتو زموږ په وړاندې پراته دي چې مطلقاً دغه مجهولات پيژندل کېدای نشی، په همدی ډول اراده ناپيژندل شوی او ناپيژندونکې پاتی کيږي.

کېدای شی ارادی ته له دوه ليد لورو وکتل شی: د فلسفی ليدلوری او د فيزيولوژيک ليدلوری.

له فلسفی ليد لوری اراده د انسان اګاهانه غوښتنه ده چې انسان، د هغې له مخې خپلې موخې ته د رسيدلو لپاره په يو ټاکلی عمل لاس پوری کوي. په دې ډول اراده په دوه پړاونو کې سر ته رسيږی: لمړې انسان ځانته موخه ټاکې او هغی ته د رسيدو لپاره تصميم نيسی او ورپسی د دغه تصميم د اجرا کولو پړاو سرته رسيږی. البته د ارادی تحقق په خپله د انسان له دنني مقاومت او د طبيعت او ټولنې بهرني مقاومت سره مخامخ کيږي چې بايد وکولای شی په هغو بريا تر لاسه کړی. او دا په هغه صورت کې کېدای شی چې موخی ته د رسيدو لپاره زماني او مکاني شرايط سمون ولري. سربيره پر دې اراده يواځې د يو فرد لپاره مصداق نه پيدا کوي بلکې ډله، طبقه حتی ټوله ټولنه کېدای شی چې يوه واحده اراده ولري او د هغې د تحقق لپاره په مخ ولاړ شي.

د فيزيولوژی ليد لوری له مخی «الهی بارقه» او «ملکوتي عنصر» د انسان د مغزی فعاليتونو له مظاهرو پرته بل څه ندي، د مجرداتوعالم څخه ځمکې ته ندی راپريوتې او د روانې پدېدو يوه برخه ده چې مادی بنسټ يې د اعصابو سلسله او مغز دی. انسان د يوې واحدی ټولګې په بڼه له راز راز دستګاه ګانو

څخه جوړ شوی چې عصبې سیستم یو له هغو ځینی دی. دغه دستګاه ګانی هر یو ځانګړی جوړښت او ټاکلی دندې لري چې نن ورځ د هغوی د پیژندنې په اړه بشپړ او جامع معلومات په لاس لرو چې د مجهولاتو د غوښتونکو لپاره مجهولات پر ځای نه پریږدی. د بیلګې په توګه هیڅوک د دي ادعا نشی کولای انسولین چې د انسان په وینه کې د قند تنظیم کوونکې دی یو ملکوتې عنصر دی یا هموګلوبین له بل عالم څخه د انسان په جسم کې لویدلی دی. خو کله چې د عصبي سیستم دندو ته نوبت ورسیږی ټول شیان «اسرار آمیز» شی او د دی «اسرارو» د کشف لپاره د تحقیق او علمی څیړنې ځای تخیل نیسی او د یو مسلوم حقیقت بڼه ځانته غوره کوي. هغه کسان چې غواړی په یو وار د نړۍ ټول «اسرار» وپیژنې په بیړه خپل تخیلات د حقیقت پر ځای کښینوی. هغوی د خپل ژوند له چلند څخه هم زده کړه نه تر لاسه کوي او پند نه اخلی چې ګالیله یې په څه ډول مجبور کړ تر څو د ځمکې د حرکت په اړه خپلې عقیدې ځینی لاس واخلې او وروسته په ډاګه شوه چې حقیقت مذهبي ریالیزم سره ندی بلکې حقیقت علم سره دي. یا ډاروین یې د ژوندیو موجوداتو د تحول د تیورې په خاطر په کنځلو او بد ویلو ورټه او بیا هم په ډاګه شوه چې تېروتلي وو. هغوی د تل لپاره د علم او علمي حقایقو په وړاندی شاته شویدی، خو اوس هم سنګرونه او مورچلې په واک کې لري. د عصبی سیستم فونکسیونونه یو له هغو څخه دی ښایی چې مهمترین او اخرین د هغو وی.

د انسان مغز د انسان د بدن تر ټولو زیات پیچلي او بغرنج ساختماني شکل دی، د میلیاردونو په شاوخوا عصبی سلولونه یوبل سره په اړیکو کې دي چې د عصبی دستګاه د علمي څیړنو په لار کې یې زیاتی ستونزی را مخ ته کړی او د هغه د فونکسیون پیژندنه یې له فوق العاده کړاونو سره مخامخ کړی. نن ورځ

د روانـې پدېـدې د ارزوني لپاره دوه اغيزناک چلندونه (روشـونه) په لاس کې دی: کېميا وی او الکترونيکې روشـونه او سـيبرنتيک روش چې دواړه د روانی پدېدو د شناخت په خوا اوچت ګامونه پورته کړی او پورته کوي يې. اوس ولی بايد د مغز فونکسيون د فيزيولوژی له چوکاټ څخه بهر کړو او هغه ته آسمانی جنبه ورکړو، دهغه علت بايد په طبقاتی ګټو کې وپلټو.

په هر ډول چې موضوع مطرح کړو يو ټکې چې له پخوا څخه باوری شويده او هغـه دا چـې ټولی روانې پدېدی د مغز فونکسـيون پوری تړلی، په هغه ډول چې د هاضمي دسـتګاه فونکسـيون د انسـان او چاپيريال په منځ کې د موادو راکړه ورکړه ده يا د ويني دګردش دستګاه فونکسيون د وينې او د بدن د حجرو تر منځ د موادو راکړه ورکړه ده. شعور هم د يوې فيزيولوژيکې پدېدی په شان کېدای شـی چې تر څېړنی لاندې ونيول شـی او قانونمندی يې کشف شی لکه چې د نورو دستګاه ګانو په اړه شويدی.

زموږ خبری د مارکسيسـت فلسـفی د خصوصياتو په هکله اوږدی شـوی. په لنډه توګه مارکسيسـتي فلسـفه د نورو فلسـفو په پرتله د دری خصوصياتو لرونکـې ده: لومړي دا چې د پرولتاريا فلسـفه ده او خپـل طبقاتی خصلت نه پټوې، دويم دا چې علمي فلسفه ده بنسټ يې په مختلفو علومو او د هغوی په تکامل ولاړ دی او د علومو تکامل سره سم تکامل کوي، دريم دا چې انقلابی فلسـفه ده ځکه چې پراتيک، تئوری سـره په وحدت کې وينی او تئوری پرته له پراتيک څخه مړه، کنګل او متحجره ده.

مارکسيسـتي فلسـفه لکه د نورو فلسفو په شـان له نړی څخه يو کولی ليد پـه لاس ورکـوي، خو نړی په ټوليزه توګه طبيعت او ټولنه په هغه بڼه وينی چې وجود لري پرته له دې چې څه وربانددی زيات کړی، ولی يې زيات کړی؟، پرته

لــه دی چــې غیر مادي او مجهول ځواک او «مــاوراء طبیعت» ته په هغه کې د مداخلی ځای ورکړی او ولی د مداخلی ځای ورکړی؟

انسان نړۍ څه ډول وینی؟ کله چې انسان خپل چاپیریال ته ګورې او شیزونه وینی چې په منځ کې یې راګیر شــویدی، ځمکه ویني، آسمان او ستورې ویني، غرونه، ســیندونه، حیوانات، بوټې، نباتات او داسې نور شیزونه ویني، انسانان ویني چې د نورو موجوداتو برخلاف شعور څخه برخه‌ور دي. خو یوه بله پدیده وجود لري چې د انســان پام ځانته راکاږی هغه دا چې ټول شیزونه پرله پســی په حرکت او بدلون کې دي، حتی هغه شیزونه چې ثابت او نه بدلون کېدونکې تر سترګو کیږي هم په واقعیت کې ځایی او پایی نه پاتی کیږي.

«شیزونــه» او «حرکــت او بدلون» دا دوه شــیان دی چې طبیعــت او ټولنې ســره په ټکر کې تر ســترګو کیږي او د دی دواړو په اړوند د انســان په وړاندې مســائل را مخی ته کیږي. نړۍ څه شــئ دی او له کوم ځایه راغلی ده؟ آیا ازلی او ابدی ده یا پیل او پای لري؟ حرکت او بدلون له کوم ځایه سرچینه اخلی؟ آیا د طبیعت لپاره موخه شــته که ځواب هو وې هغه موخه څه شــئ ده؟ انسان له کومه رائي او کوم ځای ته ځي؟ پدي نړۍ کې د انســان مقام څه دی؟ شــعور نړۍ سره اړیکه لري؟ او داسې نور. دا هغه مسائل دي چې اصولاً فلسفه هغوی ته ځواب ورکوي. دغه مســائلو ته مارکسیســتي فلسفه اصولاً د نړۍ (طبیعت، ټولنه، انســان) په ډاګه کولو لپاره پرته له دي چې وجود یا غیر طبیعی لامل یا ماوراء طبیعی ته پناه یوســی، په دې برخه کې هر ډول تخیل او ســوچ ته د نه ځواب وایی او د نړۍ د شــناخت او پیژندنی په اړه د امکان نشــتوالی په کلکه مردود ګڼی.

مارکسیســتي فلســفه په دې باور ده چې نړۍ مادی ده، ازلی او ابدی ده، د

هغــې لپاره نــه پیل متصور دی نه پای، نه د زمان پــه هکله د هغې لپاره حدود متصور دي او نه د مکان[۵] په هکله او نه د هیڅ پنځوونکې له خوا پیدا شــوې ده. هغه ټول بدلونونه او تحولات چې په نړۍ کې منځ ته راځي د وړانده او بی موخی ځواک د اغیزو پایله ده چې د عینې قوانینو په بڼه تجلی کوي. له نړۍ او انســان څخه یو کولي لید درلودل یعنې د طبیعت د تکامل، تحول او جوړښت همدارنګه د ټولنې او تفکر د عامو قوانینو پیژندل دي چې مارکسیســتي فلسفه همدغه د نړۍ د تکامل عامترین قوانین په لاس ورکوي.

د مادې او شــعور په اړوند مارکسیســتي فلســفه په دې باور ده چې ماده تر شــعور وړاندی او مقدم ده او شــعور په مغز کې د بهرنۍ نړۍ تر انعکاس پرته بل څه ندي[۶]. خو مارکسیستي فلسفه د شعور او مادې په اړوند یواځې د مادې تقدم په شعور باندې نه خلاصه کوي بلکې په دې باور ده چې: لمړی ـــ مادې تر شــعور وړاندی وجود درلود ځکه ماده ازلی او ابدی ده پداسې حال کې چې شعور د مادي د تکامل په یو ټاکلی پړاو کې منځ ته راغلی ده.

دویم ـــشعور له مادې مستقل ندی بلکې د مادی خاصیت او د یوې ټاکلی دســتګاه فونکسیون دی د مرکزي عصبي سیستم په نوم، په ځانګړې توګه مغز چې ډېر پیچلی او بغرنج ســاختماني او ســازماني بڼه لري. او دا په دې مانا ده چــې شــعور له مادې څخه کــوم خپلواک جوهر ندی بلکــې د هغې زیږنده ده. د شــعور خاصیــت په دې کې دی چــې مادی نړۍ ته د ایدهٔې پــه بڼه انعکاس ورکوي، په دې ډول شــعور د خپلواکې محتوا او مضمون لرونکې ندی. بلکې د هغه مشــخص مضامین (احســاس، ادراک، افــکار) او همدارنګه هغه عام شــکلونه چې دغه مضامین یي ځانته غوره کوي (د حســي شــناخت قوانین او شکل، د تفکر قوانین او شکلونه) په وروستي تحلیل کې د مادي نړۍ انعکاس

دی.

دریم ـ د مادی د تقدم مسـئله پر شـعور باندی چې د فلسفی اساسي مسئله ده، کله چې لمن یې ټولنی ته غزیږی دغه پایله په لاس راکوي چې په ټولنه کې هم اجتماعی هسـتي مقدم ده او اجتماعی شعور له هغی څخه را پورته کیږي. دا د انسـانانو شـعور ندی چې د هغوی هستي ټاکې بر عکس د هغوی ټولنیزه هستي ده چې د هغوی ټولنیز شعور ټاکې. ټولنیزی هستي څخه موخه د ټولنی مـادی ژونـد ده او تر هر څه د مخه د مادی نعمتونـو تولید او هغه اړیکې چې انسـانان یې د تولید په جریان کې یوبل سره منځ ته راوړی. ټولنیز شعور څخه موخه د انسـانانو د معنوی ژوند ټولګه ده، د افکارو، سیاسی نظرونو، حقوقی، مذهبی، فلسفی، هنری او داسې نورو ټولګه ده، مادي ژوند د ټولنې اساسي او بنسـټیز رکن دی. معنوی ژوند له همدې مادي ژوند څخه سـرچینه اخلي او د انسانانو په مغز کې د ټولنیزی هستي آزانګه (انعکاس) ده.

څلورم ـــ شـعور لکه د آیینی په مخ چې تصویر جوړیږی هغه شـان منفعل او پاسیف ندی، بر عکس په خپل وار پر مادې نړۍ او ټولنیزی هستي فعالانه اغیزه کوي. له پورته یاد شـوو مطالبو څخه د مارکسیسـت فلسفی موضوع په ډاګه کیږي چې: د مارکسیسـت فلسـفی موضوع د هغـو عامو قوانینو لاس ته راوړل دي چـې پـه ټول مادی نـړۍ کې عمل کـوي، او د حرکت، د طبیعت د جوړښت او د ټولنی او تفکر د ډېرو عامو قوانینو تر لاسه کول دي.

مارکسیستي فلسفه له دوه برخو ماتریالیزم او ډیالکټیک څخه جوړه شویده چې یوبل په نه شـلیدونکې وحدت کې ځای لري. د دوی هر یو تار او پود، د بل تار او پود سره دومره اوبدل شوی چې شلیدل یې تر منځ ناشونی دی. کله چې د مارکسیسـت ماتریالیزم څخه خبری کوو نشو کولای هغه د مارکسیست

ډيالکټيک څخه جلا وګڼو. همدا ډول کله چې د مارکسيسـت ډيالکټيک څخه بحث کوو نشــو کولای په مارکسيست ماترياليزم سترګې پټې کړو او هغه ترينه جــلا وګڼو. ځوک چــې دغه دواړه يوبل څخه جلا کــوي ماترياليزم تئوری، او ډيالکټيک اسلوبو شميری د مارکسيزم فلسفی څخه هيڅ پوهه نلري.

مارکسيســتي فلســفه د نړۍ مادي والی، د نړۍ مادی وحدت او په شعور د مادې تقدم دی. د نړۍ مادي وحدت دهغه د عناصرو د جوړښــت په وحدت کــې او د اتــم د داخلي زراتو وحدت په دغه عناصرو کــې د ژوندي موجوداتو په ســاختماني وحدت کې (ســلول، DNA)، د ژونديو موجوداتو د منشاء په وحدت کې او بالاخره په نړۍ د واکمنو قوانينو په وحدت کې دی.

ماترياليزم هغه نړۍ ليد دی چې د فلســفې د اساســي مسئلې په اړوند يعنې د مادی او شــعور په اړه وروســتي تحليل کې ماده مقدم او ټاکونکې بولي. خو د مارکسيست ماترياليزم د دموکريت ماترياليزم يا د ۱۷ – ۱۸ پيړۍ د اروپايی روڼ آنــدو ماترياليــزم حتی د فويربــاخ ماترياليزم نــدی. ماترياليزم تر مارکس وړانــدی، ماترياليــزم مکانيکــې او متافيزيکې بڼه درلوده چــې د واقعيت ټولی پديــدی يــې د مکانيک الګو له مخــی توجيه کولی: حرکت يــې د ځای بدلون پــوری محــدود کړی وو، تکامل يې يوائې د کمی رشــد تــر پولي تصور کاوه او کيفــی بدلونونــه يې په نړۍ کې له پامه غورځولی وه. له نړۍ څخه مکانيکې درک د هغه وخت د علومو تکامل ســره متناسب وضعيت درلود. د ۱۸ پيړۍ ماترياليســتانو لپاره انسان يو ماشين وه، زړه يو پمپ وه چې وينی ته په رګونو کې جريان ورکوي، شــعور د مغز پونه او ترشــح ده هغه ډول چې ځيګر صفرا ترشــح کــوي. دغــه ماترياليزم چې په خپل اســاس کې صحيح وه، ويې نشــو کــولای خپله لمن ټولنيزو پديدو ته وغځوي او ټولنيزې اړيکې، د انســانانو تر

منـځ اړیکـې که مادي وې یا معنوي په ګټوره توګه درک کړي. له همدې پلوه تر مارکـس وړانـدې کله چې به ماتریالیزم، ټولنې ســره مخامخ کېده هغه به یې د ایډیالستانو په طریقه توضیح کاوه.

د مکانیکـې ماتریالیزم لپاره د مادې او هســتي اړیکو شــعور او تفکر ســره هیڅ متقابل تړاو وجود نه درلود. شــعور د انســان په مغز کې د بهرنۍ نړۍ یو پاسیف انعکاس ګڼل کېده او همدا ډول د شعور متقابله اغیزه په بهرنۍ نړۍ د هغه پنځوونکې او ســمبالوونکې اغیزي له پامه لویدلې، د دې لامل دا وه چې د هغــه وخــت ماتریالیزم ټولنیــز پراتیک ته توجه نه درلوده، د انســان د عملي فعالیتونــو اغیزه یې د هغه په افکارو کې نه لیدله. حال دا چې په واقعیت کې د طبیعت د بدلون اساسي بنسټ د انسان تفکر جوړوي. په هغه کچه چې انسان د طبیعــت د بدلــون په هکله پوهاوې تر لاســه کوي خپل فکر او شــعور ته هم تکامل ورکوي.

کــه وغواړو چې د مارکسیســت ماتریالیزم او تر هغــه د وړاندې ماتریالیزم توپیر په یوې کلمې کې بیان کړو باید ووایو چې تر مارکس وړاندې ماتریالیزم، ډیالکټیکې نه وه، ډیالکټیک یې نه پیژانده او له هغه یې کار نه اخیست.

مارکسیســت ډیالکټیــک د مادي نــړۍ د ځیزونو او پدېدو تــر منځ د تړلتیا تئوري او د مادي نړۍ د حرکت او تکامل تئوري ده. البته د دې لیکنې دنده نده چې د مارکسیست ډیالکټیک په تشریح او توضیح لاس پورې کړي خو له هغه ځایه چې اســلامي ریالیزم ډېره هڅه کوي هغه ناســمه او بیځایه وښایي او بې اعتباره یې کړي، ځای لري چې ځینو ټکو ته اشاره وشي.

د مارکسیســت په ډیالکټیک کې د «ضدینو مبارزه او وحدت» مرکزي قانون دی او د ډیالکټیــک نــور ټول قوانیــن او اصول له همدې مرکــزي قانون څخه

سرچینه اخلی. د «ضدینو د مبارزې او وحدت» قانون پرته د حرکت، بدلون او تکامل څخه د درک وړ ندی. اسلامي ریالیستانو لږترلږه دا خطر احساس کړی چې د دی قانون منل د پیداکوونکې او پیدایښت څخه د انکار په مانا ده چې دا د هغوی لپاره ځومره لویه بدمرغي ده، که چیری دغه قانون په ذهنونو کې ځای ونیسی، ځکه چې حرکت، بدلون، تکامل، او د مادي نړی دشیزونو او پدېدو کثرت او تنوع، دشیزونو او پدېدو تر منځ اړیکې او تړلتیا ټول له همدی قانون څخه راپورته کیږي او په دې عالم کې بل محرک ته اړتیا نه لیدل کیږي. ښاغلی مطهری لیکي:

«همدغه تضاد او کشمکش د حرکت منشاء ده اود حرکت لپاره شیانو څخه بهر بل محرک ته اړتیا نشته»

او څو لیکي وروسته: «د هغوی خبری په دې مانا دي چې د هر شي نفې باید د هغه خپل ځان ځینی را پورته او همدغه نفې چې د هغه خپل ځان ځینی راپورته شوی د حرکت لامل دی په همدی دلیل نړی، په خپله د ځان خالق ده نو ځکه یې پنځوونکي (آفریننده) او بیروني محرک ته اړتیا نشته»(«مارکس او مارکسیزم»، دویم دفتر، ۲۵ او ۲۹ مخ)

په دې ډول د اسلامي فلسفی استادانو له دغه قانون سره په ښکاره توګه سخته او دوامداره مبارزه پیل کړې چې د درک وړ ده. هغوی له پیل څخه په اګاهانه ډول د خلکو د تیرایستلو په خاطر یا په ناپوهی سره د ډیالکټیک د تضاد قانون د امتناع تناقض اصل په صوری منطق کې یو شان معرفی کوي او په ټینګار سره چیغي وهی چې:

«د امتناع تناقض اصل د ټولو په ذهن کې د منلو وړ ده»، «د ټولو علومو او ادراکاتو بنسټ ده که چیری دغه یو اصل ته پام ونشی هیڅ علم به ټیکاو پیدا

نکړی»، «د تناقض اصل څخه په انکار سره، نشو کولای حقیقت اثبات کړو».
او بیا ځلي تور د سپین په مخ لیکي چې:

«د ډیالکتیک د منطق پلویان له دي اصل څخه منکر شویدی.»(هماغه ځای، ۱۱۸ مخ)

د امتناع تناقض اصل څه شی دی؟ د دی اصل بنسټ په دې ولاړ دی که په دوه قضیو کې یو د بل متناقض وی یواځې یو کولای شی چې رښتیا وي او بل په غوڅه توګه دروغ ده. یعنې «ناشونې ده چې دواړه ریښتونی وی یا دواړه کاذب وی» مثلاً له دی دواړو متناقضو قضیو «انسان حیوان دی» او «انسان حیوان ندی» یا «عالم متناهی دی» او «عالم متناهی ندی» یواځې له دی دوه قضیو څخه یوه رښتیا ده او بله کاذبه ده. په لمړی مثال کې «انسان حیوان دی» رښتیا ده او نقض یې غلط دی.

خو که چیری دغه اصل مطلق کړو په ډیرو مواردو کې غلط راوځي. د مثال په توګه «د جسم کتله د سرعت تابع ده» او «د جسم کتله د سرعت تابع نده» د امتناع تناقض د اصل پر بنسټ باید له دغه دوه قضیو څخه یوه رښتیا وی او بله دروغ، پداسې حال کې چې دواړه رښتیا دي. تر هغه وخت پوری چې سرعت، د ورځنی زندګې د کمیت په کچه وی د جسم کتله د سرعت تابع نده یا لږترلږه معمولی اندازه ګیرې په کتله کې بدلون نه په ګوته کوي خو په زیاتو سرعتونو کې مثلاً د نور په سرعت یا هغه ته نږدی سرعت کې د جسم کتله ثابته نده بلکې د سرعت تابع ده. یا دا چې «د مثلث د زاویو مجموعه له دوه قایمو سره برابره ده» او «د مثلث د زاویو مجموعه له دوه قایمو سره برابره نده» «اصول فلسفه» په دې باور ده چې له دغه دوه قضیو څخه یواځې لمړنی دلیل صحیح دی:

«د مثلث درې زاوې دوه قایمو سره برابرې دي... د امتناع تناقض د فرض په حکم د هغه نقیض د مثلث درې زاوې مساوی ندي له دوه قایمو سره اعراض کړی ده»(دویم ټوک، ۱۱۶ مخ)

د دې سطرونو لیکونکی چې علم او تکامل ځینی بی پروا دی او اساساً علم په عربی کې د شناخت (هر شناخت) په مانا په کار وړل کیږي نه په هغه مفهوم چې نن ترې ګټه اخیستل کیږي، باید ووایو چې د مثلث د زاویو مجموعه همیشه دوه قایمو سره مساوی نده ځکه د هغه مثلث په څنګ کې چې ضلعی یې مستقیمی دی او د زاویو مجموعه یې دوه قایمو سره مساوی ده یو بل مثلث وجود لري چې د هغه ضلعی منحنی دی (کروی مثلث) په دې ډول مثلث کې چې (بالاخره دا هم مثلث دی) د زاویو مجموعه د دوه او شپږو قایمو تر منځ بدلون کوي.

په دې ډول که مثلث مطلق ونیسو هغه وخت دواړه قضې صحیح دي نه یو له هغو دواړو څخه. البته لیکونکی دغه بیلګه د اقلیدسی هندسی بند ځینی را اخیستی ده خو پام یې نده کړی چې د دې هندسې په څنګ کې له ډېرې مودې را په دې خوا غیر اقلیدسی هندسه منځ ته راغلی چې په هغې کې د لیکونکې منلې شوی «بدیهی» اصول چې تر اوسه د ارسطو او اقلیدس په دوران کې ژوند تیروې اعتبار ځینی لویدلي دي. کولای شو نور مثالونه هم ذکر کړو.

ښکاره ده چې دې اصل سره د مارکسیست فلسفی مخالفت له اړخه بی بنسټه نده. دغه اصل یواځې په یو حالت کې صحیح ده، په هغه حالت کې چې په کې مطلق حقیقت بیان شی «انسان حیوان دی». دا مطلق حقیقت دی. د دی قضې په اساس د دی نقض «انسان حیوان ندی» غلط ده. «د فارس خلیج د ایران سهیل کې دی» مطلق حقیقت دی او د امتناع تناقض اصل په دې ځای

کــې مصداق پیدا کوي. «اتم د کېمیایي عنصر د ترکیب کوچنۍ ذره ده» مطلق حقیقــت دی او د امتنــاع تناقض اصل په دې کې شــامل دی. وینو چې په دې ډول مــواردو کې نشــی کېدای د دی اصل صحــت رد کړو. خو په هغه مواردو کې چې موږ نســبي حقیقت ســره ســروکار لرو باید دې اصل سره په احتیاط ګام پورته کړو. ارســطو چې په خپله د دی اصل نوښــتګر ده هیڅکله یې دغه اصــل په مطلق ډول نده بیــان کړی. د بیلګې په توګه دغــه دوه قضیو کې«زید ولاړ دی»، «زیــد ولاړ نــدی» ولاړتیا د مطلقو حقایقــو په لړ کې نده نو له دې کبله کېدای شی دواړه قضې صحیح وی او د «اصوی فلسفه» دغه حکم «باور په دې چې زید ولاړ دی د دې باور مانع وګرځی چې زید ولاړ ندی» عینیت ته نــږدی نــدی ځکه چې د زید په ولاړتیا باور د هغه د نه ولاړتیا د باور مانع نده. باید وکتل شي چې زید په کوم ځای، څه حالت کې او تر کومو شرایطو لاندې ولاړ دی نو ځکه کېدای شی د زید په هکله دواړه حالتونه صحیح وی، کېدای شــی زیــد هم ولاړ وی او هم نوی. دغه حکم دی پــوری تړلی ده چې ویونکې زید په کوم وخت، په کوم ځای کې ولاړ یا نه ولاړ لیدلی دی. یا یو غوره مثال: «باران وریږی»، «باران نه وریږی» په دې ځای کې باید امتناع تناقض په مطلقه توګه له دې حالت څخه وایســتل شــی تر څو په صحیح توګه روښانه شی پرته له دی کېدای شی دواړه قضې صحیح وی. امکان لري په هغه وخت تهران کې اورښت وی او په بل ځای مثلاً شیراز کې اورښت نوی یا حتی داسې پیښه شی چې د تهران په شــمال کې اورښــت وی خو د ښار په جنوب کې د اورښت پته هم نوی. په دې ډول که چېرې قضیه په مطلقه توګه بیان شــی د امتناع تناقض اصــل پــه دې ځای کې صدق نکوي. خو که چېرې وویل شــی: «د ۱۳۵۷ کال د تلې میاشــتی په ۴ نیټه په ســهار ټول تهران کې اورښت وه» په دې وخت کې

د هغه نقیض صحیح ندی او با لعکس. دا دی د مارکسیست فلسفی نظر د امتناع تناقض په هکله، او ښاغلی مطهری بیځایه کوښښ کوي د اصل دقیق کول او له هغه څخه انکار یو شان معرفی کړی.

خو اساسي موضوع بل شی ده هغه دا چې د مارکسیست فلسفی د شمول دائره یوائې منطق او هغه هم صوری منطق ندی، نړۍ مادی دی او د «اصول فلسفه» لیکونکې په هیڅ قیمت نه غواړی چې د صوری منطق څخه جلا شی او د واقعیتونو په ډګر کې ګام کېږدی. د عینی واقعیت قوانینو څخه یو قانون همدغه د «د ضدینو د مبارزی او وحدت» قانون دی. هغوی دغه قانون چې په مادی نړۍ کې عمل کوي د امتناع تناقض اصل سره چې صوری منطق دی یو شان ګڼی او بغاری وهي چې مارکسیست د امتناع تناقض اصل سره مخالف دی حال دا چې مارکسیستي فلسفه دی اصل ته په پام سره لکه چې پورته توضیح شول مخالفت نلري. خبره د دې په سر ده چې دغه اصل او د تضاد قانون په ټوله کې یوبل سره توپیر لري، یو د صوری منطق په بستر کې غوړېدلی او بل د مادی نړۍ په بستر کې. داسې تر سترګو کیږي، ډېر کلونو تیر شویدی د دی لپاره چې ښاغلي لږ متوجه شی «د ضدینو د مبارزی او وحدت» قانون هماغه د امتناع تناقض اصل ندی، نور د هغه ډول په ټینګار او سرتمبګې ادعا نه کوي چې د تضاد قانون غلط دی، ښایی چې صحیح به وي. خو لکه چې وویل شول دوی نشی کولای چې هغه ومنې په هر ډول چې کیږي د هغه د ړنګولو په هڅه کې زیار باسی. د استاد او شاګرد دغه ګړوبړ خبرو اترو ته پام وکړی:

«(دننی تضاد) نه یوائې دا چې د اثبات لار نلري، بلکې هغو چې شته د هغه خلاف هم شته. نه دا چې یو مجهول امر دی، ښایی هم په واقع کې صحیح

وی او موږ نه پوهیږو. هغوی وایی زموږ فلسفه علمی ده یعنې موږ د علومو په ډاډ دا خبری کوو پداسې حال چې علوم دا ډول خبری نکوي»، «تاسی کولای شی اثبات کړی چې دا ډول نظام ناشونې دی؟» «نه، موږ دا ډول خبرې نه کوو، نه وایو چې ناشونې دی.» «نو بیا تاسی د خدای پیژندنې په بحث کې بند پاتی کیږې ځکه که چیری د دي خبري صحت امکان ولري خدای ته د نه اړتیا په مانا ده.»

«تر دی وړاندی او لږ څه مخکې مو په همدی مجلس کې وویل چې که فرضاً همدا ډول نظام ثابت شی او وجود ولري، بیا هم د علت او معلول دروازه پرانیستل کیږي او د الهیون استدلال په ځای پاتی کیږي.» («مارکس او مارکسیزم»، دویم دفتر، ۲۹ او ۳۰مخ)

له دي خبرو اترو په بشپړه توګه په ډاګه کیږي چې د تضاد قانون دومره ښکاره او څرګند دی او ځان دومره په ذهن باندی باروې چې حتی آیت الله مطهری هم هغه ناشونې نه ګڼي، د هغه صحت نه نفې کوي سره له دي چې پوهیږی «د خدای پیژندني په بحث کې ګیر پاتی کیږي» او د الهیونو استدلال «د علت او معلول باب» ته سپاری او واجب الوجود د علیت د قانون له مخي اثبات ته رسوی. (اصل علیت ته مراجعه وکړی)

ښاغلی مطهری په دې باور دی چې «علوم دا ډول خبري نکوي»، هوکې، د تضاد قانون یا په روښانه ډول «د ضدینو مبارزه او وحدت» یو فلسفی قانون دی، په ټولې نړۍ حاکم او عام قانون دی. د دی قانون کشف د مختلفو علومو لاسته راوړنو او پایلو څخه تر لاسه شوی چې د فلسفی دنده ده. لکه چې پوهیږو دا د هر علم دنده ده چې ځانګړي مادې واقعیتونه تر څیړنې لاندې نیسی او دهغه قوانین پیدا کوي پدي توګه هیڅ یو له علومو څخه د تضاد د قا

نون په هکله خبرى نکوي. د مارکسيسـت فلسـفى، دغه قانون د علومو له منل شـوو او انکار ناپذيرو لاسـته راوړنو څخه تر لاسه کړيدى، په دې ډول علومو باندى په اتکا کولو سره خبرى کوي. «اصول فلسفه» په دې باور ده چې:

«علمي پايلى د اوليه موادو ځاى لري چې د فلسفې په واک کې يې ورکوي او فلسفه له هغه اوليه موادو څخه د فلسفى کلى حقايق جوړوى»(دريم ټوک، ۲۰ مخ)

خو د تضاد قانون د خطا ايسـتلو لپاره په ناڅاپه توګه له دې نظر څخه مخ اړوي او وايى چې «هيڅ علم دا ډول خبرى نکوي» او هم نه ښايى چې دا ټول خبرى وکړى ځکه د علومو د پايلو د تعميم دنده د فلسفى ده، نه د هغه يا دغه جـلا جلا علومو. د دى لپاره چې ثابته يـې کړو د تضاد قانون په علومو متکې دى دوه ټکو ته اشاره کيږي: نن ورځ هر څوک په دې پوهيږى چې مادى نړۍ اتم څخه جوړه شويده او اتم په خپله له متضاتو زرو څخه جوړ شوى (الکترون او پروتون، الکترون او پروتون، زره او ضد زره او داسې نور). د اتم د هستي د داخلـى زراتو او بيرونـى زراتو تر منځ د دوه متضادو ځواکونو د جذب او دفع عمل دى چې د هغوى متقابله اغيزه د اتم او هسـتي په ټول جريان رڼا اچوى. که چېرى همدغه نمونه هم د اصل په توګه ومنو، آيا کولاى شو انکار وکړو چې د تضاد قانون په دې ځانکړې بڼه کې پر ټوله نړۍ واکمن دي؟

آيا کولاى شـو په ټولنه کې تضاد او طبقاتى مبارزه چې خپله په توليد کې د تضاد ښـکارندوى دي سـترګى پټې کړو؟ د مريتوب له پيل څخه تر اوسه چې پرله پسـې پيړۍ تېرې شـوى، هيڅکله تضاد او طبقاتى مبارزه قطع شوى نده او تر زياتى مودي به دوام پيدا کړى. آيا په اوسـنې طبقاتى ټولنه کې امکان لري چې د کارګر او پانګوال تر منځ، د پانګوالو انحصاراتو او امپريالستى هيوادونو

تر منځ په تضاد سترګې پټې کړو او هغه په پام کې ونه نیسو؟ آیا په اسلامي جمهوریت کې د واکمنو اخوانیانو او په آزادۍ مینو ځواکونو تر منځ تضاد، حتی د حاکمو اخوانیانو او د مخالفو ځواکنو تر منځ تضاد د لمر په شان روښانه ندی؟ په ټولنه کې د ننه طبقاتی تضاد او په اتم کې د ننه د زراتو تر منځ تضاد کافی ده د تضاد قانون نړۍ‌شموله وې. تاسو هیڅ داسي علم نشې پیدا کولای چې هغه علم تضاد سره سروکار ونلري. آیا بیا هم ویلای شو چې د تضاد قانون د «اثبات لار نلري» او په علومو متکې ندی؟ آیا د تضاد قانون لکه د نورو عینې قوانینو په شان اثبات کېدونکې دی؟ قانون یو عینې واقعیت دی چې علم د هغه د کشف په هکله رڼا اچوی. آیا «هغه څه چې شته دي د دی قانون خلاف دي»؟ که چېرې هر څه د دی قانون خلاف رایه ور کوي، که چېرې «په دې کې د تردید ځای نشته چې د عالم نظام په دې ډول ندی»، که چېرې د تضاد قانون «یوه ساختګې خبره ده» چې «هغوی راغلل او ویې اوبدل او غواړی چې په خلکو یې وتپي»، که چېرې «د تضاد اصل یوه پوچه او تشه خبره ده، د بحث وړ نده».(«مارکس او مارکسیزم»، دویم دفتر، ۲ مخ)

څرنګه کولای نشو چې دا ډول نظام ناشونی وګڼو او د هغه د نه سمون په اړه شک او تردید روا وبولو؟ واقعیت دا دی چې د «ضدینو د مبارزی او وحدت» قانون چې د مارکسیست ډیالکتیک زړی دی، د نړۍ ټول بدلونونه او تحولات د هغه د عمل پایله ده، سمه ده خو اسلامي ریالیستان پری نه پوهیږی او نه غواړی پوه شی او نه پوهیدای شی.

په رښتیا سره انسان حیرانیږی چې یو څیړونکی، استاد څرنګه د یو مطلب په هکله بحث کوي خو کوښښ نکوي چې حتی له هغه څخه یو روښانه لید ولري. کله چې مارکسیستي فلسفه د «ضدینو وحدت او مبارزې» څخه خبری

کوي موخه يې په ځيزونو او پدېدو کې داخلی تضاد دی: د اتم په داخل کې، د ټولنې په داخل کې تضاد، د ژوندي موجود په داخل کې تضاد، د شمسی نظام په داخل کې تضاد او داسې نور، له همدی تضاد څخه ده چې حرکت، بدلون او تکامل را پورته کيږي.

لکه چې د قانون له نوم څخه معلوميږی دوه ضد يا د تضاد دوه خواوې نه يواځې يو بل سره په وحدت کې دي او د يو وجود د بل لپاره لازمی دی خو په عين حال يو بل سره د مبارزې په حال کې دي او په دې مبارزه کې يو د بل د نفې کولو هڅه کوي. ډيالکټيکې تضاد هم د ځانګړو ځيزونو او پدېدو د کېفيت څرګند کوونکې يعنې د نسبی ټيکاو(ثبات) ښکاره کوونکې دی او هم د هغوی د حرکت او تکامل ښکارندوی. نسبی ټيکاو، د تضاد په نسبی تعادل او توازن کې د دواړو خواؤ متقابل اغيز دی، برعکس حرکت او تکامل، د يوې خوا برلاسې او بريا د بلی خوا د رفع کولو په خاطر، د يادولو وړ ده چې په خپله د تضاد دواړه غاړې ثابتی اوله بدلون پرته پاتی کېدای نشی بلکې پرله پسی بدلون کوي. د دواړو غاړو متفاوت تکامل د دی سبب ګرځی چې يوه غاړه تر بلی غاړی مخکې کيږي او بريا ترلاسه کوي او وحدت پای ته رسوی. پداسې حالت کې چټک ګام پورته کيږي شی يا پدېده له نوي کېفيت سره منځ ته راځي چې دا هم په خپل وار د نوي تضاد پنځغالي ګرځی تر څو د هغه حرکت او تکامل په غاړه واخلی.

«د ضدينو د مبارزی او وحدت» قانون تر هغه ځايه چې د ټولو شيانو او پدېدو د بدلون او تکامل قانون دی مطلق دی او تر هغه ځايه چې ځانګړی اړخ پيداکوي نسبی دی. په ۱۳۶۲ کال د «اطلاعات» په ورځپاڼی کې يو سلسله مقالي د «پايه هاى ايديوولوژيک التقاط» ترعنوان لاندې، ليکونکې د

مجاهدینو په التقاطی نړۍلید نیوکې کوي چې نشـو کولای هغه سـره موافقت ونکړو. په واقعیت کې د مجاهدینو«انقلابی» نړۍلید، مارکسیزم سره د اسلام یـو ځـای کولو پرته بـل څه نه وه او دغه ګډول پرته له شـک څخه امکان پذیر ندی. اسـلام او مارکسـیزم په نه پخلاء کېدونکې تضاد کې دي او د هغوی د پخلا کولو لپاره کو ښښ کول په هاونګ کې اوبه ټکول دي. که څه هم د مقالی د لیکونکې موخه د مجاهدینو د التقاطی ایدیولوژی په ګوته کول وو خو وخت یې غنیمت شمیرلی د کېنې له مخې د مارکسیست په فلسفی هم نیش وهی چې د تضاد قانون کنګل او بی روحه کړی!

د لیکونکـې اسـتدلال د تضـاد د نـړۍ شـمولیت د ردکولو پـه اړه دا ډول دي:«نن ورځ د اتم مدل هماغه د بوهر(Bohr) مدل ندی. د بوهر مدل یواځې الکترون او پروتون څخه جوړ شـوی وه حتی په هغه کې نوترون څخه هم خبر نه وه پداسـې حال کې چې نن ورځ د اتم د هسـتې (پروتون او نوترون) له زړه ځینی تر دوه سـوه (۲۰۰) څخه زیاتی مختلفی ذری را ایستل شویدی». «لکه چې وویل شـول یواځې هغـه ذری چې پیژندل شـوی وی الکترون او پروتون وی د بوهر اتمی مدل، خو نن ورځ تر دوه سـوه زیاتي ذری پیژندل شـویدی د مکانیک کوانتوم د فرضیۀ په اساس نور د بوهر مدل د اعتبار وړ ندی او د دې خبرو تکرارول پرته له شـوخی بل څه ندي او دا ډول شـوخی خندا هم نلري.» «دوهم، په اتم کې مثبت او منفې بار» دوه مختلف بارونه دی نه متضاد. په دې ډول د مارکسیسـتانو اسـتناد د مثبت او منفې بار تضاد بی بنسټه دی.» «دریم، د الکتـرون حرکـت د پروتون په چاپیر د تضاد پایلـه نده: که چېری د الکترون حرکـت د پروتون په چاپیـر د دغه دوه الکتریکې بارونـو د تضاد اغیزه ده، نو ولـی کله چـې دا دواړه یوبل ته نږدی کوو (باید قاعدتـاً په دې ځای کې تضاد

ښــه عمل وکړی) هیڅ حرکت منځ ته نه راځي بلکې یو په بل کې جذب کیږي او حرکــت یــې په ســکون بدلیږی؟ که چیری د اتم په داخــل کې د الکترون او پروتون حرکت د دغه دوه الکتریکې بارونو د تضاد اغیزه وې نو د اتم په داخل کې د نوترون حرکت په کوم شــی توضیح کیږي؟» «خو» ډېره غټه ستونزه چې د هغه وخت اتمی مدل ور سره مخامخ شو (هغه اتم چې دوی یې اړ کړل تر څــو ووایــی په اتم کې د الکترون حرکت په اتم کې د داخلی مبارزی په اســاس توضیــح کیږي) هغــه دا ده کله چې الکترون د اتم چاپیــر وڅرخې د الکتریکې تشعشــعاتو تر اغیــزی لاندې انرژی له لاســه ورکوي او پــه ورو ورو یې مدار کوچنې کیږي، بالاخره د هستې په مخ لویږی او حرکت له منځه ځي.»

دا چــې نــن ورځ د بوهــر اتمی مدل معتبر ندی په دې کــې هیڅ خبره ځای نلري، دا چې نن ورځ د اتم د هستې سپړلو له امله زیات ذرات کشف شوی او پیژندل شــویدی هیڅ ډول شــک وجود نلري خو سربیره پر دي یوه منل شوی خبره داده چې الکترونونه خپل منفې بار ســره د هســتې پــه چاپیر له مثبت بار ســره حرکت کوي لکه چې وینو د هســتې مثبت پروتونونه، منفې الکترونونه نه جذبــوی، الکترونونه د هســتي په مخ نه لویږی او حرکــت له منځه نه ځی. که داســې نوي هیڅکله به اتم او د هغه جوړښــت نه مطرح کېدای او مادي نړۍ به بله بڼه درلودلی. که چیری د پروتونو مثبت بار الکترونونه له منفې بار ســره د ځان خوا ته نه راکاږې او الکترونونه د هســتې په مخ نه لویږی باید بله نیرو وجود ولري چې د هستې جاذبه نیرو خنثی کړی، یعنې د هستې د جاذبی نیرو په وړاندی بله دافعه نیرو وجود ولري او دغه دوه ځواکونه دواړه د اتم په داخل کې ځای لري او د دغه دواړو د اغیزی پایله ده چې الکترونونه د هستې شاوخوا په ګرځنده حالت کې دي. دا د دوه جمع دوه څلور حساب دی، دا واقعیت دی

نشـو کولای چې سترګې پرې پټې کړو. اوس ولې د دغې صحیح خبرې تکرار «پرته له شوخۍ بل څه نشي کېدای» معلوم ندی. دا چې د بوهر مدل نور اعتبار نلري او د اتم له زړه څخه تر دوه سـوه زیاتې زرې بیرون ایسـتل شـویدی دغه واقعیت مطلقاً نه نفې کوي چې د اتم هسته د مثبت بار لرونکې ده او منفې بار د هغه په چاپیر ګرځي او دغه حرکت او ګرځیدل پرته د دوه متضادو ځواکونو په سـیورې د توضیـح وړ ندی او هیڅ چا هم پرته له دغــې توضیح بله نده تر لاسه کړی.

په یاد یې لرم چې تیر وخت کې یو آخوند منبر ته پورته شو او د مدرسې، معلم اوعلـم د بــې اعتباره کولو لپاره یې چیغي پورته کړی: «هغوی وایی سـولفات دوپتـاس، پوهیـږې یعنې څـه؟ یعنې خـدای دوه دي. هغوی وایی سـولفات دوسـود، پوهیږې یعنې څـه؟ یعنې خدای نه ووه.» اوس یـو بل آخوند را پیدا شـوی چې هماغه شـیوه د یو مدرن بیان له لاری په کار اچوی او له هغه پدیدو لکه «اسـپین» او «مقناطیسـی میدان» څخه د دې لپـاره خبرې کوي چې خپل «اسـتدلال» ته درنښت ور په برخه کړی. هغه تاسو ته وایی: د بوهر اتمی مدل زوړ شویدی او د منلو وړ ندی، اتم په خپل زړه کې ډېرو ذراتو ته ځای ورکړیده او بیا له هغه څخه نتیجه تر لاسـه کوي چې: تضاد نشـته او مارکسیستان ټوکې کوي «کله چې په اتم کې د ننه تضاد ځینی خبرې کوي». پداسـې حال کې چې د بوهر د اتمی مدل او د هستې د زیاتو ذراتو تر منځ، له دغه واقعیت سره که په هر تقدیر د داتم په داخل کې منفې الکترونونه د مثبتې هسـتې په چاپیر ګرځي هیڅ اړیکه نلري. ښـایی لیکونکي د خپلې خبرې کمزورې درک کړی وي چې دویمه ستونزه مطرح کوي«په اتم کې مثبت بار او منفې بار دوه مختلف بارونه دی نه متضاد» او «په دې ډول د مارکسیسـتانو اسـتناد د مثبت او منفې بار تر

منځ تضاد بی بنسټه دی». لیکونکی بیا هم یو کوچنی ټکی هیر کړی، هغه دا چې که مثبت بار او منفي بار متضاد ونه بولو هر تضاد لکه ښه او بد، ښکلي او کرغېړن، ژوند او مرګ، شمال او جنوب، کولای شو دوه مختلف مفاهیم وبولو او په دې ترتیب د تضاد کلمه د فلسفي- هرې فلسفی له هغه ټولګې د اسلامي فلسفی له قاموس څخه بیرون کړو. لیکونکی په خپله د «قوې او فعل د تضاد» خبری کوي. ولې «قوه او فعل» دوه متضاد څیزونه دي نه دوه مختلف څیزونه؟ نه هیڅکله نه په دې علت چې اوسنۍ زمانه کې حق همیشه آخوندانو سره دی او د زور منطق تر ټولو غوره منطق دی! اساساً معلومیږی چې لیکونکی د «اختلاف» او «تضاد» تر منځ په توپیر نه پوهیږی. «اختلاف» د مادي څیزونو یا ایدیې ګانو تر منځ اړیکه ده چې د خاصیتونو او صفاتو له لحاظه یو بل سره یو ډول نه وې مثلاً سره زر او سپین زر یو تر بله مختلف دي یا تور او سپین توکمونه یوبل سره مختلف دي ځکه چې خواص او صفات یې یو بل سره توپیر لري. په دې مانا یوائې او یوائې په دې مانا ـ دوه متضاد څیزونه «مختلف» دي. خو که چېری هر «تضاد» «اختلاف» دی، هر اختلاف تضاد ندي. تضاد «اختلاف» تر هغی پولې په مخ وړي چې هغه په دوه قطبونو وویشې او د دوه قطبونو ویش په دې مانا ده چې یو یې د خپل ماهیت له مخی د بل په وړاندی دریږی او برسیره پر دي د یو وجود د بل وجود پوری تړلی او مشروط دی. د اتم مثبت بار او منفې بار قطبی خاصیت لري په دې ډول د یو وجود پرته د بل وجود څخه د تصور وړ ندی. لیکونکی چې مثبت بار او منفې بار «اختلاف» نوموي په واقعیت کې د تضاد او اختلاف تر منځ ماهوی توپیر له منځه وړی. نه یوائې د اتم په داخل کې حرکت د دوه متضادو ځواکونو اغیزه ده حتی د اتمونو ټیکاو(ثبات) او بدلون هم د هستې په داخل کې همدې

ځواکونـو پورې تړلی دی. په هسـته کې د نه دوه متضـاد ځواکونه یو د بل په وړاندی ځای لري: لمړې هغه ځواک چې د هستې اجزاء یو بل سره پیوند کوي او هسـته ثابته ساتي او بل ځواک پروتونونه (مثبت بار سره) چې پرله پسی یو بل دفع کوي، د هستې ثبات او په دې ډول اتم له بدلونونو سره مخامخ کوي. د پروتونو د شمیر په زیاتیدو سره د بدلون ځواک د ثبات پر ځواک پیاوړی کیږي او اتم د منځه‌تګ په لور میل کوي. بیځایه نده چې درانه عناصر ټول رادیواکتیو دي او بیځایه نده چې د کېمیاوي عناصرو شـمیر هم محدود دی. د لیکونکي بل دلیل د تضاد د «رد» په اړه چې تر ټولو بیمایه او بی تومنې ده او هغه دا چې که د الکترونو حرکت له مثبت او منفې متضاد بارونو سره توضیح کولای شو د هستې په داخل کې د نوترون حرکت څه ډول توضیح کېدای شی؟ البته موږ د آخوندانو په شان «استاد» او «علامه» او «بحرالعلوم» نه یو چې د ټولو مقدر او غیر مقدر پوښتنو ته په لستوڼو کې ځواب ولرو. د نوترون حرکت ته یواځې یو فزیکدان توضیحات ورکولای شـي که په فرضي توګه اوسني وخت کې موږ ته د نوترون د حرکت علت معلوم ندی آیا حق ندی چې د اتم داخل کې حرکت د تضاد پر اسـاس توضیح کړو؟ آیا کولای شو د لمر شاوخوا د سیارو حرکت په دې علت چې نشو کولای د لمر حرکت توضیح کړو له نظره لیری کړو؟ اساساً دغه دواړه مطالب یوتر بله څه اړیکې لري؟ د اسلامي جمهوری د «تئوریسنانو» شـوق او ګرمي مارکسیسـت فلسفی سره د مبارزې لپاره ډېره توده او ګرمه ده. خو د دې خلکو د مبارزې کیسـه د مېږیانو نکل ته ورته ده چې غواړی یوه غټه او دنګه ونه چپه او له منځه یوسـی. مارکسیسـتي فلسفه دومره کاواکه نده چې دا شان بادونه یې ولړزوي. موضوع تر بل لید لوری څیړو:

د مارکسیسـت ډیالکټیـک یو لـه اصولو څخه په دې بـاور دی چې په نړۍ

کې ټول شـيان د بدلون په حال کې دي. هيڅ شـی په دوه مختلفو شيبو کې يو شـان باقي نه پاتې کيږي. سـکون او ټيکاو(ثبات) نسبی دي، حرکت او بدلون مطلق دي. په بل عبارت يې ويلای شو چې ټول شيان د کېدو په حال کې دي، لـه يـوې وضعې او حالت څخه بل حالت او وضعې ته د اوښـتون په حال کې دي. البته دا په دې مانا نده چې مارکسيسـتي فلسـفه د کېفيت ټاکل نفې کوي: د سـکون او ټيکاو(ثبات) د نښـو ښوول نسبی دي. هر شئ يا هره پدېده خپل ځانګړی شـخصيت لري او دا تر هغه وخت پوری چې شـتون لري ځان سـره سـاتي، لکه چې دوسـت نن پيژنو له هغه څخه سـبا ورځ بل کس نه جوړيږی او بل شـخصيت تری نه جوړيږی. خو همدغه دوسـت هره لحظه د بدلون په حـال کې ده پاتی لا سـبا يا بل سـبا، منتها دا بدلون په هغـه کچه چې موږ يې وينو محسـوس ندی، له دی کبله زموږ دوسـت سره له دی چې تل د بدلون په حال کې ده خپل شـخصيت او ښـودنه له لاسـه نه ورکوي. د کرج سيند زموږ لپاره هميشـه د کرج سـيند دی خو آيا دا په دې مانا ده چې هغه تل د بدلون په حال کې ندی؟ روښـانه ده چې بدلون د کېفی ټاکنې مخالف ندی او بالعکس. اسـلامي فلسـفه لږ تر لږه په مادياتو کې د بدلون په اصل باورمند ده نو څرنګه کولای شو چې د دغه منل شوی امر په وړاندی راپورته شو؟

«... مثلاً بهرني عالم کې ځانګړې مادې واقعيتونه مهالنی(موقت) دی ځکه چـې مـاده او د هغی د اجزاؤ اړيکې هميشـه په بدليدو دي. هـر واقعيت د يو محـدود وخت لپاره د طبيعت په صحنه کې تر سـترګو کيږي او له منځه ځي. دا ډول واقعيتونـه مهالنـی او لـه منځـه تلونکې دی»(«اصول فلسـفه و روش رياليزم»، لومړني ټوک، ۱۳۸ مخ)

که چيری «يو شی په دوه شيبو کې په يو حال نه پاتې کيږي» بايد ومنل شي

چې هر شی په هره لحظه کې یوځای کېدل او له منځه تلل دی یعنې هر شی په هره شـــیبه کې هم خپل شـــی دی او هم ندی. په پام کې ونیسئ چې یو شیبه کې A دي او په وروســتۍ شــیبه کې د بدلون د اصل په اساس B. که چېرې شی په لمړۍ شــیبه کې منحصراً د A په حالت وي امکان نلري چې په وروستۍ شیبه کې د B حالت کې ځای ونیســي. پایله دا ده چې شـــی په هره شیبه کې همدا A په حالت کې ده او هم د اوښتون په حالت کې B ده. یعنې په هره شیبه کې هم خپـل شـــی ده او هم نده. هــم هغه دی او هم هغه ندی. پــه دې ډول بدلون په خپلــه تضــاد دی، تضاد کېدل او تضاد نه کېدل، په بل عبارت هر شـــی په هره لحظــه کې د کېدلو (شـــدن) په حالت کې دی، یو حالــت څخه بل حالت ته د اوښتون حال کې دی. په لرغوني یونان کې زنون د حرکت متضاد خصلت ولید او له هغه څخه یې پایله واخیســـته چې حرکت وجود نلري ځکه چې یو جســم نشی کولای د امتناع تناقض د اصل له مخی هم په یوې نقطه کې وې او هم به هغی کې نوې او له دي اصل څخه یې پایله واخیسته چې حرکت پرته له ګمان او انګیرنې بل څه ندي. اســلامي ریالیســتان چې لږترلږه بدلون په مادیاتو کې مني، باید د تناقض او تضاد شتهوالي «بودن» او نشتوالي «نبودن» په هر شي یا د شیانو تر منځ په هرې اړیکې کې ومني او بیا د امتناع تناقض اصل په مادیاتو کې او په طبیعت کې سترګي پټوي.

خو ښاغلی مطهری په صراحت سره پرته له هیڅ دلیل څخه هغه رد کوي. که پرته له دې وای عجیبه د وکړه! هغه لیکې:

«د هیــګل د وینــا لــه مخــی «کېدل (شـــدن) یعنې د شـــتوالی او نشـــتوالی مجموعه» دا یوه بی منطقه او غلطه کلمه ده او د دغه تقسیم اساس باطل دی، مانایی داده چې د شتهوالي (بودن) فلسفه له کېدلو(شدن) څخه منکریدل دي.

ښــه، بله فلســفه لرو چې هم په کېدلو باور لري او هم په شــتوالي»(«مارکس و مارکسيزم»، لمړی ټوک، ۱۴۰مخ)

د شــتهوالي او نشــتوالي (بودن او نبودن) جمع کول لکه چې تر مخه وويل شــول په خپله په بدلون کې ځای لري نو ځکه يا بدلون وجود لري چې په دې صورت کې د هغه محرکه نيرو، تضاد «شتهوالی» او «نشتوالی» د شي په داخل کې وجود لري چې په هيڅ عنوان نشــو کولای له هغه څخه په ډډه تير شــو، يا بدلون او بدلون نشته او ټول څيزونه د سکون او ټيکاو(ثبات) په حال کې دی، په دې صورت کې د اســلامي رياليزم له خوا د بدلون منل بی محتوا خبره ده. بدلون، زمان او مکان سره تړلی دی. که زمان ليرې شي (کوم شی چې يواځې د خيال په نړۍ کې امکان لري) او ټول څيزونه له حرکت، بدلون او تحول څخه پاتی کيږي، سکون او ټيکاو(ثبات) ټول مادي نړۍ په سر اخلي. آيا کولای شو دغه منل شوي امر څخه انکار وکړو؟ هوکې کولای شو. ښاغلی مطهری په دې باور دی چې «زموږ په فلســفو کې زمان د بــودن دروازه ندی» (هماغه ځای) د زمان حذفول له «بودن» څخه، له هســتي ځينی د حرکت او بدلون او تحول يو ډول انکار کول دي. اسلامي فلسفه له يوې خوا تاسو ته وايی: «يو شئ دوه شيبو کې په يو حال باقی نه پاتی کيږي»، خو زمان د «بودن»، له واقعيت څخه جــلا کوي چې په واقعيت هر څه وچوي او وژني، په ســکون او ټيکاو(ثبات) کې يې ســاتي کله چې د «بودن» دروازه يې زمان نده هيڅکله بدلون او تحول ســره نه مخامخ کيږي. په دې باور درلودل چې ټول شــيان د بدلون په حال کې دي د زمان په حذفولو «بودن» سره په ټکر کې واقع کيږي.

اســلامي فلســفه غواړی ووايی چې د A حالت «بودن» ده، د B حالت هم «بــودن» ده. که چېری د «بــودن» دروازه زمان نه وي د B حالت هيڅکله منځ

ته نه راځي تر څو وکولای شــو په هغه د «بودن» نوم کېدو او د A حالت د تل لپاره ټینګ او ثابت پاتې کیږي. ښاغلی مطهری په مارکسیستانو نیوکه کوي چې بودن د ټیکاو(ثبات) په مانا کاروي:

«د هغوی له پیل څخه غرض دا دی چې د بودن مفهوم مساوی دي له ټیکاو سره... یعنې په دوه زمانو کې یو ډول شتهوالی. که په دوه زمانو کې یو ډول نه وو، بیا هغه بودن ندی بلکې شدن دی».څه ویلای شو کله چې د بودن مفهوم «هغه بودن چې دروازه یې زمان نده» د ټیکاو له مفهوم سره برابره ده؟ څرنګه ویلای شــوچې «په دوه زمانو کې یو ډول شتهوالی» بی تړاووه خبره ده، په دې علت چې مطلقاً زماني نده تر څو وکولای شو د «یو ډول‌والي» په هکله «په دوه زمانــو کې» دهغــه داوری وکړو؟ وینې کله چې مارکسیســتان «بودن» له ټیکاو سره یو شان نیسی یواځې حقیقت بیانوی.

«موږ فلسفه لرو چې هم په بودن باور لري او هم په شدن» دا هم ناسنجول شــوی خبره ده. هغه چې یواځې په بودن باور لري او نبودن له بودن څخه جلا کــوي او په شــدن باوری نــدی. مګر دا نده چې تور په ســپین لیکې: «زموږ په فلســفو کې د زمان لپاره د بودن فعل نشــته» که زمان نشــته «شدن» هم نشته. اســلامي فلســفه په دې موضوع کــې یا کاواکه ده له دی کبلــه چې له یوې خوا بدلون منی او له بلی خوا د زمان په حذفولو هغه نفې کوي یا اساساً په مادیاتو کــې هــم په بدلــون بی بــاوره ده او د هغه په باور کولو تظاهــر کوي ځکه چې بدلون یو منل شــوی امر دی نشی کولای هغه نفې کړي. په پای کې زیاتوو چې بدلــون نړیــوال خصلت لري که بدلون د تضاد اغیز وې، پرته له شــک څخه د تضاد قانون په ټول مادی نړۍ حکم چلوی.

# ډاکټر شریعتي او مارکسیستي فلسفه

سره له دې چې مارکسیزم په ایران کې په سختۍ ټکول شوی او ټکول کیږي، سره له دې چې مارکسیستان د شاه په رژیم کې د «سرې ارتجاع» تر عنوان لاندې او په اسلامي رژیم کې د بې دین او خدای سره د محارب تر عنوان لاندې په اعدام محکوم کېدل او محکومیږي، سره له دې چې د کارګرې طبقې لارویانو هیڅکله هم د خپل فکر او نظر د بیان او تبلیغ آزادي نه درلوده او نه یې لري، بیا هم د مارکسیزم جذبه دومره پیاوړې ده چې د ظلم، بې عدالتۍ او طبقاتي ناتار د لهمنځه وړلو غوښتونکي ځانته راکاږي او د ډاکټر شریعتي په وینا د هر ځوان مارکسیست په سینه کې مخالفینو سره جګړه روانه ده، د بې حده فشار او تنګسیا سره سره چې په مارکسیزم ترسره کیږي، مخالفان اوس هم په دې باور دي چې بریا د مارکسیزم په برخه ده. د دې بریا راز په څه کې دی؟

ډاکټر شریعتي د «نړۍ لید توحیدی» د دویم دفتر په (۵۰مخ) کې د دې بریا له راز څخه پرده پورته کوي او لیکي: «په خواشینۍ سره جلا جلا او جګړه ماری ایډیالوژیکانې (د هغه زیات پام د مارکسیزم په لور ده — ف)... ډېر فنی، پاخه او ویښ ډګر ته راغلي، حتی خپلې ایډیالوژي ته یې داسې درسی بڼه ورکړیده که زموږ ځوان نسل د هغو دری څلور جزوي او کتابونه ولولی یو کولې، بشپړ او روښانه تصویر د هغه مکتب تر لاسه کوي، د ځوان نسل د اړتیا وړ اطلاعات او د شعور په اندول د دی ایډیالوژي ځانګړې څیره احساسوی.» او «کله چې یې په وجود کې د ننه د اسلام تصویر مغشوش، بې شکله او ګډوډ او د بلی متضادی ایډیالوژۍ تصویر مشخص، په بڼه بڼه بشپړ مطرح

وی طبیعتاً جګړه د هغې ایډیالوژۍ په ګټه او د اسلامي ایډیالوژۍ په ضرر تمامیږی.» شریعتی له دې وضعی څخه غمګین او ناراحته دی، د چارو په لټه کې دی او د کار چاره په دې کې وینی چې اسلامي ایډیالوژي هم له ګډوډۍ او بی شکلی څخه ووباسي په بشپړ او روښانه وضاحت بیان شي.

«ډېر چټک او ستر کار زما په آند اعتقادي او فکري زمینه کې د اسلامي ایډیالوژۍ د بشپړې څېرې تدوین کول دي تر څو هغه ډول چې اوس د یو مارکسیست لپاره... په هره کچه کې که د یوی کارخانی کارګر دی که د پوهنتون استاد دی د خپلې ایډیالوژۍ بشپړ تصویر او اعتقادي څیره یې روښانه ده، دنده یې معلومه، مسئولیت یې څرګند او طبقاتی ځای ګوتهی یې ښکاره دی، د هغه ځوان نسل لپاره هم چې اسلامي اعتقاد او مذهب پوری تړلی دی باید د خپلې ایډیالوژۍ څخه روښانه بشپړ تصویر ولري تر څو وپوهیږی چې په کوم ځای کې دی، لوری او مسئولیت یې څه دی، د خپل زمان پدیدو او واقعیتونو سره څه اړیکې لري او په هر حال د خپل دوست، دښمن او مخالف جبهه وپیژني او وپوهیږي چې مخامخ، تر شا، ښي او کیڼ لوري ته یې څوک دي او جای ګوتهې یې څه دی.» («نړۍ لید توحیدی»، ۹مخ) دې موخی ته د رسیدلو لپاره ډاکټر شریعتي د څو نشریو په خپرولو د «ایډیالوژۍ زده کړه» تر عنوان لاندې لاس په کار کیږي تر څو د یو «دقیق، منطقي او علمي کار» له مخی دغه اړتیا له منځه یوسی. آیا دا ربنتیا ده چې د کارګرې طبقې او رونآندو په منځ کې د مارکسیزم د جذب علت دا دی چې مارکسیستان د پرولتاریا نړۍلید ته «درسی بڼه» ورکوي یا «فنی، پاخه او ویبنن ډګر ته راځي» او په پایله کې «ځوان نسل په ډېر اسانتیا هغه درک کوي» هغه ته جذب کیږي؟ نه دا ربنتیا نده. که چېري داسې وای هیڅکله به د ځوانانو په سینه کې د اسلام

او مارکسیزم تر منځ جګړې اور نه اخیسته، څرنګه چې د اسلام په باره کې ډېرې مقالې، خپرونی او کتابونه لیکل شوی او خپاره شویدی او له هغی ټولګی څخه د ډاکټر شریعتي درسی کتاب «اسلام شناسی». زموږ په هیواد (او په بل کوم هیواد کې)، مذهبی تبلیغات هیڅکله تر فشار لاندې نیول شوی ندی یا یې خبره منع کېدو ته رسیدلی نده، که چېری د څوارلسمی لمریزی پیړی د شلمي لسیزی په وروستیو ۶۰ کلونو کې د ځانګړو سیاسی شرایطو له مخی د خلکو پرګنې له هغه ټولګې مارکسیستان له یوې محدودی او نسبی آزادي څخه برخه ور وو، سترګی پټی کړو بیا هیڅکله مارکسیزم او مارکسیستانو د سیاسی فعالیت او د خپلو افکارو او نظرونو د تبلیغ آزادي نه درلوده او هغه څه چې د عمومي افکارو په وړاندی په ډاګه شویدي په ډیرو سختو او مرګنیو شرایطو کې ډګر ته راغلي دی.

په پای کې څه وشول چې سره له هغه ګڼ شمیر ستونزو، محدودو او کم شمیرو خپرونو مارکسیستان د ځوانانو په زړونو کې ځای نیسی او هغه د ځان مینان جوړوی؟ دلیل یی روښانه دی هغه دا چې مارکسیزم ځوانانو ته ملموس او محسوس حقیقت وړاندی کوي او د ټولنې مسائل په صحیح ډول، واقعیت سره په تړاوو کې مطرح کوي، په دې ډول چې هر ځوان، هر کارګر او روڼآندی کولای شی د هغوی صحت د سرپه سترګو ووینې او په لږ تفکر یی ترلاسه کړي. په مارکسیزم کې تعبد نشته بلکې تعهد دی.

مارکسیزم هیڅ وخت نه غواړی چې انسان دې پداسې شي اعتقاد او ایمان ولري چې د اثبات او درک وړ ندی. د مارکسیزم نړۍلید علمی نړۍ لید ده، د مختلفو علومو د لاسته راوړنو پر بنسټ یې شکل نیولی د علومو تکامل او د انسان د مبارزی پراتیک سره (په طبیعت او ټولنې کې) څنګ په څنګ

تکامل پیدا کوي. البته مارکسیزم په دې ندی توانیدلی چې د کائناتو اړوند ټولو پخوانیو او اوسنیو مسائلو ته ځواب ووایی، د نړۍ او بشریت اړوند ټولو لرې راتلونکي ته ځواب ووایی. مارکسیزم په دې حقیقت ټینګ باور لري چې «په ټولو شیانو ټول پوهیږي او ټول تر اوسه نړۍ ته ندي راغلي» د هر انسان یا حتی د ټولو انسانانو معلومات د زمانی په یو پړاوو کې محدود دي، د زمان شرایطو پورې، د ټولنې او انسان د تکامل درجې پورې، خو مارکسیزم د کانت دغه نظر چې انسان نشی کولای د شیانو او پدیدو ماهیت ته لاس‌رسی پیدا کړی په غوڅه توګه مردود شمیرې. ډاکټر شریعتي په خپله په دې نظر چې «غیب (دهغه منظور نا محسوسه شیانو څخه دی)، په خپله ویشل کیدونکې دی په هغه غیب چې پیژندل کیدونکې ندی او په هغه غیب چې پیژندل کیدای شی» («نړۍ لید توحیدی»، دویم دفتر، ۴۲ مخ). باور نلري ځکه چې د علومو د تکامل تاریخ پرله پسی له ناپوهۍ څخه پوهې ته، له ناپیژندو څخه د پیژندو په لور تګ کړیده او اوس هم په همدې مسیر تګ کوي او په پوره یقین سره راتلونکې کې به هم په مخ روان وي. انسان نن ورځ هم مسائلو سره مخامخ دی او په راتلونکې کې به هم مخامخ کیږي کوم چې هغه ته ناپیژندلی دي. اساساً د انسان اوسنې پوهه د ناپوهې په پرتله لکه په سمندر کی د یو څاڅکي په اندازه ده خو انسان پرله پسی د مادي نړۍ د قوانینو د کشف په لار کې مخ په وړاندی ځي هره ورځ د نړۍ له اسرارو څخه یو راز کشفوي، د نړۍ له رمزونو څخه یو رمز پرانیزی. د دویمې نړیوالې جګړې دوران څخه وروسته د مختلفو علومو تکامل ته په کتو سره په ډاګه کیږي چې بشرې پوهې څومره ستر ګام پورته کړی دی.

مارکسیستان هیڅکله د بشر د نادانۍ په اعتراف کولو نه شرمیږی، هغوی

باور لري چې انسان پر له پسې نسبی حقايقو څخه د مطلق حقيقت په لور روان دی. دا د انسان د شناخت د تکامل قانون دی. هغه کسان چې په مطلقو مجهولاتو ډډه وهی او داسې مجهولات چې وجود يې هم ثابتولای نشی، ټول شيان توضيح کوي او د کائناتو ټولو مسائلو ته ځواب وايی چې په واقعيت کې هيڅوک ورباندی نه قانع کيږي، مارکسيستان د مادي نړۍ (طبيعت او ټولنه) پدېدي او چارې د بشرې پوهي له مخي چې د هيچا له تر ترديد لاندې نه راځي او د هغو عيني قوانينو په اتکا چې په مادی نړۍ حکم چلوي توضيح کوي او پياوړتيا يی هم په همدې کې ده نه دا چې خپله ايډيالوژی په «درسي بڼه» بيانوی. مارکسيستان د انسانانو د خلاقيت په پياوړتيا ايمان لري چې په خپله د هغې يوه برخه جوړوي، مارکسيستان په هغې ټولنې ايمان لري چې په هغې کې انسانی ارزښتونه خپل لوړمقام تر لاسه کوي، متعهد، مبارز، سرتيرې او فداکار انسانان جوړوي. ډاکټر شريعتي چې مارکس او مارکسيزم سره د پخلاينې او جوړ جاړی سر نلري، ويې نشو کولای په دې حقيقت سترګی پټی کړی چې مارکسيستان تر دي کچې مبارز او متعهد انسانان دي چې د خپلو طبقاتی دښمنانو په وړاندی خپل ځانونه نه سپموی. او مارکسيستانو ته په خطاب کې ليکي:

«ما ته وايې چې د هغوی (کارګرانو) موخي او ګټو ته د رسيدلو په خاطر له خپلو ګټو تير شه، دا خو زما لپاره يو ارزښت دی، بيا ځم او بندې کيږم، وايې زغم يی کړه، بيا غواړي چې غرغرې ته مي پورته کړی، وايې چې قبوله يی کړه، اوس زه د يو روڼآندی په توګه د ارزښتونو په وړاندی ولاړ يم نور په دې ځای کې د مادې ګټو کشش او انګيزه نشته، اصلاً د هغی نفې ده». «مذهبيون او مارکسيستان دواړه مشترک اخلاق لري. هغه هم په مذهبی اخلاقو معترف

دی او په هغو ډېره لګوي. حتی نن ورځ وینو چې هغوی له موږ څخه زیاته ډېره لګوي!!»

«اوس کوم کسان د دی روایت «کونوا لا لظالم خصما ولا لمظلومین عونا» مصداق دي؟ مذهبیون یا هغوی؟ دا په خپله د مذهبی اخلاقو یوه بلنه ده. خو وینو چې نن هغوی له مومنانو څخه زیات په دې روایت عمل کوي.»(«مذهب، تکامل، نړۍ لید»، د ډاکټر شریعتي د خبرو فیته، نشر پیام و خون، ۱۲ او ۱۵مخ)

تر هغه ځایه چې ډاکټر شریعتي مارکسیزم نه پیژني او له ماتریالیزم څخه «بی روحه شی (مړی)»، مادی او دنیایی مزو چړچو ته پام درلودلو پرته بل درک نلري، د مارکسیستانو سربښندنې د مومنانو په کچه حتی تر مومنانو اوچته د هغه لپاره حیرانوونکې ده، نشی کولای چې د مارکسیزم د سربښندنو او فدا کاري اړیکه د هغه په ژمنتیا کې پیدا کړی. ډاکټر شریعتي حیران دی چې څه ډول کولای شی په مارکسیزم باور ولري او انساني ارزښتونو ته بیه وټاکي. هغه اخلاقی فضایل او انسانی ارزښتونو ته درناوې کول د مذهب ولکه کې او هغه هم اسلامي مذهب پوری تړي. سره له دې چې تور په سپین لیکې:

«زموږ په خپل بازار کې تر امریکا شرموونکې ربیښاک د همدی مومنانو،حاجیانو، موومن او مقدسو پانګوالو تر منځ شتون لري او په ورته وخت کې نوم یی اسلام دی، تر ټولو شدید او تند اسلام په تیره بیا چې ابوذری اسلام هلته مطرح دی»(«نړۍ لید توحیدی»، دویم دفتر، ۹مخ)

په سیاسی برخه کې هم همدغه مومنان چې غیر مسلمان تکفیروي او هغه مهدورالدم شمیری، د خپلو طبقاتی ګټو لپاره په بینوا او بیچاره خلکو دومره ظلم او ستم روا ګڼي چې د ظالمانو او مشرکانو مخ سپینوی. زبیښناک، ظلم او

ناتار ټول طبقاتي اړخ لري او شـریعتی دومره په خپل لاک کې نـنوتې دی چې نه ويني په هغه ځای کې چې د مادي ګټو خپې منځ ته راشـی هلته د ارزښــتونو لپاره کوم چې اســلام ورله نســبت ورکوي باقی نه پاتي کيږي. شريعتی د دي په ځای چې د پورتنې باور له مخی دې پايلې ته ورسـیږی چې موومنان، حاجيان او د بازار موومن او مقدس پانګوال د خپل طبقاتي سرشت له مخی عمل کوي او طبقاتی ګټي اسلام نه پيژني، دا ډول نتيجه ګيرې کوي چې هغوی مسلمانان ندی «عثمانې وار ژوند کوي او د ابوذر لپاره اوښــکي تويوی». د مارکسيســت نړۍ لید پر بنسټ د پانګوالو چلند کاملاً د درک وړ ده خو د شريعتی اسلامي ايډيالوژۍ پر بنســټ نا مفهومه ده لکه د مارکســيزم تعهد، مبارزه او سرښندنه د شــريعتی لپــاره د تضاد حل ناشــونې دی. هرڅوک د مارکســيزم په طبقاتې توضيح پوهيږی خو اســلامي ايډيالوژي ســره د هغه لپاره د زبيښناک، ظلم او ناتار واقعيتونه لا ينحله دي.

## ماتریالیزم او ایډیالیزم

ډاکټر شــريعتي اخلاقي خصلتونه لکه تعهد، مســئوليت، مبارزه د انســانی ارزښــتونو په خاطر ايثار او داســې نور مارکســيزم ســره په تضاد کې وينې له همدی کبله په دې باور دی چې مارکسيســت د ژوند په چلند کې د ماتریالیزم لاروي دی او په اخلاقو کې د ایډیالیزم. هغه دا دوه کلميو ته په فلسفی مانا نه بلکې په عاميانه مانا ګورې. ماتریالیزم يعنې د مادي او معشيتی اړتياوو د راضی کولو انديشه، مزو او چړچړو ته د توجه درلودلو انديښه. ايډياليزم يعنې ايده او په سر کې د سوچ پالل که څه هم دغه ايده د تخيلاتو په عالم کې وې. شريعتی په یو ځای کې دغه تعریف له ماتریالیزم څخه په لاس ورکوي:

«ماتريالیـــزم، نړۍ د يو جوړ شــوی ســازمان د بنې په مانــا ده چې د مادي

عناصرو په بنسټ جوړ شوی، حرکت، بدلون او عمل یې ناخود آګاه، بې مانا او بې موخې سرته رسیږي.»

زه د نـړۍ دموخـې درلودلو یا نه درلودلو په اړه وروسـته خبري کوم. خو له دې عبارت څخه په ډاګه معلومیږي چې د ماتریالیزم دغه تعریف د ۱۷ او ۱۸ پیړیو د یونان د ماتریالیستو متفکرینو دی. که د مادې په اړه د شریعتي تعریف ته نظر واچوو دغه مطلب په واضح ډول تر سترګو کیږي:

«ماده د ماتریالیزم په فلسفه کې یعنې هر هغه څه چې د فیزیک علم یې ماده وبولی (د طبیعت د جوړښـت د اصلي عنصر په عنوان) او فزیک په ۱۹ پیړۍ کـې اتم ته ماده وایي (پداسـې حال کې چې د نن ورځې فیزیک ماده سـپړلې اوس فزیـک نـه یواځې اتم حتی انرژی هم د نـړۍ د لومړني عنصر په توګه نه پیژنـي، بلکـې دا دواړه د یو (نه پوهیږم څـه؟) جلوې په بڼه پیژني چې علم په وړاندی سـر نه ټیټوی او درناوی یې نکوي)!»(«ډیالکټیک و تضاد»، د ۴۲ مخ لاندینۍ یاد داشت)

په دې اسـاس ماتریالیزم یعنې د اتم په اصالت باور، یعنې په لرغوني یونان کې دموکریت ته مخ اړول، ډاکټر شـریعتي پـه خپلو اثارو کې کله چې فرصت تر لاسـه کوي په مارکسـیزم برید کوي. په خواشینۍ سره د مارکسیزم په هکله د ماتریالیزم په مفهوم نه پوهیږي. آی کاش چې شـریعتی په دې تعریف ټینګ ولاړ وای. خو که چېرې د پورتنیو عبارتونو له مخې د ماتریالیزم تعریف څخه تیر شـو، په هر ځای کې ماتریالیزم د «بې روحه کالبوت (لاش)»، «اقتصادي ګټو او مادې پالنې پورې تړل شـوی»، «انساني ارزښتونو او اخلاقي فضایلو ته اهمیت نه ورکولو» په مانا راغلی دی:

«... یـو روڼ آندی لاش ندی چې ووایی: دنیا هیڅ حسـاب نلري، هیڅ تر

هیـڅ دی، نه خدای شـته نه سـبا ورځ... مزو چړچو او تر هـر څه غوره ژوند کولو ته پناه یوسـه، هر کار چې د زړه غواړی ویې کړه... دا ډول بلنه نکوي دا ماتریالیزم دی. که دا ډول بلنه وکړی ماتریالیزم او جبر سـره تناسب لري. لکه تـر مخه ماتریالیزم همیشـه د «لابن‌توب»زیربنا وه...»(«مذهب، تکامل، نړی لید»، نشر پیام و خون، ۱۰-۹ مخ)

«ته چې نړی کې په ماتریالیزم تکیه‌کوي زما په شان او له ما ځینی بهتره په ژوند او اخلاقو کې په انسـاني ارزښـتونو تکیه‌کوي...! او بیا ما ته بلنه راکوي چـې... خپـل مادي ژوند، مادي وجـود، اقتصادي ګټې ټول د یـو ارمان لپاره قرباني کړم چې هغه ارمان زبیښـاک سـره مبارزه او د ربیښـاک نفې کول دی هغـه هم د دوه درې راتلونکي نسـلونو لپاره، کله چـې زه نه یم او زما عمل نه زمـا مـادي وجود ته او نه زما اقتصادي ګټو ته راګرځی! کله چې په عالم کې د مادي په اصالت اعتراف وکړم په څه دلیل کولای شـم په عمل کې ظلم سـره پـه مبارزه کې خپل مادي وجود خپلې اقتصادی ګټی او خپلې غریزې خوندونه نفې کړم...؟»(هماغه ځای، ۱۱مخ)

بل ځای مارکسیسـتانو ته په خطاب کې چې ظلم، ستم سره د حق غوښتنې او انساني ارزښتونو په خاطر مبارزه کې له هر څه، حتی خپل ځان څخه تیریږی دا ډول وایی:

«تاسـو ایدیالیسـت یاسـت!؟ که چیرې مو په مزو چړچو، عیاشـي او بی بندوباری کې ژوند کولای اعتراض مي نه درلود! ځکه چې ستاسې له نړی‌لید او د ژوند فلسـفی سـره یې سمون درلود، د دي لپاره چې پوچه نړی لید او بی خدایې له بی دردی او لاابالی اخلاقو سره متناسبه ده!»(هماغه ځای، ۱۵مخ)

ګورئ چې شـریعتی په هر ځای کـې د دموکریت تعریف څخه هم وړاندې

ځي او ماترياليزم د اپيکور په ډول توصيف او تفسيروي. شريعتي په واقعيت کې په مارکسيزم د نيوکې جرئت کوي پداسې حال چې هغه مارکسيزم نه پيژني حتى د هغه له فلسفي بنسټ چې ماترياليزم دی هم د درک وس نلري. اصولاً نن ورځ په ايران کې د هغو کسانو له خوا په مارکسيزم نيوکې کيږي چې هغوی ته پردي دی او نه يې پيژني. يو يې د ارسطو د منطق پر بنياد د مارکس د اضافي ارزښت تئوری ردوي، او بل يې په دې باور دی چې مارکس په پيل کې «معيشتی چاری» (دغې اصطلاح ته په غور پام وکړې چې پرته له کور، کالی، ډوډۍ نور څه ندي) د تکامل لامل بولی او د کار په پای کې هغه څخه وړاندی ځی او د هغه اساسي نقش د هګل په شان د افکارو زيږنده وګڼله او بالاخره شريعتي هم د مارکسيزم فلسفی بنسټ، ماترياليزم ډيالکټيک ټکوې، پرته له دی چې ماترياليزم او ډيالکټيک ځينی صحيح درک ولري. اصولاً کله چې د تعقل ځای تعبد ونيسی په هغه کې فکري تحجر ناشوني امر دي.

د شريعتي په وړاندی نه د ماترياليزم تعريف هغه شان چې مارکسيزم يی کوي صحيح ګڼې او نه د مادې تعريف. کله هغه شيانو ته چې موږ ورسره سروکار لرو توجه وکړو ګورو چې دغه څيزونه يا «مادي» دي لکه (شيان، پديدې او د طبيعت چارې) يا «فکري» او «معنوي» دي چې يواځې د انسان په ذهن کې ځای لري. په خارج کې پرته له «مادي» او «فکري» څيزونو نور هيڅ شی په نړۍ کې وجود نلري. خبره د دي په سر ده چې د «مادې» او «فکر» تر منځ کوم يو اصالت لري، کوم يو تر بل مقدم دی، کوم يو د بل زيږنده ده. ماترياليزم «مادې» ته اصالت ورکوي «فکر» او «معنويات» د «مادې» محصول او زيږنده پيژني، په ايډياليزم کې اصالت او تقدم «فکر» او «ايدي» سره دی چې د نړۍ ټوله هستي پيدا کوي.

په دې ډول ماترياليزم يوه فلسفي مقوله او نړۍ ليد ده نه د اخلاقو پورې تړلې مقوله. ماترياليزم د «تنبلي»، د «عيش و نوش» او د انساني ارزښتونو نفې کوونکې او فکرې بنسټ ندی، بلکې يوه سمبال شوی نړۍ‌ليد ده او نړۍ هغه شان وينې چې ده. په ورته وخت کې ماترياليزم په دې باور دی چې نړۍ د پيژندنې وړ ده او په هغې کې داسې سر يا اسرار نشته چې ونه پيژندل شي. د بشريت د زرګونو کلونو لاسته راوړنې د دی حکم تصديق کوونکې دی. هيڅ دليل نشته چې انسان د نړۍ پيژندنې په کار کې ناهيلی او بدبينی شي، د دې ادعا لپاره هيڅ دليل نشته چې انسان د اشياوو او پديدو په حقيقت پوهيدلی نشی يا د شريعتی په وينا طبيعت يوه برخه «اسرار» به د تل لپاره د انسان په مخ ناڅرګند پاتی وي.

څرګنده ده چې شريعتی ماترياليزم، په ځانګړی توګه مارکسيست ماترياليزم څخه پوره درک نلري او دا د دي مخنيوی نکوي چې هغه د په ماترياليزم ونه دانګې او د هغه بنسټ د «لش او تنبل» معرفی نکړی او بيا حيران پاتی دي چې دا ډول «تنبلان» څرنګه له ستم سره په مبارزه کې او محرومانو سره په غمشريکې کې تر هغه او د هغه هم مسلکانو څخه په مبارزه کې مخکښ دي او حتی په خپله خوښه پدي مبارزه کې خپل ځان څخه تيريږی.

خبره يواځې د غلط درک او د ماترياليزم د مقولې په سر نده. مارکسيست ماترياليزم په دې باور دی چې نړۍ پرته له متحرکې او متغيرې مادې بل څه نده چې شعور، اراده، انديشه، تئورې او... د همدی مادی زيږنده ده. خو ماده څه شی دی؟ آيا له مادی څخه د فلسفي مقولي منظور اتم دی؟ په مارکسيست ماترياليزم کې د مادي فلسفې مقوله د خارجي واقعيت ښکارندوينه ده. هغه واقعيت چې د انسان ذهن او شعور څخه تر شا او د انسان له ذهن او شعور

څخه مستقل وجود لري هغه واقعیت چې د حواسو په واسطه د انسان په مغز کې نقش پیدا کوي.

دغه خارجي واقعیت د خپل وجود درلودلو لپاره انسان ته اړتیا نلري. ځکه چې شــته نړۍ مخکې له دي چې انســان نړۍ ته راشــی شــتون درلود. په دې اســاس اتــم په هغه انــدازه د «مادې» د مقولــې په دایرې کې ځای نیســی لکه «مقناطیســی میدان» یا رنــګ او بوی یا تولنه، سوســیالیزم، پانګواله، انقلاب او... برســیره پــر دې د مادي فلســفې مقولــه په هیڅ ډول د هغې جوړښــت، ځانګړنې، بنې، بدلون او تکامل ســره کوم تړاو نلري. د مادی جوړښــت په اړه کېدای شــی د انســان شناخت بدلون سره مخامخ او نور هم ژور شي. لکه چې نن ورځ اتم څخه زموږ شناخت هماغه د ۱۸ او ۱۹ پیړیو شناخت ندی. هغه اتم چې پرون نه تجزیه کیدونکی ګڼل کېده، نن هغه په ډېریو زرو ویشــل کیږي خو هغه ټول ذهن څخه بیرون او مستقل وجود لري. له دي کبله نه بنایې عیني واقعیت چې د انسان تر شا او له هغه څخه مستقل وجود لري، دې مسئلې سره چې د دغه واقعیت جوړښت څه ډول دی یو شان حساب کړو.

د مــادي یا مــادې مقوله یو له عام ترینو مقولاتو ځینــی ده چې نه یوازې د مــادې یو ځانګــړي ډول د ټاکلو فیزیکې او کېمیایی صفــات په پام کې لري، بلکې ټول شیان په خوا کې نیسی له همدی کبله جامع ده. په ورته وخت کې هر هغه څه چې «فکري» او معنوي دي د هغوی حســاب له دې څخه جلا دی. د یادولو وړ ده د «مادی» او «ایده‌ای» شیانو وجود په دې مانا نده چې مارکسیزم د هستي نړۍ کې په «ثنویت» باورمند دی. یعنې په دوه نړیو «ایده» او «ماده» چــې یــو بل ځینی خپلــواک دي او په خپلواکه توګه یو بــل ځینی تکامل کوي. ټول «فکري» او «ایده ای» شــیان د انســان په مغز کې د مادی دنیا د واقعیت

انعکاس دی. دغه انعکاس د «مادي» وجود له موجوديت پرته امکان نلري، له مادي دنيا پرته نشــو کولای «فکري» دنيا څخه خبری منځ ته راشی. په همدی بنســـت ماترياليزم يوائځې په يو جوهر، يو وجود، د مادې په وجود او په نتيجه کې د نړۍ په يووالی او وحدت (Monisme) باورمند دی. د مارکسيزم لپاره د هستي نړۍ پرته له متحرکې او متغيرې مادې بل څه ندی او دا هومره له منل شـــوو ټکو څخه ده چې هر څوک يی د خپلو حســـي اعضاوو په واســـطه حس کوي.

په مارکسيزم نيوکه کوي چې ماده مطلقه ګڼی په نړۍ کې پداسې مادې عقيده لري چې بدلون، حرکت او تضاد... څخه برخمنه نده. داسې شئ ده چې په هغه کې دايمی بدلون او تکامل وجود نلري. هوکې مارکســـيزم په دې باور دی چې ماده مطلقه ده. خو مطلق په څه معنی؟ مطلق يعنې له هر څيز څخه خپلواک، مطلق يعنې هغه شئ چې هيڅ حد او پوله ورله نه په زمان او نه په مکان متصور دی، مطلق يعنې شـــئ چې پنځول (آفريده) شوی ندی او هيڅکله پای نه مني. په دې مانا ماده يو مطلق وجود دی او د خپل موجوديت لپاره بل وجود ته اړتيا نلري، په زمان او مکان کې ورله پيل او پای نشته.

خو د مارکسيســـتانو په وړاندی ماده هغه مطلقه جوهر نده چې ايدياليســـتی فلسفه ور څخه تومنه اخلی، متافيزيکې جوهر ندی چې د نړۍ هستي تر شا يې په لټون بوخت شـــی. ماده خپل موجوديت د شـــيانو او پدېدو په کثرت او تنوع کې او په بی پايه کېفي توپيرونو او تکاملی شـــکلونو کې په ډاګه کوي. البته له هغه ځايه چې د مادی مقوله په خپله تفکر او تجريد څخه را پيدا شـــويده نشـــو کولای هغه په ګوته کړو. هغه کســـان چې غواړی هغوی ته ماده وښـــودل شـــي دا هغه کســـان دي چې ماده د شـــيانو او پدېدو د تکثر او تنوع ورهاخوا (وراء)

لټوي. د مـادي مقوله د تفکر او تجرید د محصول په بڼه لکه د نورو فلسـفي مقولاتو په ډول په حس کې نه راځي. ماده د بیلابیلو اجسامو او پدیدو د ځانګړو او ځیرنـې له لارې انسـان د مـادي پیژندلو لپاره د فلسـفي مقولې لوري ته را کاږي.

## ډیالکټیک

شـریعتي چې مارکسیسـتي ماتریالیـزم پرېږدي او په بدل کـې خپل ځان د ډیالکټیـک لاروي بولـي، پـه دې لاره کې تر هغه ځایـه وړاندې ځي چې وایي ټـول مذهبونـه له هغې ډلې اسـلام هم د ډیالکټیک په بنسـټ آباد شـوي دي او کـه چېرې یې له ډیالکټیک څخه تېرېدنه کړې د ټیکاو او سـکون د عقیدي په لور کش شـوي دي دا د ارسـطو د منطق ګناه ده. کلیسـا خپل مذهبي افکار د ارسـطو منطق څخه سـوالي واخیسـتل او بیا کنګل شـوي فکر سره مخامخ شول، د ارسطو منطق یونان څخه د اسلام نړۍ ته راغی او اسلام یې هم ګاږه (متحجر) او کنګل کړ.

«کـه د ارسـطو یې منطـق په ځای چې زموږ په حوزه کې د اسـلامي منطق پـه نوم یادیـږي د جاهلیت د منطق وچ، ذهني او قالبي منطقي بڼه ده. که موږ ډیالکټیکـې لید درلودای او اسـلام مو د حیات او حرکت پـه عنوان پیژندلای نه د کنګل شـوي قالبونو په بڼه، چې ورله حد، رسـم، جنس، فاصله، جامد او ثابـت تعریفونـه جوړ کړو او خپله په همدې قالبونو کې متحجرې ډبرې شـو» («اسـلام شناسي»، ۲۱۶ مخ د دفتر پوښ ځینې نکل شوي «ډیالکټیکو تضاد» هماغه ځای، ۱۱ مخ)

د دې خبرې قضاوت چې شـریعتي یې د ثبوت او سکون په اړه بحث کوي د اسـلام او مسـحیت په ذات کې وجود لري او که د ارسـطو منطق څخه یې

ســرچېنه اخيستل شــوی د دي ليکنی موضوع څخه بيرون ده خو هغه څه چې ويلای شو هغه دا چې شريعتي مارکسيستی ډيالکټيک څخه صحيح درک نلري او هغه څه چې د ډيالکټيک په هکله وايی دهغه د نړۍ ليد ســره ســمون نلري. مخکې تر دي چې د ډيالکټيک په اړه د شــريعتی په نظرياتو رڼا واچوم، بيځايه نده دغه پوښــتنې ته چې مارکسيســتی ډيالکټيک څه شــۍ دی؟ ځواب ووايم. ډيالکټيک څه شــۍ دی؟ ډيالکټيک د طبيعت، ټولني او تفکر د تکامل د عامو قوانينــو پوهــه ده. کله چې په ډيالکټيک کې د تکامل په اړه خبری کيږي منظور د نــوې پــه لاس د زوړ نفې کول او د زوړ په ځای د نوې کښيناســتل دي. پرته لــه دا ډول تحــول، او پرته له دی چې زوړ کيفيت نوې کيفيت ته ځای پريږدی د دومره ســترو او حيرانونکو شــيانو او پديدو تنوع د هستې نړۍ کې د درک وړ نده. د درک وړ نده چې کيمياوي عناصر څه ډول يو په بل بدليږی، له بيروحه او بی سا عناصرو او ترکيباتو څخه حيات څه ډول پيدا کيږي، د ځمکې په مخ ډول ډول حيوانات او نباتات په څه ډول منځ ته راغلي، بی شعوره ماده په څه ډول داســې ماده زيږوې چې له هغی څخه شــعور او فکر پيدا کيږي او داســې نــور. بل مهم ټکې دا چې هغه محرکه ځواک چې داســې تحول منځ ته راوړی هغه له شــيانو او پديدو څخه بهر ندی، په هغوی کې د ننه او د هغوی په ذات کــې وجود لري. په دې ډول هغه بدلون چې په مارکسيســتی ډيالکټيک کې ور ځينــی بحث کيږيی واځې کمي بدلون ندی بلکې په ځانګړی توګه کيفي بدلون دی او د دې بدلــون او تحــول محرکــه ځواک هم په خپله شــيانو او پديدو کې پــروت دی. د مادي حرکت او د دي حرکــت محرکه ځواک لکه خپله د مادې پــه شــان مطلق دی يعنې ازلی او ابــدی ده او هيڅ بل ځواک پوری تړلی ندی. مختلف علوم د دي لاسته راوړنو په حکم د شک ځای ندی پريښودي او هيره

مو نشی چې مارکسیزم په علومو متکې دی.

د جوړښتونو متنوع شکلونه، د نړۍ هستي حرکت او تکامل، یو د بل څنګ کې له پیوند پرته ځای نده نیولي، بلکې واحده ټولګه جوړوي چې په هغه کې مختلفې برخې او سیستمونه د حرکت تر اغیزې، د متقابل تاثیراو بدلون تر اغیزې لاندې په یو همګانې پیوند کې ځای لري. په دې ډول د نړۍ هستي د شیانو او پدېدو پیوند او اړیکې د نړۍ په مادي وحدت او حرکت کې د مادې د ذاتي خصوصیت په توګه (ماده پرته له حرکت څخه په هغه اندازه غیر واقعی او غیرقابل درک ده لکه حرکت پرته له مادې څخه) تجلی کوي. همګانی پیوند او اړیکې نه ښایی په دې وپیژنو چې هر حرکت او د هرشي او پدېدې بدلون د ټولو کائناتو په بدلون او حرکت نه تماميږی. که چیری داسې وای په نړۍ کې به هیڅکله نسبي ارامتیا وجود نه درلود، ټوله نړۍ به داسې بی نظمۍ او ترهورتیا پسی اخیستي وه چې انسان ته به د طبیعت دځواک مهار کول شونې نه وه.

د دی پیوند او اړیکو درک، د بشر د تاریخ په اوږدو کې انسان پرله پسی په ژوره او هر اړخیزه توګه تر لاسه کړیدی او د یوې عامې تئوري په بڼه یي مارکسیستی ډیالکتیک کې ځای نیولی.

ډیالکتیکې تکامل په دري قوانینو ډاډ مند ولاړ دي:

۱- د «ضدینو د مبارزې او وحدت» قانون چې دهغه په بنسټ د بدلون او تکامل محرکه ځواک هغه تضاد دی چې د شیانو او پدېدو د ننه ځای لري.

۲- له «کمي بدلونونو څخه کیفی بدلونونو ته اوښتون» قانون د دی پر بنسټ تکامل کمي بدلونونو پوری محدود نه پاتی کیږي. تکامل په واقعیت کې د کمیت اوکیفیت وحدت، د نږدېیدو اوځیرېدو وحدت، د تدریجې(اولوسیون) بدلون او ناڅاپې (جهشی او انقلابی) بدلون وحدت دی.

۳ - د «نفې نفې» قانون د دی قانون پر بنسټ زړه مرحله او پخوانۍ مرحله لــه منځه ځي خــو د هغی مثبتی او تکاملی خواوي په نــوې مرحله کې په ځای پاتــی کيــږي. د مادي نړۍ د تکامل راز له ســاده څخه پيچلي او کښــته څخه لوړتيا ته تلل په همدی قانون کې پټ پروت دی.

دغه دري ګونې قوانين نوری قانونمنديګانې لکه د ماهيت او ښکلتيا تر منځ، د ضرورت او تصادف تر منځ، د علت او معلول تر منځ، د شکل او محتوا تر منځ او داسې نور بشپړوي.

دا هغــه څه دي چې پــه لنډه توګه مارکسيســتی ډيالکټيــک نوميږی. ډاکټر شريعتي چې ځان د ډيالکټيک لاروې بولی حتی تر هغه ځايه وړاندی ځي چې وايی:

«اصولاً ډيالکټيک داســې منطق دی چې مذهبي او خدايی ليد سره تناسب لــري» او برعکس پــه دې باور دی چــې: «ماترياليزم او ډيالکټيک يوبل ســره همغږي ندی او نه همغږی کېدای شــی» او «ماترياليزم ډيالکټيک ســره تضاد لــري» ډاکټر شــريعتي ډيالکټيک څخه پــه خپلې پيروي کې پــه اګاهانه يا غير اګاهانه توګه مارکس او مارکســيزم څخه اغيزمن شــويده. هغه په دې باور دی چې«اقتصاد د انسان په ټولنيز ژوند کې اغيزناک عامل يا تر ټولو ستر اغيزناک عامل دی» («فلســفه انســان»، ۱۰۳ مخ، انتشارات ارشــاد) او د انساني ټولنې تاريخ د مارکســيزم اقتصادي — اجتماعي جوړښت له مخې تقسيموي چې هر جوړښت «د دائمی جنګونو په اساس» د هغه تضاد په بنسټ چې ترمخه د نته په جوړښت کې منځ ته راغلی دی.

«د ډيالکټيک په اســاس ټولنه نشــی کولای چې د کمــون په حالت کې باقی پاتی شــی، کمون خپل ضد منځ ته راولی او په دې ډول د خپلو مالونو ضد او

نقیض شریکولو پر ځای خصوصی مالکیت منځ ته راوړی، وروسته سرواژ او فیوډالیزم منځ ته راځي او فیوډالیزم چې جنس د جنس مبادلې پر اساس ولاړدی خپل ضد چې متحرکه بورژوازی ده، د لاسی صنایعو اوتوکو د راکړې ورکړې په اساس کارونه په مخ وړي منځ ته راوړی او بیا وروسته تر هغه کاپیټالیزم او کاپیټالیزم خپل مرګ یعنی پرولتاریا منځ ته راولی» سره له دي چې «سرواژ» هماغه فیوډالیزم دی او فیوډالیزم چې د طبیعی اقتصاد په بنسټ ولاړ دی داسې یو جوړښت بولي چې په هغه کې «جنس په جنس مبادله» صورت نیسی، د باور وړ خبره دا ده چې ډاکټر پنځه ګونې ټولنیز—— اقتصادی جوړښت مني اوهیره نکړوچې اقتصادي — ټولنیز مفهوم او پنځه ګونې پر له پسی جوړښتونه یواځې مارکسیزم پوری تړلي دي. حتی هغه د «مهدي حکومت» په ټولي نړۍ کې هماغه د سوسیالیزم ځای پرځای کېدل ګڼې. (ډیالکټیک او تضاد، لومړي دفتر، ۲۷ او۲۸ مخ، انتشارات ارشاد)

په بل ځای کې لیکي:

«دا چې د انسان تاریخ څخه خبری کوم، زما مطلب «هابیل» او «قابیل» دي چې هابیل د مالدارۍ دورې او د ټولنې د وګړو تر منځ د مادي سرچېنو او مالدارۍ پیداوارو د بخښنې اشتراکې دوران څرګندوونکې دی او قابیل د فردي مالکیت او انحصار پالنې دورې، د طبقاتی جنګونو د پیل، محرومیت، زبېښاک، د خلکو د ناخوالو او حاکمیت او محکومیت، د ظلم او له معنوي ارزښتنو او دین څخه د ډډه کولو د دوران څرګندوی دی. او دغه دواړه «هابیل» او «قابیل»د انسان د تاریخ پیل دی.» («فلسفهو انسان»، دریم دفتر، ۵۵مخ، انتشارات ارشاد)

د دی عبارتونو مضمون ته له پاملرنې پرته چې ګډ وډ او نا دقیق دي، په

ډاګه کوي چې ډاکټر شريعتي په سمه توګه په مارکسيزم نه پوهيږي. مارکسيزم يې مذهب سره غوټه کړيده. دغه عبارت ته پام وکړئ:

«ځرنګــه چــې اول وار طبقاتی تضاد هغوې (کمونيســتانو) مطرح کړی او دا چــې موږ له هغوی ســره مخالف يو هغوی چې طبقاتــی تضاد مطرح کړی هغــه ســره هم مخالف يو. که ووايو «بی طبقــی ټولنه»، هر چا به ويل کله چې په آخرت کې امام زمان راشــی بی طبقی ټولنه جوړوی وايې چې تاســو له هغه ځينی تر لاسه کړيده؟ آخر دغه بی طبقی ټولنه چې نن په همدی مشهد، کربلا، نجف او... د ټولو کم ارزښــته مســلمانانو او مومنانو په خوله کې جارې شوی کله چې امام زمان راشی مېږه او ليوه په يوي ويالی کې اوبه څکي، روپۍ نشته، معاملي او راکړه ورکړه په صلوات تر سره کيږي...»

ګوري هغه کمونيزم چې په هغه کې د طبقاتو هيڅ پته نه ليدل کيږي هماغه د امام زمان دوره ده، کمونيزم او اسلام دواړه په راتلونکي کې يوبل ته رسيږی!! هيڅکلــه نــه د تودي ګوند هم دغه ټکې په نظر کې لري، کله چې د مارکســيزم او اســلام تر منځ مشــترکو ټکو ته اشاره کوي. په هر صورت په دې انکار نشی کېدای چې د ډاکټر شــريعتي تر غوږو د مارکســيزم په اړه يو څه رسيدلی دي، د هغوی په رښــتينولی کې يی شــک ندی کړی او هغه يې خپلې نړۍ ليد ســره سم کړی.

لنډه دا چې ډاکټر شريعتي ظاهراً په ډيالکټيک باورمند دی او په دې آند دي چې اســلام د ډيالکټيک پر بنياد آباد شــويدي خو هغه ډيالکټيک، په ځانګړې توګه د مارکس ډيالکټيک نه درک کوي چې همدغه له مارکســيزم څخه د درک نشتوالي دي چې هغه يې دې ډول عجيبه قضاوت ته راکښلي دي:

«عجيبه ده ماترياليزم او ډيالکټيک چې د کارل مارکس ســتره معجزه ده او

په لمړي وار یې ډیالکټیک له ماتریالیزم ســره وصل کړ... یوبل سره جوړشوی ندي او نه جوړیږی». «عجیبه خو داده چې ډیالکټیک اصولاً مذهبي او خدایی لید لوری سره تناسب لري چې ماتریالیزم سره په تضاد کې لویږي.» او وروسته د دې تضــاد د څرنګوالــی په هکله څه نه وایی، یوائـې په یو ځای کې هغه ته اشــاره کوي، چې وروســته بــه د دی بحث په څنګ کې په هغــه خبرې وکړم. ډاکټــر شــریعتي په دې باور دی چې د هســتي نړۍ د بدلــون او تحول په حال کې ده، په شــرقي مذاهبو کې اصلي لیدلورې کون او فســاد دي «کون او فساد ډیالکټیکې لیدنه ده» ټول شیان د حرکت په حال کې دي، «یوائې هغه شی چې په نړۍ کې ثابت دي هغه بدلون دي».

دغــه بدلون او تحول له کوم ځایه ســرچېنه اخلې؟ «د بدلون او تحول لامل (اصلــي تکاملــی حرکت) تناقــض او تضاد دی چې د طبیعــت موتور دی. که تناقض نه وې بدلون او تکامل او تحول هم نشته.»

«دغــه تناقض په هر موجود کې شــته: نړۍ، طبیعت، حیات، تاریخ، ټولنه، افکار او احساسات دا ټول د ډیالکټیکو اضدادو د جګړې ډګر دی» («ډیالکټیک او تضاد»، ۱۵ـــــ۲۶ مخ)

دغه بیان ډیالکټیک سره بشپړ سمون لري خو بیا هم د دې افکارو د تشریح او تفســیر په څنک کې له دغه اصول څخه ســرغړونه کوي او په افکارو کې یې ټینګار نه تر سترګو کیږي، په پای کې هغه خپلې توحیدې نړۍ لید کې له یوې مخی یاد څخه باســی او نړۍ ســر تر پایه د سکون او چوپتیا لوري ته کاږي. د شریعتی ناپیکیرې په څه او په کوم ځای کې ده؟

۱ـ که څه هم ډاکټر شریعتي په دې باور دی چې «ډیالکټیک په طبیعت کې رښــتونی دی» خو په افکارو کې د طبیعت واقعی تضادونو ته پاملرنه نکوي او

تضاد یې د مفاهیمو او افکارو په میدان کې باقي پاتې کیږي. د ډاکټر شـریعتي ډیالکټیک په واقعیت کې پرته د متضادو مفاهیمو له شـمیرنې بل څه ندی لکه شــپه او ورځ، رڼـا او تیاره، خوږ او تریخ، ناروغــي او روغتیا، دنیا او آخرت، نسـبي او مطلــق، لــوړ او ژور او... (د هماغه نشـریی، ۵۰ او ۵۳ مخ ته کتنه وکـړی). آیـا ډیالکټیکي تضاد په همدې مانا دی چــې موږ د طبیعت متضادی پدیدې او هغه تضادونه چې په ســطحه کې تر ســترګو کیږي او په زغرده زموږ په ذهن کې نقش تړی، یا متضاد مفاهیم تکرار کړو؟ نه، داسې نده، ډیالکټیکي تضاد هغه محرکه ځواک دی چې د شیانو او پدېدو حرکت او بدلون او تکمل لــه هغه څخه ســرچینه اخلی. د شــپی او ورځی تضاد یا د رڼـا او تیارې تضاد هیڅ حرکت او بدلون منځ ته نه راوړي. ســربېره پر دې دغه تضادونه په بهرني عالم کې هیڅکله یوبل ســر نه یوځای کیږي، یوازې د تفکر په عالم کې کېدای شــی هغه یــو د بل په څنګ کې ځــای ورکړو. هغه تضادونه چې شــریعتی یې یــادوي، که له یو یا دوه ؤ څخه تېر شــو نور ټــول منطقي تضادونه دي چې په بهرنــي عالــم کې نه بلکې د تفکر په عالم کې وجود لري. ډاکټر شــریعتي خپل همفکران او هم ګروهه ملامتوي، چې د ارســطو د منطق په دام کې لویدلي، په خپلــه همدغه دام کې لاس او پښــې وهی او نه بریالی کیــږي چې خپل ګریوان هغه ځینی خلاص کړي. کوم تضادونه چې شــریعتی یې شــمیرې هغه ټول د ارســطو د څلورګونو تضادونو له ډلې څخه دي، تضاد په اړیکو کې لکه نیم او دوه برابره، تضاد په مخالفت کې لکه ښه او بد، تضاد په درلودلواو نه درلودلو کې لکه بینایي او نابینایي، تضاد په تصدیق او انکار کې لکه کښیناســتل او نه کښیناســتل، دغه تضادونه یو هم د «کون او فســاد په لید لوري» کې نه راځي، «د طبیعــت موتور او د بدلون او تحول لاملونه» نشــی کېــدای یعنې د طبیعت

ډیالکټیک سـره سـروکار نلري. برعکس ډیالکټیکي تضاد هغه تضاد دی چې دواړه خـواوې یـې د شـیانو او پدېدو په داخل کې یو د بـل په څنګ کې ځای لـري، د یـو وجود بل پوری تړلي دی او په عیـن وخت کې یوبل نفې کوي، تر دې مهمه دا چې د تضاد دواړه غاړې همیشـه یو بل سـره په مبارزه او جګړې بوخـت دي، همدغـه مبارزه او جګـړه ده چې د طبیعت او ټولنـې د بدلون او تکامل محرکه ځواک جوړوي.

البته په ټولنه کې تضاد چې له مارکسـیزم څخه یې سـوالي اخیسـتی او هغه هـم د طبقاتي تضاد په بڼه، طبقاتي تضـاد دی خو لکه چې لیدل کیږي له هغه ځینی هم کوم روښانه لید نلري. ډاکټر شریعتي هغه متضاد مفاهیم چې یادونه یې کوي یو ځانګړې درک لري:

«...د دي لپـاره چې په حقیقت پوه شـو بایـد تر مخه د هغه ضد ولرو. کله چـې پـه مړینه پوهیږو بایـد تر مخه د مړینـې حقیقت ولـرو، د دي لپاره چې وپوهیږو په عالم کې ټول شیان نسبی دي باید د هغه ضد یعنې د مطلق مفهوم ولرو. په دې توګه د مطلق مفهوم چې له طبیعت، له انسانې اړیکو او له انسانې تجربي تر لاسـه شوی ندی کله چې ټول شیان نسبي او مرګوني دي، نو له کوم ځایه راغلي؟...»، «پرته له دې چې انسان د خپل فطرت د ننه کې دغه مفاهیم ولـري او د همـدی دلیل له مخي کولای شـي چې په طبیعت کې نسـبي والی، مړینه او همدا ډول د ټولو شـیانو نسبي پستي وپیژنو او حس یې کړو»(هماغه ځای، ۵۲مخ)

پـه دې توګه د ډاکټر شـریعتي په آند لمړی مطلـق مفاهیم وجود لري او«د انسان د فطرت دننه» هم وجود لري په هغه وخت کې انسان کولای شی دهغوی په درلودلو سره نسبی مفاهیم وپیژني.

کنه موږ هره ورځ د انسـانانو او حیواناتو او نباتاتو د پیدا کېدو او مړه کېدو شـاهدان نـه یو، باید ترمخـه د بې مرګي ولرو تر څو د ژوندیو شـیانو په مرګ وپوهیږو، کنه انسـان نه ویني چې د دماوند څوکه د اورسـت تر څوکې ټیټه ده، باید تر مخه د ارتفاع مطلق ولري. کنه انسـان نه ویني چې ښـکلا او بدرنګې، سپیتانه او لوړ مقام نسبې دې او باید مطلق د خپل فطرت له کومې او تل څخه راوباسی تر څو په نسبې والی وپوهیږی، مطلق همیشه والی دی چې انسان ته د مړینې مفهوم ورکوي، نه د خارجي نړۍ تجربي! واکمني او پوهه مطلق دي چې انسان د نسبې واکمنۍ او پوهاوۍ مفهوم ته رسوي نه له خارجي واقعیاتو سره په ټکر کې! د دې لپاره چې د ډاکټر شریعتي فکر تصحیح شی آیا د یادولو وړ نده چې باید د سر په ځای په پښو ودرول شي؟ آیا پرته له دې څخه ده چې انسان د نسبې او موقتی مفاهیمو درک له بهرنې عالم ځینی تر لاسه کوي او د هغه له مخی په مطلق او تل پاتې مفاهیمو پوهاوی تر لاسـه کوي نه بالعکس؟ ماده، حرکت، تضاد او.... ټول مطلق مفاهیم دي او د دې مطلقونو درک کول د انساني ټولنې د ټولو پړاونو د پراتیک او تجرید او تعمیم پایله ده.

۲- هغه څه چې وویل شـول ښـکاره ده چې ډیالکټیـک، د حرکت، بدلون او تکامـل محرکـه ځواک د شـیانو او پدېدو د ننه کې د تضـاد د دواړ غاړو تر منـځ مبـارزه پیژني. په خپله شـریعتی په دې آند دی چـې: «د بدلون او تحول عامـل (د تکامـل اصلي حرکت) تناقـض او تضاد دی چـې د طبیعت موتور شـمیرل کیږي. که تناقض نه وي بدلون، تکامل او تحول به هم شتون ونلري» خـو په ناڅاپه توګـه د یوې لنډې توضیح په څنګ کـې د الکترونو (منفې بار) د حرکـت پېښـه او د اتم د هسـتې په چاپیر پروتونونه (مثبت بـار) په هکله دا ډول عبارتونـه زیاتوی: «خو هغه څـه چې مهم دي هغه دا چې لومړني حرکت

چا پــه لار واچوه؟»(«ډیالکټیک او تضاد»، ۲۶ مــخ). (مجاهدین خلق دغه د ډاکټر شریعتي لارویان هم کله کله د خپلو بیانونو په څنګ کې د اوریدونکو او لوســتونکو د ذهنیتونو ګډوډ کولو لپــاره له دغه «تک مضراب» څخه خپرونې کوي). ډیالکټیک تاســو ته په ښــکاره وایی چې حرکت او بدلون د شــیانو او پدېــدو پــه خپل ذات کې دي، د شــیانو او پدېدو د ننه کــې د ضدینو د مبارزی نتیجه ده. د شــیانو حرکت «خودرویه حرکت دي»، «حرکت په خپل ځان بسیا دي» پــه دې مانــا چې شــیان او په دېدي د خپل حرکــت او تکامل لپاره بهرني ځــواک ته اړتیــا نلري. له ډیالکټیکــې تضاد څخه دغه انګېرنــه د مارکس مال نده، د ایده آلیست هګل مال دي. هګل وایی: تضاد د ټولو خودروبه حرکتونو اصل او د هر ډول حرکت او حیات بنســټ دی. کله چې یو شــی په خپل ذات کې د تضاد لرونکې وي هغه شــی حرکت کوي خوځښت او فعالیت لري. خو شریعتی چې خپله ظاهراً په دې اصل باورمند دی، محرک د هستې نړۍ څخه بهر، شــیانو او پدېدو څخه بهر په ګوته کوي او په دې ډول د خپلو ډیالکټیکې ضد نظریاتو په تنګی دایری کې بند پاتی کیږي. ډاکټر شــریعتي له یوې خوا په هغه پنځونکې(آفریننده) باور لري چې د نړۍ هستي په ماوراء کې د حرکت او تکامل پاڅوونکې دی او له بلي خوا د هغه حقیقت له مخی چې په مارکسیستی ډیالکټیک کې پروت دي او د حرکت منبع او سرچینه چې خپله شیانو او پدېدو کــې وجود لري انکار نشــی کولای، همــدا وجه ده زیار باســی چې ډیالکټیک خپلې نړۍ لید ســره پیوند کړی چې دا یو عبث کوښښ دی ځکه چې دغه دوه پیوندونه مېوه نه نیســی. له همدی ځایه ده چې شــریعتی له تناقض ګویی سره مخامــخ کیږي، هم د حرکت ســرچینه په داخلی تضاد کــې ویني او هم هغه د هســتي نړۍ څخه بهر ګڼی. ښــایی وویل شی چې لومړني حرکت له بهر څخه

ده خو وروســته تر هغه ټول شــيان د ډيالکټيک د قوانينو په شاووخوا څرخي، خو دوه حالاتو څخه بهر ندی، يا حرکت داخلی انګيزه لري چې بهرنې ځواک تــه اړتيــا نلري يــا بهرنې ځواک د حرکــت منبع ده چې پــه دې صورت کې په ډيالکټيک باور کول له انديښــنې پرته بل څه ندي. دغه تضاد يواځې د حرکت د ابدې او ازلې شــيانو په بڼه چې هيڅکله د چا په لاس پاځول شــوی ندی او هيڅکله پای نه مومي د حل وړ کېدای شــی او د مارکسيزم حقيقت هم په دې ځای کې ده.

۳ــــ د مارکــس ماترياليســتی ډيالکټيک د نويو علومو د لاســته راوړنو پر بنسټ منځ ته راغلی چې د هغه څلورګونې ستنې عبارت دي له:

۱- د مادي او انرژی بدلون، چې د نړۍ هستي د وحدت ښکارندويئ کوي،

۲- د حجرې کشف چې د ژوندي شيانو د جوړښت يووالي په ګوته کوي،

۳- د ډاروين تئورۍ چې د ژوندي موجوداتو د انواعو يووالي په ګوته کوي،

۴- د ټولنيز اقتصاد د جوړښت او د هغه د پرله پسی قانونمندی کشف چې د انسانې ټولنې د تکامل ښکارندوی دی.

د ډارويــن تئــورۍ د «انواعو د ثبات» نظريئ ته چې لينه د هغی سرســخت ملاتــړي وو ســخت ملاماتوونکې ګزار ورکړ او پــه ډاګه يی کړه چې د ژوندې موجوداتــو انــواع هغه ډول چې لينه ګومان کاوه، لــه پيل څخه يی د نن ورځی شکل او شمايل نه درلود. د اوسنيو حيواناتو او نباتاتو انواع د پخوانيو ژووو د انواعو د بدلون او تکامل پايله ده چې يو شــمير يی اوس هم ژوند کوي. خپله انســان هم د (بيولوژيک له پلوه) له دې قانون څخه جلا ندي. ډاکټر شــريعتي ظاهــراً ډارويــن مني او ظاهراً طبقاتې تضاد د ټولنــې د تکامل د موتور په توګه مني. هغه خپلو لارويانو څخه د نيوکې په توګه وايی:

«دا چې په لومړي ځل د ډاروین فرضیه بې دینانو په اسلامي هیوادونو او اسلامي نړۍ کې مطرح کوله، کله چې موږ په بې دینۍ حمله کوو په همدغه ډول په ډاروینیزم هم حمله کوو او دا د هغوی په ګټه ده ځکه له دې څخه داسې معلومیږی چې ټول ارزښتونه او پرمختګونه د هغوی په انحصار کې دي. هر کله چې په لومړي ځل هغوی طبقاتي تضاد مطرح کړی دی کله چې موږ د هغوی مخالف یو د هغوی له خوا مطرح شوی طبقاتي تضاد سره هم مخالف یو»(«مذهب، تکامل، نړۍ لید»، نشر پیام و خون، ۳۰مخ)

ډاکټر شریعتي د خپل کتاب زیاتې پاڼې دغه نظر ته ځانګړي کړي چې خدای انسان له بویناکې ختې او د خدای له روح څخه پیدا کړی دي او د انسان تضاد چې د هغه په تکامل پای ته رسیږی هم له همدې کبله دي.

«خدای انسان له لجن -- حماء مسنون ـ بویناکې ختې د سیلابونو وچو شوو رسوبي چقلو او خپل روح څخه پیدا کړی... په دې ډول د آدم د جوړښت فرمول روښانه دي: لجن (بدبویه خټه) او د خدای روح» («فلسفه و انسان»، ۴۱ او ۴۲مخ»

«د هغه (انسان) نیمایی د خدای روح «تز» دي چې هغه د لوړوالي، تکامل او مطلق لورې ته د خدای غوره خدایي لورې ته الوتنه ورکوي، حرکت او د لوړوالي په لور یې کاږی. خو له لومړني (خدایي روح) سره متضاد ځواکمن عامل (لجن) هغه د رسوب، جمود، ودریدلو، مرګ، ټیټوالي، سپیتانه او د ګناه لورې ته کاږی «آنتي تز» دي، دا هغه عامل دي چې تز نفې کوي او زیار باسي تر څو انسان د ضد «تز» لورې راکاږې. د دغه دوه ضدینو یوځای کیدو څخه مبارزه او حرکت منځ ته راځي چې د تکامل په پایله کې د دغو دواړو یوځای کیدل «سنتز» ته رسیږی.(«ډیالکټیک و تضاد»، انتشارات ارشاد، ۶۶

- ۶۷مخ)

روښـانه ده چې د انسـان د پيدايښت، د منع شـوی ميوی او له جنت څخه د شـړلو کېسـه که څه هم هغـه د «اصلي معنا او رمز تر عنـوان لاندې» په پام کې ونيسـو بيا هم د ژونديو موجوداتو تئوری سـره چې انسـان هم په ځان کې رانغاړي(البته د بيولوژيک له پلوه) يوه شريکه وجه نلري.

ډاکټر شريعتي د دغه ټولو مسائلو په تعبيراو تفسير کې خپل ځانګړی ځای لري کوم چې د الهی حکمونو سره سم تر هغه ځايه چې تر اوسه بيان او تفسير شـويدي يوشان ندي. اصولاً اسلام د تشـدت اواختلاف د مخنيوی لپاره پرله پسـی سپارښـتنه کوي: په هغه څه چې الفاظ دلالت لري په هغو د بسـنه وشې او د معلولاتو له بريد څخه د وړاندی لاړ نشـې. خو ځينی کسـان غواړي چې الفاظ د علومو لاسـته راوړنو سـره وتـړی او دغه اصول په پام کې نه سـاتي، ډاکټر شـريعتي هم په دې هکله خپل نظر او تفسـير لري چې د هغوی له مخی «مترقی اسـلام» له هغه اسلام څخه چې د «متحجرو زړونو په بڼه» راغلی سره جلا کوي. همدغه تضاد دی چې د انسان په «ذات» کې پروت دی او د انسان د تکامـل عامل ګرځي. خو څرنګه چې ليـدل کيږي دغه تضاد هم د يو بهرنې ځواک له خوا د انسان په ذات کې ور داخل شويدي. د حرکت او تکامل عامل که څه هم د انسان د ننه داخلی تضاد (روحي او رواني) دی خو په واقعيت کې خپله له انسان څخه منشاء نه اخلي له بهر ځينی په انسان کې ټوکول کيږي کوم چې ډيالکټيک سـره په تضاد لويږی. سربيره پر دي د لجن او د خدای روح تر منـځ تضاد بيا هـم په معنوياتو او اخلاقياتو کې تضـاد دی، ټيټواله، بدرنګی، معنوي او اخلاقي سپيتانه او د اخلاقی ښيګڼو غوره والی تر منځ تضادټول هغه شيان دي چې د انساني ذات اخلاقي تکامل او لوړوالی په ګوته کوي.

د پام وړ ټکی دا دی، ټول کسان تمه لري دغه تضاد چې د انسان په ذات کې پروت دی د تلې کاسه د «خدای روح» په ګټه وڅرخیږی او انسان د له همدغی لمړۍ نیتی څخه د اوچت «ایده آل او تکاملي لورې» ته سوق کړی. خو داسې ندهاو شریعتی تاسی له دي ډول نتیجی آخیستنې څخه ګوښه ساتي:

«د بشـر تاریخ سـره له ټولو پیاوړتیاؤ او مرستندویه زمینو بیا هم د قهقرا په لور تللی، متمدنه انسانیت د فساد په خوا روان دی او جنایت کوي»(«توحیدي نړۍلید»، ۶۶مخ)

«د نن ورځی انسان د وریښمو چینجی دی په بېړي سره هغه څه چې جوړوې خپـل ځان په کې بندي کوي، خواشـیني او زینـدۍ کول (په دار ځړول) د هغه حتمي برخه لیک دي»(«توحیدي نړۍلید»، ۷۱مخ) (تکېه د --ف)

ولی د بشر د تاریخ په اوږدو کې د لجن او د خدای روح په جګړه کې انسان همیشـه د انحطاط او سـپیتانه په لور راکښول کیږي؟ د دې لپاره داسې عوامل تـر لاسـه کیږي چې د تضـاد د دواړه غاړو جګړه د لجـن د بریالیتوب په خوا سرته رسیږي.

«زه باور لرم چې دغه ټول انحرافات، ګناهونه، فسـادونه، جنایتونه او دغه ټول رزالتونه، ټیټوالي، پرېوتل، وروسـته پاتیوالي لنډه دا چې ټول هغه چې بد، ناوړه او شـرموونکي دي د دري عاملونو زیږنده ده:۱- ناپوهی، ۲- ویره، ۳- ګټه»(«توحیدي نړۍلید»، ۶۰مخ)

په پایله کې بشـریت په درې ډلو ویشـل شویدی:«لومړۍ هغه ډله ده چې په تېـرۍ او جنایـت لاس پوري کوي(د تمې لپاره)، دویم لږککی چې له ویرۍ یا تمـې په خاطر د دغې ډلی د لاس آله او اسـباب ګرځـي، دریم اکثریت چې تر تیرۍ لاندې واقع کیږي او دغه درې واړه ډلې د انسـانیت له نظره لویدلی دي

چې انساني او معنوی لوړو پړاونو ته د کمال او ارتقاء له وړتیا څخه بې برخې دي»(هم هغه ځای، ۶۶مخ)

په دې ډول د انسانانو په ټولنه کې د ګوتو په شمیر انسانانو څخه پرته نور ټول د کمال او لوړوالی وړتیا نلري. یواځې په «توحید» باندی ایمان درلودل انسان د هر ډول پورته یاد شوو عواملو له زیان څخه ساتي:

«توحید د دې ډول ټولنیزو ناروغیو د ظهور اجازه نه ورکوي.... په ټول عالم کې تر دوه قطبونو زیات څه نشته، خدای او پرته له هغه ټولې هیلې، ویرې، ګټې، قدرتونه او ارادې په هغه قطب کې ځای لري او پدي بلې خواکې «بل هیڅ نشته». اسلام په هره شېپه او ورځ کې انسان لږ تر لږه پنځه ځله اړ باسی چې د واکمن او د مطلقې ارادې خاوند او د کائناتو د پنځوونکي په وړاندې ودریږي او د زړه له تله ووایی:

«یواځې او یواځې ستا نمانځنه کوم، یواځې او یواځې ستا مریه اوغلام یم، یواځې او یواځې له تا څخه مرسته غواړم.»

انسان یواځې د یو خدای په وړاندې په ګونډو پریوځې او یواځې د هغه لمانځنه او ستاینه کوي، پرته له هغه بل چا څخه مرسته نه غواړي او پرته له هغه او د هغه له قهر څخه ویره نلري.

نتیجه دا شوه چې د شرمناکو عواملو په وړاندی باید «واقعی موحد» اوسو، باید لږترلږه د ورځي لس ځله د پنځوونکي درګاه ته مخ کړو. په بل عبارت هغه جګړه چې د لجن او د خدای روح تر منځ د انسان په تن کې د ننهاور لګوي یواځې موحد انسان کولای شي د لوړوالي، معنوي او اخلاقي تکامل په لوري ګام پورته کړي.

په دې ځای کې معلومه نده چې د انسان په وجود کې پروت د پروت تضاد

عمل څه نقش لوبوي. کله چې د زړه له اخلاصه د دیني فرایضو سـرته رسـول د دې لپاره چې انســان د «خدایی خلق وخوی» په لور والوزي کافي وي نو له ځانـه په خپله خوښـه د جـوړ کړي تضاد اختراع د څه لپاره ده؟ آیا داســې نده چې ډاکټر شـریعتي د مارکسـیزم او مارکسیستانو تر اغیزې لاندې غوښتي چې ډیالکتیـک له مذهب سـره یوځای کړي او هغه ته مترقی بڼـه ورکړي تر څو د ځوانو زده کوونکو او محصلینو د پام اړولو لپاره چې مارکسیزم ته ډېره لیوالتیا لري د جذب وسیله وګرځوی؟

ډاکټر شـریعتي له موحد انسان څخه خبرې کوي. موحد انسان څوک دی؟ ظاهراً داسـې تر سـترګو کیږي چې موحد انســان هغه کس دی چې لږترلږه د ورځی لس ځله د پروردکار په وړاندی په ګونډو کیږي، له هغه مرســته غواړی او پرتــه لــه هغه چا څخه نه ویریږي. خو ډاکټر شـریعتي هغه روحانیونو څخه خبری کوي چې په «فلســفه او نړلید کې ایدآلیســت دي په عمل او اخلاقو کې ماتریالیســت» او دا پــدي مانا ده هغه روحانیون چې خپلــه په توحید پوهیږی او خدای پوه، پیاوړي، لیدونکې او... پیژني او خپل سـر د پروردګار په درشل داسې سولوي چې د مهر ځای یی په تندي نقش جوړوي، هوکې دغه روحانیون هم په کږې لار له تللو څخه په امان کې ندي. آیا دغه روحانیت په توحید ایمان نلري او د پروردګار په وړاندې په کمیني او عاجزي سره نه په ګونډو کیږي دهغه ستاینه او لمانځنه نه کوي؟ کېدای شی دغه «سنتي او ارتجاعي روحانیون» چې پــه «عمل او اخلاقیاتو کې ماتریالیســت» دی په ریــا او د ایمان په نه درلودلو تورن وګڼل شــي؟ په هغه وخت کې باید ولیدل شــي چې واقعي ایمان څه شي دي او څه ډول کولای شــو هغه وپیژنو. دوه روحانیون چې مذهبي فرایض یو شان سرته رسوي، یو یی دګټې او ویري په وړاندې د ځان کمزوري نه په ډاګه

کوي او هغه بل يی د دغو عواملو په وړاندی تسـليميږي. آيا داسې ندی چې يواځې د مذهبی فرايضو سـرته رسـول نشـی کولای د انسان مقاومت د ظلم، ويـرې او ګټـې په وړانـدی بيمه کړئ؟ آيا دا هم واقعيت ندی هغه کسـان چې پـه ديني فرايضو اعتقاد نلري بيا هـم د ظلم، ويرې او ګټې په وړاندی راپورته کيږي او خپل ژوند له لاسه ورکوي؟ په يقين سره د کمونيستانو په منځ کې چې په پنځوونکي عقيده نلري، د دغه کسـانو شـمير تر روحانيونو زيات په سترګو کيـږي. لکه چې تر مخه وويل شـول شـريعتی په دې حقيقـت معترف دی. د يو خدای پالونکي موومن او يو خدای نه پالونکي کمونيسـت تر منځ چې هيڅ مشـترکه نوږی نلرې دواړه د پسـتي، خواري او زبونتيا په وړاندی ودريږی، د لمانځـه اداکولـو او د خـدای په وړاندی په ګونډو کېدو يو شـان ندي بيلا بيل ځای کې قرار لري. ډاکټر شـريعتي ډېر ښـه پوهيږی تور د سـپين په مخ ليکي چې يو مارکسيسـت تر يو روحاني په ټينګار او ميړانۍ سـره د ظلم په وړاندې د مظلوم څخه د دفاع په خاطر جګړه کوي. مارکسيسـت هغه کس دي چې په خـدای او دينـۍ فرايضو عقيده نلري، له ويـري او ګټې بې پروا دی ولو که په دغه لار کې هر څه له لاسـه ورکړي. د شـريعتی دغه حکم چې انسـان بايد له خـدای څخـه وبيريږي تر څو د خدای له بنده څخه ډار ونکړئ، بايد خدای ته هيلـه وکړي تـر څو د خدای بندګانو ته تمه ونکړئ چې دا له واقعيت سـره په غوڅه توګه تضاد کې ده. عجيبه داده چې شريعتی په خپله په دې حکم اعتقاد نلري:

«بشـريت د ډېـرو پيړيـو په اوږدو کې سـره له دی چې معتقـد ووخدای يا خدايان له هغوی ځينې په ټينګار غواړي تر څو په خپلو ناپاکو هوسونو او تيری کوونکوغوښـتنو برلاسه شـي او په نړۍ کې بی عدالتي سره وجنګيږئ او سره

لــه دې چې د خدای یا خدایانو لــه عذاب څخه ویریدل او د خدای یا خدایانو د بخښــنې څخــه ډاډمن او هیله نــاک وو، هغه اندازه مرســته او توفیق په دې لار کې تر لاســه کړی چې نن ورځ په نړۍ کې تر ســترګو کېږي! نن، پرون، هر وخت او په هر ځای کې موږ او تاریخ دواړه د خدای پرست او له خدای څخه ویریدونکي اومتدین انســان د وحشیانه جنایتونو شاهدان یو»، (تکېه د — ف)

((«توحیدی نړۍلید»، ۵۷مخ، د ارشاد خپرونې)

وینئ چې مقدمه او موخره څرنګه یوبل نفې کوي. په لومړي سر کې انسان متدین، خدای پال یا «موحد انســان» دي چــې د ګمراه کوونکو عواملو له زلل څخــه غاړي ته ګوښــه پاتې کېږي او پــه پای کې همدغه خــدای پال له خدای څخه ویریدونکې او متدین انســان په وحشیانه جنایتونو لاس پورې کوي. پرته له شک څخه هغه څه چې ډاکټر شریعتي لیدلي او لوستلي هضم کړي ندي په پای کې دلته یو څه وایی او هلته دهغه متناقض.

د کار عیــب په دې کې دي چې د شــریعتی انســان هغــه ډول چې له لیکنو څخــه یی تر لاســه کېږي یو اجتماعي انســان نــدی، فرد دی هغــه فرد چې د پروردګار له چوپړ څخه په دعاګانو ځان له مفاسدو او تېتوالي خلاصوي او د عرش په لور هوا کوي. خو واقعیت داسې ندی. انسان یو اجتماعي موجود دی چې د ټولنیزو شرایطو او اړیکو تر اغیزې لاندې ژوند کوي. انسان په واقعیت کې نه یواځې یوه طبیعي او د ژوند کولو زیستي پدېده ده، بلکې په همدې حال کې اجتماعي پدېده هم ده. داسې پدېده چې په ټول جسمي او روحي استعداد ســره هغه د خپلــو عملي او ټولنیزو فعالیتونو په لړۍ کــې په ډاکه کوي او پرله پسې تکامل ورکوي.

کله چې له انســان څخه خبرې کوو نشوکولای زیستي او اجتماعي دغه دوه

ګونې خواوې يو له بل څخه جلا کړو او دغه دوه خواووو څخه اجتماعي غاړه ټاکونکې ده. ډاکټر شريعتي اريان دی چې ولې انسان د خپل پروردکار په وړانـدې په ګونډو پريوځي او يوائې هغه څخه هيله کوي بيا هم د سپيتانه او انحطاط په لور پريوځي او سقوط کوي. د هغه دليل دادی چې شريعتی انسان لـه ټولنې او اجتماع څخه بهر په يو کوچني کنډرکې له پروردګار سره په نياز او راز کې ويني. هغه په دې خيال دی چې نه ښـايې موحد انسـان وويريږي، نه ښايې موحد انسان ناپوه او ناخبره وي چې د ښه او بد توپير ونه کړای شي. نـه ښـايې موحد د ګټې په فکر کې وي. خو پـه ټولنيز واقعيت کې موحد هغه ډول نـه راڅرګنديـږي کوم چې شـريعتی يې تمه لري. منل شـويده هرکله چې انسان د يوې ټولنيزي پدېدې او يوې ټاکونکې پدېدې په ښه ونه پيژندل شي په ناچاره دا ډول تناقضاتو او سـرخوږې سـره مخامخ کيږو. په مارکسيزم کې دا ډول تناقضاتو او سرخوږې ته ځای نشته. تر هغه ځايه چې د فرد د ننه د لجن او د خدای روح تضاد ايښـودل شـويده، هر انسان ناچاره دی چې په انفرادي ډول د نفس تذکيه وکړي او که فرضاً دغه تضاد اغيزناک ثابت شی او انساني افراد وکولای شـی په سـپيانه او رذالت بری وموميِ، آيا کولای شـی راتلونکې واقعـي نندارتون، نه خيالي نندارتون داسـې ترسـيم کړئ چـې په هغه کې ټول مسـلمانان د اعتلا او لوړوالې په لور د خپل معنوي ايده آل لاری ته مخه کړي او تر هغوی وروسته ټول راتلونکي نسلونه هم د دغه بی لارې کوونکو عواملو تـر اغيزې لاندې رانشی؟ سـربېره پر دې که چيـري د نړۍ د خلکو دريمه برخه کافر او مشـرک دی څه ډول کېدای شـی هغه سمې لارې ته هدايت کړو؟ دغه راتلونکې نندارتون بيا هم خيالي او غير واقعي ګرځي که چېرې ډاکټر شـريعتي سره يوځای په پام کې ونيسو چې بشريت د خپل ژوند د تاريخ په اوږدو کې د

قهقرا په خوا تللی، «خواشــینې او خوابدې د هغه برخه لیک دی» آیا بیا هم نه ښــایی د ډاکټر شــریعتي حکم چې سرچپه دی په پښو ودرول شي او هغه ډول چې مارکسیستان عقیده لري د پرله پسې قهرمانه او بی امانه مبارزې له مخې د ســپیتانه او رزالت د عواملو پر ضد چې ټول اجتماعي او ټولنیز دیرا پورته شــو او د دې مبارزې په لړ کې انسانان لوړو انساني ارمانونو او هیلو ته ورسوو؟

۴- تــر ټولوحیرانوونکــې ده ډاکټر شــریعتي چې ډیالکټیک منــي او هغه د اســلام بنســټ بولي د توحیدي نړۍلید لاروي دي، هغه نړۍلید چې تضاد نه مني. غواړو وپوهیږو چې توحیدي نړۍلید څه شی دی؟

«توحیدي نړۍلید یعنې ټول وجود د یو کل د یو ژوندي اندام، شاعر، د یوې ارادې، عقــل، احســاس او هدف.... درلودونکي په توګــه پیژندل. په دې توګه «وجــود» یــو ژوندی موجود دی له یو واحد همغږي نظام ســره چې د حیات، ارادې، احساس او ارمان درلودونکې دی»(«توحیدي نړۍلید»، ۲۴مخ)

«په توحید کې کثرت او تعد د او تضاد نه په وجود کې، نه په تاریخ کې، نه پــه ټولنه او حتی نه په خپله انســان کې د منلــو وړ نده»(هم هغه ځای، ۲۷مخ، تکیه د — ف)

«پــه توحیدي نړۍلید کې ټــول تناقضات، ټول تضادونه لــو د وجود ټولې پولې له منځه ځي» (هم هغه ځای۳۶مخ)

ډاکټر شریعتي له یوې خوا نړۍ د «کون او فساد» په حال کې یعنې د دائمي حرکت، بدلون او تکامل په حال کې ګوري، تضاد او تناقض د طبیعت د تحول او بدلون موتور او عامل پیژني او په صراحت سره په ډاګه کوي چې

«کــه چېــرې تناقض نه وی هلتــه بدلون، تکامل او تحول نشــته» او له بلې خــوا توحیدي نړۍلیــد د منلو وړ ګڼي چې په هغه کې د تضاد او تناقض څرک

نــه لیــدل کیږي. نــه په وجود کې، نــه په تاریخ کې، نــه په ټولنــه او حتی نه په خپله انســان کې او نه په نړۍ او هســتي کې مطلقه همغږۍ حکم چلوي. که په توحیدي نړۍلید کې تضاد د منلو وړ نده څرنګه کولای شــي ادعا وکړي چې اسلام د ډیالکټیک په بنسټ ولاړ دی په داسې حال کې چې تضاد د ډیالکټیک اصلي هسته ده؟ په توحیدي نړۍلید کې د شریعتی په وینا تضاد چې په تاریخ کې هابیل او قابیل څخه پیل شــویدی په کوم لوري روان دی؟د انســان فطري تضاد (لجن — د خدای روح) چې باید هغه پرله پسې د معنویاتو او اخلاقیاتو لوړې کچې ته ورنږدې کړي (که څه هم تر اوســه د هغه په چپه او کوږ لوري تګ شــویدی)، هغه تضاد چې د شریعتی له نظره د ډیالکټیک ښکارندوی دی پــه کوم لوری روان دي؟ که چېرې دغــه حکم «که تناقض نه وي هلته بدلون، تکامــل او تحول نشــته» صحیــح وي، دغه وخت په توحیــدي نړۍلید کې د حرکت او تکامل لپاره ځای نشــته، طبیعت، تاریخ، انســان او ټول شیان به په ســکون او چوپتیا کــې ډوب وو او بیا به له حیات او ژوند څخه هیڅ نښــي په ځای نه پاتې کېد ې. که چېرې بدلون او حرکت ژوندون دي، سکون او چوپتیا مرګ دي نو څه ډول کولای شــو له «ژوندي موجود» یا یو همغږي نظام څخه خبــرۍ وکړو؟ کېدای شــي همغږیوي خو نه په ژوندون کې بلکې په ســکون، چوپتیا او مرګ کې!

ښــایی له حرکت څخه د توحیدي نړۍلید منظور د تضاد حرکت د وحدت او توحیــد پــه لوري وی په دغه صورت کې توحیــدي نړۍلید، د حال نړۍلید نــده، بلکې د راتلونکــې نړۍلید ده، ځکه که چېرې نن ورځ د نړۍ او انســانې ټولنې د درک لپاره ډیالکټیک څخه مرســته وغواړو، بیا هغه مفهوم چې ډاکټر شــریعتي یې توحیــدي نړۍلید، ته ورکوي زموږ نړۍلید کېدای نشــي. په دې

ډول د ډیالکتیــک او توحیــدي نړۍلید یوځای کــول عبث او بې ګټې کار دي. پدې وخت کې د ډاکټر شــریعتي له نظره هغه تضاد چې د انســان په ذات کې اینښــودل شــویدي هیڅکله به پای ونه مومي ځکه چې دغه تضاد باید انسان تر مطلق ذات پورې ورســوی او تر مطلق ذات پورې رســیدل ناشوني دي. انسان کولای شــي هغه ته ورنږدې شــي خو هیڅکله به هغه ته ونرسیږی په پایله کې دغه تضاد هیڅکله نه حل کیږي. ډاکټر شریعتي په خپله دا ډول لیکي:

«انســان، دغه ډیالکتیکي پدیده د ثانوي او متناقض جوړښــت له مخی چې لــري یــی جبراً د حرکت په حال کې دی، خپله د جنګ او تضاد صحنه په خپله همــدی دی او د دغــه دوه ځواکونو په منځ کې جګړه د هغــه دائمي تکامل ته تحقق وربخښــي. دغــه حرکت لجن څخه د خدای په لــور دی، خدای چیري دی؟ تــر کــوم ځایه دی؟ په بی نهایت کې. په پایله کې انســان هیڅکله قرارګاه (تمځای) ته نرســیږي او د خدای په مینه کې نه راښــکته کیږي او «دا، تر کوم ځایــه» د انســان تکامل په ګوته کوي، تر خدای، د خــدای تر روح یعنې تر ابد پورې یعنې هیڅکله توقف نکوي!»(«ډیالکتیک او تضاد»، ۷۰ مخ)

په توحیدي نړۍلید کې ټول تضادونه له منځه ځي حتی تضاد په انسان کې، همدا ډول د انســان تضاد پرته له توقف څخه تر ابد پورې د انســان د تکامل عامــل دی. توحیدي نړۍلید تضاد نه مني، انســان هــم هیڅکله تکامل څخه نــه پاتې کیږي یعنې د انســان تضاد تر ابد پــوری تر بی نهایت پوری باقي پاتی کیــږي. څرنګه کولای شــو دغه دوه حکمونه یو بل ســره یو ځای کړو؟څرنګه کېدای شي توحیدي نړۍلید چې تضاد نه منئ او انسان په همدې نړۍلید کې له تضاد څخه نه تش کیږي؟ توحیدي نړۍلید یوه اساســي مســئله مطرح کوي چې باید هغې ته ځواب وویل شــي: آیا د هستۍ نړۍ، طبیعت، ټولنه او انسان

پرتــه له تضاد څخــه د تصور وړ ده؟ که چېرې د هســتي نړۍ تضاد هغه ډول چې ډاکټر شــريعتي او (د هغه پيرو مجاهدين) يې مطرح کوي طبقاتي تضاد، د اخلاقي ښــيګڼو او اخلاقي مفاســدو تر منځ محدود کړو په راتلونکي کې به دغه تضادونه حل شــي، ټولنيز او اخلاقي مفاســد چې خپلــه د طبقاتي ټولني معلول دي.

او طبقاتــي تضــاد هغه ورځ له ټولنې څخه خپل تغــر ټولوې چې دغه ټولنه نسکوره شي. بيا جهالت له منځ ځي او پوهه د هغي ځای نيسي، بيا څوک غلا کولو ته اړتيا نلري، د ښځو ځانپلورنې او دا ډول نورولاملونو ته ځای نه پاتې کيږي. يو په بل ستم نکوي، يو کس له بل کس څخه نه ويريږي، شخصي ګټه د ټولنې په ګټه بدليږي، ټول مفاســد چې له ســود جويې او نفع پرســتۍ څخه سرچېنه اخلي له منځه ځي او داسې نور. مارکسيستان د دغه شان ټولنې وجود واقعي شونې شميري يعنې هغه امکان چې همدا اوس يې بنسټونه د نن ورځي په پانګوالۍ ټولنۍ کې ايښــوول شويدي. مارکسيستان د همدې امکان د تحقق لپاره واقعي مبارزه کوي.

خــو آيــا د دې تضادونو په حلولو ســره تضاد د هســتي په نــړۍ (طبيعت، ټولنه، انســان) کې پای ته رســيږي؟ په غوڅه توګه کولای شــو دې پوښتنې ته منفي ځواب ورکړو. د دې حکم د توضيح لپاره په طبيعت کې د بيلګې په توګه شمسي منظومه په نظر کې نيسو چې خپله د دغو سيارو څخه ديوې سيارې په مخ ژوند کوو. د دغو ســيارو ګردش چې هره ســياره د لمر په شاؤ خوا په خپل مــدار څرخي د دوه متضادو ځواکونو د جاذبــي او دافعي نتيجه ده. له يو پلوه ســياره (مثــلاً ځمکه) د جاذبــې عمومي قانون تر اغيزي لانــدې د لمر په خوا کښــول کيــږي (د جاذبي ځواک) او له بل پلوه مرکز څخــه د فرار ځواک لمر

سره د سیارې د یوځای کېدو مخه نیسي (دافعه ځواک). په پایله کې ځمکه د لمر چاپېر په حرکت راځي. ښه ده اوس د دې تضاد تکلیف چې له علمي نظره په هغه کې هیڅ شک نشته څه کېدای شي؟ آیا کله چې طبقاتي تضاد (له هغه ټولو اجتماعي مفاسدو سره) چې ټولنې څخه راټوکیږي شمسي منظومه هم له حرکت څخه لوېږي؟ په یاد ولرو چې د علمي تخمیناتو له مخې د شمسي منظومې عمر د پنځه (۵) میلیارد کلونو شاووخوا تیریږي او هغه څه چې نن یې ویلای شو له ۷- ۸ میلیارد کلونو به نور عمر وکړي. آیا توحید به هغه وخت منځ ته راځي کله چې د لمرهیڅ ښه پاتې نه وي او دهغې له مخې انسان او حیات د ځمکې پر مخ وجود ونلري؟ که داسې نده، هغه وخت د طبقاتي تضاد له منځه تللو سره او د نوي انسان پیدایښت سره، هغه انسان چې د طبقاتي ټولنې مفاسدو څخه خلاص وي، په طبیعت کې تضاد له منځه نه ځي، بدلون او تکامل همدا شان ادامه پیدا کوي او تضاد چې د بدلون او تکامل محرک دی باقي پاتې کیږي.

خپله انسان په نظر کې نیسو. په توحیدي نړۍلید کې انسان د کائناتو یو رکن دی. خو آیا تضاد د انسان په ذات کې هغه شان تضاد چې ډاکټر شریعتي ورله اشاره کوي تړلی دی یا محدود شویدی؟ د لجن — او د خدای روح تضاد په معنویاتو او اخلاقیاتو کې تضاد دی چې باید انسان لوړو اخلاقي پوړیو ته ورسوي. خو خپله انسان، د مور په رحم کې د نطفې تړلو وخت څخه تر مرګ پورې پرله پسې د بدلون او تکامل په حال کې دی: جنین د کمي او کیفي مختلفو پړاونو څخه تیریږي، کله چې ماشوم نړۍ ته سترګې وغړوي رشد کوي، ځوانۍ ته رسیږي او د زوړتیا دوران تیرولو څخه وروسته مري. دغه بدلون او تحول یواځې انسان پورې تړلی ندی، ټول ژوندي موجودات د

حيواناتو او نباتاتو په ګډون د دې تابع اولاسلوبې دي. که چېرې هغه ډول چې ډاکټر شـريعتي مدعي دی — په رښـتيا هم مدعي دی -- که پرته تضاد څخه بدلون، تحول او تکامل وجود نلري، د انسان ژوند لکه د هر بل ژوندی موجود --ژوند چې په خپله يو ډول حرکت دی — د تضاد محصول دی او دغه تضاد پرتــه د (ژوندئ مادې) له منځه وړلــو او د (ژوندئ مادې) بيا جوړولو بل څه نــدی. او دغــه لــه منځه وړل او بيــا جوړونه د ننه په انســان او (هر بل ژوندي موجــود) کې ځای لري د انســان د هر غــړي د ننه هم ګام په ګام وجود لري او پرتــه له دې ژونــد توقف کوي. که چېرې تضاد په توحيدي ټولنه کې په هر څه کې او «حتی په انســان کې» د منلو وړ نده نو بيا دغه تضاد چې د انســان ژوند هغه پورې تړلی دی څه کېږي؟ له دې تضاد څخه انکار يعنې د انســان نفې، د نړۍ د ټولو ژووو نفې، کله چې انسان نوي بياد لجن — او د خدای روح ځينې خبرې کول، د «اما ره باالسوء» او «اماره با الخير» څه معنی ورکوي؟

انســان (يا هر بل موجود ژوی) په داســې محيط کې ژوند کوي چې هغوی ســره همغږۍ نلري. د انســان تضاد د ژوند چاپيريال ســره يوه ښکاره خبره ده چې د بشــري ټولنــې زندګي د دې شــاهدي ورکوي. آيا په توحيــدي ټولنه کې انســان ته ښــايې چې طبيعت اړباســي تر څو خپلې اړتياوې چې پر له پسې د کميت او کيفيت له پلوه مخ په زياتوالي دي تر لاسه کړي؟ آيا ښايي انسان د طبيعت په ځواک چې هغه يی په ټولو برخو کې تنګ کړي برپا تر لاسه کړي؟ آيا واقعاً د ليوه او پســه او د پســه او واښــو تر منځ تضاد له منځه ځي؟ او ليوه هم د انسان په شان د ضرورت په اندازه د قصاب دوکان څخه غوښه تر لاسه کوي يا پســه يی د الاپ (علاف) دوکان څخه؟ او اساســاً قصاب ته غوښه له کوم ځايه راځي؟ آيا بشرۍ تمدن چې حد او حصر يی هيڅ تصور کېدای نشي

طبیعت سره په تضاد کې مخ په وړاندې نه ځي؟ او آیا پرته له مبارزي څخه کولای شو طبیعت ته په خپله خوښه بدلون ورکړو؟ ښایی دغه ټول تضادونه تر خوب او خیال نور څه نوي؟ نه، داسې نده، خوب او خیال هغه ادعا ده چې توحیدي نړۍلید یې د هستي په نړۍ کې د تضاد لپاره هیڅ نښه په ځای نه پریږدي.

په راتلونکې ټولنې کې، په هغه ټولني کې چې نور له طبقاتو څخه څرک نه تر سترګو کیږي د نن ورځې یو شمیر تضادونه لکه د بدني او فکري کار تر منځ تضاد، د ښار او کلیو تر منځ تضاد له منځه ځي. دا هغه تضادونه دي چې د پانګوالي خصوصي مالکیت پر بنسټ منځ ته راغلي د دې ډول مالکیت له منځه تلو سره د هغوی حیات هم له منځه ځي. خو د پانګوالي خصوصي مالکیت پر بنسټ د راغلي تضاد له منځه تلل په دې مانا نده چې راتلونکې ټولنه به تضاد ځینې پاکه وي. پرته له شک څخه د مولده نیرو او تولیدي روابطو تر منځ به تضاد همدغه ډول په ځای پاتې وي او په ټولنه کې به رنګارنګ بڼې ولري چې وړاندوینه یی اوس شونتیا نلري. په دې ځای کې داسې یو تضاد ته اشاره کیږي چې په ټولنه کې یی له وجود څخه انکار نشي کېدای، دغه تضاد د انسان د شناخت په پروسه پروت دی. شناخت د انسان ټولنیزه پروسه ده چې ودریږي نه او تر بی‌نهایت پورې ادامه لري. د داسې ټولنې تصور چې په هغې کې به شناخت حرکت څخه لویږي او توقف به کوي له واقعیت څخه لیرې ده. په راتلونکې کې د شناخت پروسه نه دا چې توقف کوي بلکې لمن یی نوره هم په چټکۍ سره غزیږي، ځکه د شناخت تګ لاره چې د مولده نیرو تکامل پورې تړلې ده په بیړې سره په وړاندې ځي. د شناخت پروسه خپله یو حرکت دی، حرکت له ناپوهۍ څخه د پوهې په لور، سربیره پر دې لکه د هر بل حرکت

په شــان د تضاد نتیجه ده. خو شــناخت په هر زمان کــې پولې او بریدونه لري چې نشــو کولای له هغو څخه تیر شــو او دغه بریدونه د وخت تاریخي شرایط منځ ته راوړې، دغه شــرایط په لمړي سر کې د مولده نیرو، وسایلو، اسبابونو، د علمــې او تحقیقاتــي توکــو او د بشــرۍ پوهې کچــه د تکامل معلــول ده. د الکترونیکي میکروسکوب څخه پرته د حجرې اوهستې منځ کې ننوتل او نفوذ کول شــونتیا نلري. د محاسبې چټک او دقیق ماشین او سترو تلسکوپونو پرته د سپوږمېو او نورو سیارو د لمر او نورو ستورو او کهکشانونو دقیقه پیژندنه او داســې نور شــونې ندي. خو که چېرې شناخت په هر زمان کې محدودیت لرې په ځای یی د انســان اســتعداد او رسالت د هستي په نړۍ کې (انسان د فرد په مانا نه، بلکې د ټول بشــریت په مانا په حال او راتلونکي کې) په زمان او مکان کې، نامحدود دی. دغه د شناخت د لړۍ د محدودیت او نامحدودیت تر منځ تضاد پرله پســې حل کیږي له ســره ځای پر ځای کیږي او شــناخت تر بی پایه ادامه پیداکوي هغه ډول چې د بشر د تاریخ په اوږدو کې یی دوام پیدا کړی او د هستي نړۍپیژندنه یی تر دې کچې لوړه کړیده.

د شناخت پروسه پرله پسې د هستي نړۍ تازه اړخونه د انسان لپاره کشفوي، تیــرې علمــي لاســته راوړنی په ځیــر کې ســره لازیاتې دقیق کــوي یا صحیح شــناخت د ناسم شــناخت پر ځای وړاندې کوي او داسې نور. د شناخت دغه ډیالکتیکي تضاد هیڅکله توقف نکوي ځکه چې د انســان شناخت هیڅکله له پښو نه لویږي.

د مارکسیســتي ډیالکتیک لپاره، تضاد، د حرکــت او تکامل محرکه ځواک دی او څرنګه چې حرکت او تکامل پای نه مني له دې کبله تضاد په هیڅ وخت کــې نهایــت ته نه رســیږي. د ډیالکتیک پــر بنیاد مارکسیســتي نړۍلید د ټولو

پړاوونو شکور دی نه د حال زمانې. په مارکسیستي ډیالکټیک کې هیڅ ځایګی نشي پیداکولای چې بل ځایګي سره توپیر ولري. خو توحیدي نړۍلید چې ډیالکټیک مني او تضاد د حرکت او تکامل محرکه نیرو بولي، په کې د تضاد ځای نشته «نه په طبیعت کې، نه په تاریخ، نه په ټولنه او حتی نه په انسان کې»، کوم شی چې واقعیت سره سمون نلري او هیڅ څوک قانع کولای نشي. بنایی په توحیدي نړۍلید کې بدلون او تکامل خپل پای ته رسیږي او «کون و فساد» خپل ځای چوپتیا او هوسایې ته ورکوي خو د توحیدي نړۍلید پلویان خپله دغې پوښتنې ته چې پرته له وهم او آنګیرنې بل څه ندي منفي ځواب ورکوي. په هغه وخت کې چې نړۍ له عدل او نیاو څخه ډکه شي لیوه او پسه یو د بل څنګ کې ژوند کوي او انسانان ټول شیان وړیا تر لاسه کوي ښکاره ده چې د نړۍ څرخه اوس هم په حرکت کې ده حرکت پرته له تضاد څخه پوچه او باطله ادعا ده. په دې ډول ډاکټر شریعتي ډیالکټیک څخه تړوک تړوک ټکړې را ټولې کړي، په ځانګړې توګه د مارکس ډیالکټیک څخه (په واقعیت کې مارکس انګلس او د هیګل ډیالکټیک یی ژوندي کړ او ژوندی یی وساته) چې مسلم حقیقت دی، اخیستي او خپلې نړۍلید پوري یې پیوند کړي.

ډاکټر شریعتي د تضاد په څنګ کې د ډیالکټیک ځینو فلسفي مقولاتوته هم لاس اچولی او کله چې دی د ډیالکټیک له درک کولو څخه بی خبره دی په خپله طریقه یې تفسیر کړی. او د دې لپاره چې د پدېدو او څیزونو تر منځ مخامخ ډیالکټیک اړیکي په ګوته کړي داسې لیکئ:

«ډیالکټیکې اړیکه څه شی ده؟ ډیالکټیکي اړیکه دا ده کله چې وایو زه «من،» زه انسان (من انسان) یا زه بزګر(من دهقان) له یو پلوه بزګري کوي او طبیعت ته بدلون ورکوي او په هغه وخت کې چې بزګری کوي بزګري هغه ته بدلون

ورکــوي او بزګرۍ کوي... د بزګر روحیه، ســلوک او اخلاق څرګندوئ. په دې اساس د تولید اسباب او کالي په هغه اغیزه کوي او بزګر هم د تولید په وسائلو اغیــزه کــوي یعنې د دواړو تر منځ اړیکې، مخ په مخ متقابل او ډیالکټیکي دي. نو بیا زه د انســان په عنوان علت یم د خپل محیط د بدلون لپاره... یعنې خپله اراده مې تحمیل کړه او په مادي قوانینو کې مې ورګډه کړه، او له بل پلوه هغوی هم په ما اغیزه وکړه، بیا زه په هغه وخت کې چې مادې ته بدلون ورکوم یعنې زه علــت یــم او ماده معلول، په همدغه وخت کې چــې د دې معلولعلت یم او بیــا دغه معلول، زما علت کیږي. یعنــې زه یوه پدیده یم، په دې وخت کې چې علت یم معلول هم یم»

(«مذهب، تکامل، نړۍلید»،نشرپیام و خون،۲۸مخ) ډاکټر شریعتي غواړي «اســلامي ایدئولوژي څخه یوه بشــپړه څیره» په لاس ورکړي تر څو ځوانان د مارکسیزم په ضد مسلح کړي. په خواشیني سره اسلامي ایدئولوژي دومره ورانه ویجاړه او شــړیدلی ده چــې د مطلوب او موخې په ځای ســرچپه اغیزه کوي. پورتنۍ جملې او د هغوی ادامه د ډیالکټیکي علت او معلول په اړه یوه ناروښانه او ترهورتیا څخه ډکه هڅه ده. پورتني استخراج څخه دوه توپیر لرونکې درک تر لاســه کیــږي: لمړی علت او معلــول هغه ډول چې صــوري منطق یی ادعا کــوي یو له بل څخه جلا ندي، نشــو کولای ووایو یو علــت یواځې او یواځې علت دی او معلول کیدای نشــي یا بالعکس، معلول نشــي کولای د علت ځای ونیســي. که په تولیزه توګه یی بیان کــړو باید ووایو هر علت معلول دی او هر معلول علت دی. دا هغه ډیالکټیک دی چې ډاکټر شــریعتي هغه په خپل خیال د مارکسیســتي ډیالکټیــک په وړانــدې کاروي. کله چې بحــث په دې دی چې تولیدي کار په هماغه وخت کې چې د انسان په لاس تر سره کیږي خپله انسان

ته هم بدلون ورکوي یعنې معلول په خپل علت اغیزه کوي سـمه خبره ده او دا په خپله مارکسیزم دی. انسان د طبیعت د بدلون په جریان کې خپل ځان ته هم بدلون ورکوي، جوړوي یې، یا مجسـمه جوړوونکې چې کله مجسمه توږي په عین وخت کې خپل ځان هم «توږي»، او بدلون ورکوي. دا د پورته یاد شـوی استخراجیو درک دی چې د علت او معلول د اړیکو صحیح درک دی. سربیره پر دې په دغه لیکنو کې ځینې تعبیرونه تر سـترګو کیږي چې د انسـان درک ګډ وډ او تر پوښتنې لاندې راولي. دغې جملې ته توجه وکړئ:

«کلـه چـې زه مادی ته بدلون ورکـوم یعنې زه علت یم او مـاده معلول (په واقعیـت کـې ماده معلول نـده، د مادی بدلون او بدلـون دی — ف) او په هغه وخـت کـې چې د هغه معلـول علت یم هغه معلول زما علـت دی»، یا دا چې «فردوسی د شاهنامې علت دی او په عین وخت کې په خپله د شاهنامې معلول دی.»

دا د علت او معلول تازه «ډیالکتیکي» اړیکه ده! په مارکسیسـتي (یا هګلي) ډیالکتیک کې علت الزاماً معلول منځ ته راوړي خو دغه اړیکه هیڅکله په شـا تلونکـې نـده. دا په دې مانا ده چـې معلول هیڅکله د خپـل علت لپاره علت کېدای نشي. د بیلګې په توګه تالنده او بریښنا د الکتریکي بار د تشیدلو (تخلیه شدن) معلول دی خو د الکتریکي بار د تخلیه کېدوعلت ندی، د ورځې او شپې د پیدایښـت علت د ځمکې وضعي حرکت دی خو د هغه معکوس نا سمه ده، فتوسنتز په شنو واښو کې د لمر نوراني انرژي په کېمیاوي انرژی د بدلون علت دی. خو کېمیاوي انرژي د فتوسنتز علت ندی. دغه مطلب په دې اندازه واضح دی چې بیان ته یې اړتیا نشـته. البته معلول کولای شـي چې په یوې بلې اړیکې کې په علت بدل شي، لکه تالنده چې د الکتریکي بار د تخلیه کېدو معلول دی

کله چې څمکې ته راولوېږي کېداى شي د اور لګېدنې علت شي يا له فتوسنتز څخه تر لاس شـوې کېمياوي انرژي د ژونديـو موجوداتو د بقا علت وګرځي خـو پـه هر حال کې معلول نشـي کولاى د هغه علت لپـاره علت وګرځي چې خپله هغه څخه پيداشـوى وي. ډاکټر شـريعتي په حيرانوونکې سـپين سترګې توب سره له دغه منل شوي حقيقت څخه انکار کوي:

«دغـه ارسـطويې منطق په دې پوهيداي نشـي کوم چې اوس يې اسـلامي منطق وايې. ځکه هغه وايې: که علت دى نو په هماغه اړيکې کې معلول ندى، مګر دا چې د بل معلول علت وي. خو زه وايم نه، په هماغه اړيکې کې معلول دى»

بيا شـاهنامه مثال راوړي ګڼه فردوسـى د شاهنامې معلول دى! که فردوسى د شـاهنامې علت دي، خپله، د شـاهنامې معلول ندى. شـاهنامه د فردوسى د شهرت او لوړې انګازې علت دى نه خپله فردوسى. ډيالکټيک په دې باور دى چـې علت او معلـول د عليت د ځنځير دوه کړۍ دي چـې علت، لمړۍ کړۍ او معلـول دوهمه کـړۍ ده او د يوې لوړې ځانګړې اړيکې په چوکاټ کې دغه دواړه بو د بل ځاى نه نيسي، خو دويمه کړۍ (معلول) کولاى شي د بلې کړۍ لپاره د علت نقش ولوبوي.

پـه ځينـو ځايونو کې کله چـې معلول پيدا کېږي کولاى شـي په خپل علت اغيزه وکړي اوعلت د بدلونونو څرګندوى شي مثلاً دمولده نيرو رشد د علومود پرمختـک علت دى خـو د علومو پرمختک په خپل وار د مولده نيرو د رشـد موجـب دى. دغه اړيکه «د مولده نيـرو د پرمختک علت د علومو د پرمختک علـت او د علومـو د پرمختک علت د مولده نيرو د پرمختک علت ښـايى په لمړۍ وار د ډاکټر شريعتي په نظر د صحت شاهدي ورکړي خو ښکاره ده چې

معلـول «دعلومـو پرمختک» دی هر ځله د مولده نیـرو پرمختک په هری تازه اړیکي کې د علت ځای نیسي او نه په هغې پخوانۍ اړیکې کې. په دې ډول دغه حکم چې علت او معلول په یوې ځانګړی اړیکې کې خپل ځایونه نه بدلوي په ټولو برخو کې صحیح ده.

له همدې ناسـم او اشـتباه آمیز لید څخه ده چې ډاکټر شـریعتي په مارکس نیوکه کوي. او په دې باور دی چې:

«که په ماټریالیزم باور ولرو په پای کې مجبور یو چې ایده او ماده په یو شي تحلیل کړو یعنې «ایده» د «مادې» زیږنده ده نو په دې حالت کې «ماده» د «ایده یی» زیږنده، نشـي کېدای،... چې په دې ځای کې اړیکه یو اړخیزه ده... د دې اړیکې نوم میکانیکې اړیکه ده.... ډیالکټیکي اړیکه نده»(هماغه ځای ۲۷ مخ)

همدا ناسم لید دی چې هغه ته یې دغه نتیجه یقیني کړیده چې:

«ماټریالیـزم او ډیالکټیـک چـې د کارل مارکس تر ټولو سـتره معجزه ده... یوبل سـره همغږي ندي او نه همغږي کېدای شي. ځکه چې ډیالکټیک یعنې د دوه پدېدو تر منځ متقابله اړیکه، د هسـتي له پیل څخه تر پایه، دا هغه وخت د پاملرنې وړ ده چې اساسـاً موږ د طبیعت لپاره دوه سـرچېني (منشاء) او دوه جلا جلا نیرو ومنو او ورله قائل شو».

په دې ترتیب ماده او ایده یوبل څخه دوه جلا نیروګانې دي!. خو څه ډول کولای شو چې ایده له مادې (د انسان مغز) څخه جلا او مستقل وګڼو پداسې حـال کـې چې پرته له مغز او د هغه له فعالیت څخه همدا ډول پرته له خارجي مادي نړۍ څخه، شـعور او ایده پیدا کېدی نشـي. که ماشـوم وړوند، کوڼ او ګونګ نړۍ ته سترګې وغړوي ـ په واقعیت دا ډول ماشومان هم زیږول کیږي ـ کـه چیرې هغوی په خپل حال پریښـول شـي دهغوی شـعور پـه ډېری ټیټی

کچې کې پاتې کېږي او که د ډاکټر په مرسته د هغه په معیوبو غړو کې ځه ښه والی راشي د شعور کچه یې وار په وار د لوړوالي خوا ته ځي. څرنګه چې د بدن پوټکې خپل احساس له لاسه ورکړي انسان به له درد، کلکوالي، نرموالي، ځیږوالي، تودوالی، سوړوالي... څخه هیڅ ایده ونلري. ښکاره ده چې ایده او شعور د انسان مغز (مادې) څخه مستقل مفهوم نلري او د عیني واقعیتونو احساس د حسي غړو پواسطه د افکارو، تئوري ګانو او علمي قوانینو په پیدایښت کې لمړنی ګام شمیرل کیږي.

که شعور او ایده د مغز (مادې) زیږنده ده، بیا د هغوی وجود له مادې څخه مستقله نده، اساساً ولې ماده او ایده د واقعیت او حقیقت برخلاف د دوه جلا جلا نیروګانو او دوه منشاؤ زیږنده وګڼو؟ اصولاً آیا هغه ډول چې شریعتی مدعي دیاو مارکسیستي ماتریالیزم په دې مناسبت مکانیکي بولي، آیا وروسته تر هغې چې ایده منځ ته راشي په مادی محیط اغیزه نه کوي؟ آیا مارکسیستی ماتریالیزم چې د هستي په نړۍ کې پرته له متحرکې مادې بل څه نه پیژنې، شعور او ایده د مادی زیږنده پیژني په دې باور ده چې د مادې او ایدې تر منځ متقابله اغیزه وجود نلري او ایده پر مادې اغیزه نکوي؟ هر هغه څوک چې له مارکسیزم څخه لږ پوهه هم ولري پوهیږی چې د دې پوښتنې ځواب منفې دی.

نږدی یوه پیړۍ کیږي چې د مارکسیزم دښمنان دغه غلطه اندیشه خپروي چې ګویا مارکسیزم په ټولنه او د انسان تکامل کې د افکارو او ایدئولوژي په نقش سترګې پټوي هغوی عمداً د مارکس ماتریالیزم پر ځای عامیانه او میکانیکې ماتریالیزم کښینوي. عامیانه ماتریالیزم چې کېدای شي هغه ته (اقتصادي) ماتریالیزم هم ووایو داسې انګیرنه کوي چې ټول افکار مستقیماً له اقتصاد یا تخنیک یا حتی د ژوند له چارو او طریقو څخه سرچینه اخلی له

همدی کبله نشـي کولی روښـانه کړي چې ولی او څه ډول یو کارګر بورژوازي افکار په سر کې لري او د بورژوازی په ډول فکر کوي او یو بورژوا ولی او څه ډول کله نا کله خپله طبقاتي موضع پریږدي او د یوې بلې طبقی طبقاتي موضع غوره کوې؟

دغه عامیانه لیدلوری ایدآلیسـتانو ته لاسـوندی ورکوي چې افکار له مادی نړۍ څخه مستقل وښایی او د انسان کړه وړه د هغی نتیجه وګڼي.

پـه ایـران کې د مارکسـیزم انتقـاد کوونکې هـر هغه څه چـې د مارکس او مارکسـیزم په ضد کارولي، لودیځ څخه یی تر لاسـه کـړی. هغوی په خپله نه مارکسیزم څخه سم درک لري ترڅو د موضوع د شناخت له مخې وکولی شي په مارکسـیزم نیوکه وکړی او نه علمي او فلسـفي تومنه لري چې دهغه له مخې مارکسیزم څخه د انتقاد کولو ځواک ولري. دا هماغه د ښکېلاګرو ا و دهغوی د ایدئولوګانـو د خولـې اپلتې دی چې ایراني آخوندان یـی ټکې په ټکې زمزمه ګوي.

د دې خبرې د ثبوت لپاره چې ګویا مارکسیزم د افکارو نقش ځینې بی پروا دی د انګلس لیکونو ته چې د مارکس د مرګ په درشـل کې د هغه د اسـنادو په لټه کې بوخت دی دا ډول نتیجه ګیري کوي چې مارکس پر اجتماعي چاپیریال د افکارو د اغیزې نقش تر لاسه نکړ او انګلس هم یواځې د خپل ژوند په پای کې په دې اشـتباه وپوهیده او دې پایلې ته ورسـیده دغه نړۍلید چې په ټولنه کې د افکارو نقش ته پاملرنه نکوي د توجه وړ نده. په خواشیني سره د هغه بی سـابقه خپکان د علت له مخې چې زموږ پـه ټولنه حکم چلوي د انګلس لیک یا لیکنو ته لاسرسی نشته تر څو هغوی ته مراجعه وشي او هغه د لوستونکو په مخکې کېښودل شي. تر هغه ځایه چې کولی شم خپلې حافظې څخه کار واخلم

له دغه ليکونو څخه په يو ليک چې (بلوک) ته يې ليکلی وه انګلس يادونه کوي چې مارکس او هغه (انګلس) په پيل کې په اقتصادی لاملونو ډېره لګوله او په نتيجه کې د افکارو هغه اغيزه چې په ټولنيز چاپيريال يی لري له نظره پاتې شو او ناچاري وه، ځکه هغه وخت چې مارکس او انګلس د علمي سوسياليزم بنسټونه جوړول د ټولنې د تکامل د مسئلې په هکله ايدياليستی نړۍليد واکمنه وه. بورژوازي فلاسفه په دې باور وه هغه څه چې ټولنه مخ په وړاندی د تکامل په لور بيايي د انسانانو عقل، پوهه، افکار او عقايد دی او د دغه افکاراو عقايدو تر منځ يو د بل په وړاندې جګړه ده. تخيلي سوسياليستان هم په دې لومه کې نښتي وه. هغوی سوسياليزم ته د رسيدو لپاره هڅه کوله تر څو د پانګوالو افکارو ته بدلون ورکړي او د سوسياليزم لارې ته يی راکاږي. د تاريخ دغه ايدياليستي درک ماتولو لپاره مارکس او انګلس بايد تر هر څه د مخه خپله توجه اقتصادی عامل ته اړولې وای. خو دا په دې مانا نه وه او نده چې د ټولنې په تکامل کې يې د افکارو او تئوريګانو اغيزې ته لږ ارزښت ورکړی يا يې هغه له پامه غورځولي وای(۷).

مارکس د خپل علمي فعاليت پيل کې د يوې پيلامې په ترڅ کې چې د هګل د حقوقو په فلسفې نيوکه کوي ليکې:

«کله چې تئورې په پرګنو کې نفوذ وکړي په مادي ځواک بدليږي» آيادغه حکم په ټولنيز محيط د افکارو د اغيز او اهميت نښه نده؟ مارکس او انګلس په ۱۸۴۸ کال کې مانيفست کمونيست وليکه تر څو پرولتاريا د بشري ټولنې په ځانګړې توګه د پانګوالې ټولني د تکامل په هکله علمي افکارو سره آشنا کړي او په پانګوالې ټولنه کې پرولتاريا ته د هغوی رسالت او موقعيت ور وپيژني او په پايله کې د سوسياليستي انقلاب لپاره د پرولتاريا د تئوري په توګه وليکه او

پرولتاریـا یـې د پانګوالې په ضد د مبارزې لپاره هڅول. آیا همدغه افکار ندی چې پرولتاریا یې په سیاسـي سـازمانونو کې راټول کړل او په ۱۸۷۱ کال کې په کمون پاریس پای ته ورسید او په ۱۹۱۷ کال کې د اکتوبر په ستر سوسیالیستي انقلاب منجر شـو؟ مګر مارکس او انګلس چې خپل افکار یې په «مانیفست» کې خپاره کړي کېدی شي ادعا وکړو هغوی پرته له دی چې په ټولنه کې د هغې د اغیـزې په هکله فکر وکـړی خپاره کړي؟ مګر مارکـس او انګلس خپله دغه افکار په عمل پلي نکړل او هغه یی په مادي ځواک بدل نکړل؟

بیا هم د مارکسیزم د بنسټ ایښودونکو دغه ژورې اندیشې ته توجه وکړئ: «په شـناخت کې آزادي ته اړتیا ده» او هغه په دې مانا ده کله چې انسـان د نړۍ قوانیـن د طبیعـت او ټولنې په ګډون وپیژني کولی شـي د طبیعـت او ټولنې په وړانده ځواک بریا تر لاسـه کړي او هغه په خپل خدمت کې ونیسـي. آیا د دې مفهـوم دا ندی چې قانون او تئوري خپله د انسـان په مغز دعیني نړۍ د اړیکو انعـکاس دی چـې په خپـل اجتماعي چاپیریـال اغیزه کوي او هغـه ته بدلون ورکوي؟ مارکس وایی: «لمړنیو انسانانو چې ځانونه د حیواناتو نړۍ څخه جلا کړل په ټولو اساسـي برخو کې لکه د حیواناتو په شـان په هماغه اندازه آزادي څخـه بـی برخې وو. خو په فرهنـګ کې هر پرمختګ د آزادي پـه لور یو ګام وو» یعنـې د ټولنـې په مادي ژوند کې د تحول په لور یو ګام چې انسـان ته یې د طبیعت د ځواک له اغیزې څخه آزادي ورکوله. په دې تفصیل سـره آیا دغه خبـرې چـې مارکس او انګلس د ټولنې په تکامل کـې د افکارو او تئوریګانو په اغیزې باور نه درلود چتې خبره نده؟

# اخلاقي ارزښتونه

۱

د ماتریالیزم د«رد» لپاره د ډاکټر شریعتي یو دلیل دا دی چې د ماتریالیزم په اساس نړۍ کې پرته له خوځنده او متحرکې مادې بل څه نشته، نړۍ «یو عنصر لري هغه هم ماده ده»، چې «نړۍ د یوې آګاه او با شعوره ارادې مخلوق ندی، او کله چې طبیعت څخه آګاه او با شعوره اراده حذف کړو طبیعت او نړۍ څخه یوه ستره پیچلی مړزګه (لش) جوړیږي چې روح، شعور، درک، منطق، حساب او هدف نلري او نه پرې پوهیږي».

په دې ځای کې بحث د دې په سر ندی چې طبیعت، شعور، درک، منطق، حساب او موخه لري، دا یو بحث دی چې باید په جلا توګه پرې خبرې وشي. خو لمړنۍ نامعقوله او د نه منلو نتیجه چې له هغې څخه تر لاسه کیږي دا ده چې د ماتریالیزم مکتب نړۍ د آګاه اوبا شعوره ارادې زیږنده ده نه بولي چې طبیعت«پیچلې مړه شوی مړزکه» ده او حال دا چې طبیعت د ایده آلیستي او مذهبي مکاتبو لپاره ژوندئ او حرکت کې دی. ځکه چې آګاه او با شعوره ارادې هغه جوړ کړی او شکل یې ورکړی او په حرکت یې راوستی. ته به وایې چې وریځ، باد، سپوږمۍ، لمر او فلک ټول په کار بوخت شوي د دې لپاره چې زه، «زه انسان» هغه ژوندي وبولم یا له هغو څخه پیچېلې مړزګه جوړه کړم، ته به وایې چې د نړۍ پنځه (سرشت) توپیر کوي که زه هغه د یو صانع مصنوع وبولم یا یې ازلي او ابدي وګڼم. شمسي منظومه په میلیاردونو کلونو وړاندې له انسان څخه شکل نیولی په بدلون او حرکت کې ده. آیا مخکې تر دې چې انسان په نړۍ کې پیداشي او د نړۍ په هکله قضاوت وکړي شمسي منظومه یو

پیچلی لش وو یا د حرکت په حال کې متکامله دستګاه؟ آیا د شمسی منظومې واقعیت د فلسفي مکاتبو د انګیرنو مطابق بدلیږي، دماتریالیزم اوماتریالیستانو لپاره د مړزګې او مړي په بڼه ښکاریږی او د ایده آلیزم او ایده آلیستانو لپاره (چې مذهب هم د هغه یو ډول دی) دغه دستګاه د شعور، ارادې او منطق څښتن ده؟ آیا کله چې زه په ماتریالیزم باوري شوم، زما لپاره شمسي منظومه وچېږی لمر اوستوري له حرکت او څرخیدو څخه پاتې کیږي؟ په طبیعت کې وړانده قوانین حکم چلوي. ټول کائنات د هغوی مطابق په حرکت او ګردش کې دی بدلون او تحول کوي. صرفنظر له دی که موږ هغه د پروردګار مخلوق او پنځونه وګڼو یا یی ونه ګڼو، صرفنظر له دی که هغه ته اراده، شعور او موخه ومنو یا یی ونه منو، دا یو واقعیت دی چې انکار ترې ناشونی دی. ډاکټر شریعتي په دې باوري دی چې که چېری د طبیعت لپاره یو آګاه او با شعوره اراده او پنځونکې ونه منواو بیا ومنو چې طبیعت شعور، اراده، منطق او هدف نلري هغه وخت به نړی په هیچ او پوچ بدل شي. د هغه لپاره د منلو وړ نده چې په دغه بی پایه نړۍ کې یواځې انسان دی چې د شعور، ارادی او هدف څښتن دی. دغه تصور چې «یواځنی عنصر انسان دی چې په دې پوچ، بی هدفه او بی پایه هیچستان کې په خود آګاهي رسیدلی دی» د حیرانتیا او خپکان موجب ده چې انسان د کائناتو په اړوند بیګانه اوخوار پیژني «بیګانه کیږي او د طبیعت کندې ته لویږي» ډاکټر شریعتي په دې اندیشې چې د اګزیستانسیالیزم څخه یی اخیسی ټینګ باور لري خو د دی لپاره چې داګزیستانسیالیزم په دام کې کښینوځی د چارې لاره په دې کې ویني چې شعور، او اراده او حتی منطق او هدف چې د انسان ځانګړتیاؤ څخه دی طبیعت ته دود او تعمیم کړي. ته به وایی که زه «زه انسان» د خپل خپګان رفع کولو لپاره تصمیم ونیسم چې د

دماندو غر د ایران دغه د فلات ښایسته ناوکۍ شعور او منطق لري واقعاً هم دماندو شعور او منطق پیدا کوي، یا که داسې وګڼم چې سپوږمۍ د ځمکې په چاپیر څرخیدو کې هدف پسې ګرځي، زما دغه اندیشه واقعیت پیدا کوي. البته انسان د خپلې پریشاني رفع کېدو لپاره کولی شي هرې اندیشی ته لاس اوږد کړي خو پرته له شک څخه هغه څه چې پوچ دي همدغه اندیشه او د تفکر غیر علمي طریقه ده.

که وغواړو چې د مطلب حقیقت ادا کړو باید د ډاکټر شریعتي حکم سرچپه کړو او د سر پر ځای یې پر پښو ودروو، دا د طبیعت بی هدف والې ندی چې د تشویش او نګراني تومنه ده، برعکس دا د مقهورو او بی وسو انسانانو پریشاني ده چې د طبیعت د وړانده ځواک د لاس لوبی ګرځیدلی دی، هغه یې اړ کړی تر څو آګاه او با شعوره ارادی ته معتقد شي د هغه لمن ونیسي او د خپلې پریشاني د تسکین لپاره حتی قرباني، نذر او د نیاز لاسونه په دعا پورته کړي. دا دټولنې او طبیعت قهر دی چې انسان په اګاه ارادی باور کولو ته مجبوروي.

هغه انسان چې کله ناکله د طبیعت نا ایل شوی (مهارنشده) ځواک په هغه وردانګي هغه بی وسی او ستومانه کوي، هغه انسان چې د ژوند تیرولو لپاره هره دروازه ټکوي خو په یوې لغتې بهر ارتاول کېږي او په خپل کار کې ډوب پاتی کیږي، هوکې دغه انسان له هری خوا پاتی او له هر ځایه رټل شوی د یو تکیه ځای په لټه ګرځي چې هغه ته له دغه ټولو بدمرغیو او بی عدالتیو نجات ورکړي. اګاه ارادی ته د انسان اړتیا له همدغی کمزوري اوپه عین حال کې د ټولنې او د طبیعت د قهرجنو ځواکونو په وړاندی د بریا د څرنګوالی په هکله د هغه جهل او ناپوهي څخه سرچینه اخلي. ډاکټر شریعتي خپله په کراتومراتو دغه حقیقت ته اشاره کړي ده:

«ای لویه خدایه! که ته یاست، یا نه یاست، اوس زه تا لره ډېر اړاو محتاج یم، یوائځې دې ته اړ یم چې ته اووسې!» («توحیدي نړۍلید»، دویم دفتر، ۵۶مخ)

د دی نشریی په بل ځای کې:

«خدای د انسان له نظره یو ټینګ احتیاج دی، هم فکري او هم پیرزوینه ده» (۵۸. مخ)

بیا هم:

«خدای ته د انسان یو له عاطفي اړتیاؤ څخه د یو مطلق قدرت او ډاډمن ژغورنځای او د یو ځانګړي جهت او ماناسپیڅلی احساس دی» (۵۹مخ) (تکېه ـ ف)

وینې چې په ټولو ځایونو کې پنځوونکې او آګاه اراده د بی وسې انسان د «احتیاج او نیازمندي» ثمره ده چې په نتواتی سره خپلې ستونزې او غمونه تسکېنوي. بی شکه ډاکټر شریعتي یو خدای پالونکې انسان دی خو دهغه خدای پالنه د دې مخه نه نیسي هغه څه چې دی یې احساسوي او حقیقت یې ګڼي په خولی راوړي او د روحانیت غصه او تکفیرول د ځان په بیه واخلي.

آخر ولی د یو باشعوره انسان وجود باید په یو بی شعوره نړۍ کې د پریشاني موجب وګرځي؟ که چېرې د مادی تکامل د سلګونو کلونو په تیریدو سره په ډېر پیچلي او بغرنج ډول د انسان په مغز پای ته ورسیږی څه کولی شو؟ دا یو واقعیت دی چې مختلفو علومو هر یو په خپلې ځانګړی طریقی په اثبات رسولی دی. د واقعیت په وړاندی پریشاني، واقعیت ته بدلون نه ورکوي. ډاکټر شریعتي پریشانه دی چې څرنګه آګاه انسان په نا آګاه طبیعت کې غریب او بیګانه دی، له طبیعت سره بیګانه دی، عالم سره تضاد لري. خو په ټول مادي

نړۍ کې له هغې جملې په انساني ټولنه کې، هیڅ داسې شی نشته چې تضاد ځینې خلاص او مبرې وي، مګر حرکت او تکامل چې د مادي نړۍ اصلي خصوصیت دی پرته له تضاد څخه شوني ده؟ مګر د نه په حیواناتو او نباتاتو کې تضاد نشته؟ مګر د ژوؤ او د زیست چاپیریال په منځ کې تضاد منل شوی اصل ندی؟ مګر په خپله ژوند یو تضاد ندی؟ مګر په انسانې ټولنه کې هر ځای تضاد نه تر سترګو کېږي؟ که چېرې له طبیعت څخه د خدای حذفول انسان له طبیعت سره بیګانه او خواروي او عالم سره یې په تضاد کې اچوي، بیا په خدای باورکول باید انسان له غربت او بیګانګي څخه وژغوري او طبیعت سره یې تضاد په همغږي بدل کړي. آیا واقعاً همداسې ده؟ نه، په هیڅ ډول داسې نده. مګر د موحدینو په وینا، ژوندۍ نړۍ یوې آګاه ارادې پنځولې ده؟ نو بیا څرنګه ده چې د ژوندۍ نړۍ د ننه کې دومره تضاد او بیګانګي وجود لري؟ آیا لیوه چې میږه داړي د هغه به نسبت بیګانه ندی؟ یا غوایې چې په وابښو کې څرېږي له وابښو سره په تضاد کې نده؟ دا چې تالنده او بریښنا (صاعقه) له آسمان څخه رابریوځي درمند سوځوي یا یو کور له کورنۍ سره سوځوی د بیکانګي نښه ده او که د همغږي؟ نو په دې کې دغه ټول تضادونه او بیګانګي له کوم ځایه دي؟ کولی شو په زرګونو نورو دا ډول بیلګو ته اشاره وکړو. وینئ چې د یوی آګاه ارادی په وجود باورکول هم په طبیعت کې بیګانګي او تضاد له منځه نه وړي.

ډاکټر شریعتي په خپله په دې باور دی چې نړۍ پرته له تضاد څخه مړه او بی روحه ده، اوس څه شوي چې یوناڅاپه د انسان تضاد عالم سره، طبیعت سره د انسان بیګانګي، پریشانه کړی ده او د خپلې پریشاني رفع کولو لپاره د سوچونو په زور د انسان د ټولو علمي لاسته راوړنو په خلاف، طبیعت ته

آګاهي، شعور یا منطق او هدف ډالۍ کوي تر څو د انسان تضاد، طبیعت سره حل کړي او د دغه دواړو تر منځ همغږیرامنځ ته کړي؟!!

دغه د آګاه انســان او د نا آګاه طبیعت تر منځ د همغږي نشــتون ندی چې ډاکټر یې په پریشاني کې ډوب کړی، دا د انساني ټولنی تضادونه، په ټولو برخو کې د پانګوالۍ انحطاط او بحرانونه دي چې پریشاني زیږوي. توجه وکړئ:

«کوم شیان د انسان آزادي تر خپو لاندې کوي؟ ویره، زړه تړل (دلبستګی)، تمــه کول، مزې چړچې، هوســونه، حــرص،... محافظه کارئ،... چاپلوســي، مریې توب، بندګئ، چلوټی، دروغونه، مصلحت پالنه، نزدی کېدل، ځان نزدې کول،... یعنې دغه ټولې چټلې اړیکې دي چې د ټولنیز ژوند د شخصیت او انسانی تلاش او خپو څخه تاوې شــوی او د وخت په تیریدو نورهم پســی ټینګیږي. د پرون ورځې د زرو جمع کول د نن ورځې د وحشي او ترهناک کاپیتالیزم په بڼه راغلــی. د پرون ورځې احتکار نن یو بدرنګه او جنایت زیږوونکې د «تراســت او کارتل» بڼه ځانته غوره کړې... ملتونه مریان جوړیږې، ارواح ګانې مریېتوب او تسلیمیدو ته راکښل کیږي، انسانیت مریه کیږي، پرون ارباب په هر حال یو انســان (فرد) وو، نن د وحشې سرمایه دارې رژیم په سترو فرهنګي،تبلیغاتې، پټو او ښکاره دستګاه ګانو، تر ټولو بدتر دا ـ چې له دې څخه خلاصون د هیڅ اسپارتاکوسي قهر له لارینه ترلاسه کیږي ـ «ماشینیزم» او «بوروکراسي»... هغه څه چې نن د بشریت تمدن په بیړي کې اچوي، همدغه ځنځیرونه دي چې کړۍ یــی ورځ پــه ورځ تنګیږي او انســان په کې نور هم پیچلــی کیږي. د نن ورځی انســان د وریښــمو چینجی په شــان هغه څه چې جوړوي په بیړې سره په هغې کــې بندي کیږي، خپګان او خوابــدي د هغه حتمي برخه لیک دی»(«توحیدي نړۍلید»، دویم دفتر، ۷۰ ـ ۷۱مخ) البته څوک چې په دې ټولو تیارو، خپګان

او ناهیلی‌توب کې لاس او ښــپې وهي او د انســان حتمــي برخه لیک «خپکان اوخوابدي» شمیري او له هغه څخه خلاصون شونی نه ویني بله لار نلري پرته له دې چې «آګاه ارادې» ته پناه یوســي او له هغه څخه د «فلاح» او خلاصون هیله وکړي ســره له دې خپله تور په ســپین لیکي چې «نن، پرون هر وختپه هر ځــای او هر تاریخ کې دواړه د خــدای پالو او خدای څخه د بیریدونکو متدینو انســانانو د دیوصفته جنایتونو شــاهدان یو» (همامغه ځای، ۵۷مخ) او اسلامي جمهوري د دې حقیقت او واقعیت یو ښکاره بیلګه او شاهد دی.

ډاکټر شــریعتي د دې په ځای چې را ولاړ شــي دغه جنایتونه او بیره اچونه چې حتی متدین، خدای پاله او له خدایه بیریدونکې انسان یې هم د کړنو خیال نه ساتي، د دغه «چټلو ریښو» د حل او بریا صحیح لار ترغور او څیړنې لاندې ونیســي او په دې لار کې ګام واخلي ســرغړوي، ځانتــه زحمت نه ورکوي، په داســې افکارو لاس پــورې کوي چې نه یوائې ډاکټر، بلکې هیچا ســره په دې مهم کې مرسته نکوي. آیا د دې اندیشي منل چې نړۍ هم لکه د انسان په شان شــعور، اراده، منطق او هدف څخه برخمن دی د انســان له دردونو څخه کوم درد دوا کوي؟ ډاکټر شریعتي د دی پرځای چې واقعیتونو ته د یو انسان په توګه صحیح لار او روش غوره کړي او د ټولنې د تضادونو په حل کې ګډون وکړي، د خپلې پریشــاني رفع کول په دې کې ویني چې د واقعیت برخلاف نړۍ هم د انسان په شان آګاه او منطقي وګڼي.

د ســارتر دغه وینا که «خدای له نړۍ څخه وباســو انســان په طبیعت او له طبیعت څخه بیګانه کیږي»، یا د هایدګر په وینا «انسان خواریږي چې د طبیعت په ښــوره ځای (کویر) کې ګوزار شــویدی» ډاکټر شریعتي یې سخت هیجاني کړی، پرته له دی چې د سارتر او هایدګر افکارو ته د یو علمی انتقاد په سترګه

وګورئ، هغه دغه بـري په کراتو کراتو تکراروی او د خپل اسـتدلال لپاره یی د بنسـټ پـه توګه پکاروي، پرته له دې چې هغه د علم او حقیقت په معیار تر پوښتنې لاندې ونیسي.

د سـارتر پـه عقیده د انسـان بیګانګي طبیعت سـره او د انسـان غربت په طبیعت کې، هغه ډول چې ډاکټر شریعتي یی انګیري له طبیعت څخه د خدای د بیرون ایسـتلو د علت له مخې ندی، ځکه چې د اګزیستانسیالیسـتانو په منځ کـې د مذهبـي زده کړی متفکریـن د خدای په وجود باوري وو. کوښـښ یی کاوه چې مذهب ته په نږدی کېدو سره ځوانان له «غربت» څخه خلاص کړي. اګزیستانسیالیزم د ځوانانو د بیرې، بیکاري، لوږی او بی کوري فلسفي مکتب دی چې د شلمې پیړی د دوه نړیوالو جنګونو شوم میراث دی. هغه ځوانان چې د پانګوالی نظام په علت هرې دروازې ته سـر وهي خو ځواب یې نه ترغوږو کیږي بیره او ناهیلې یی په وجود لاس بری کیږي، د ژوند چتې اوپوچ فکرونه په ژوره توګه د هغه په وجود کې ریښـې ټینګوي. اګزیستانسـیالیزم د کرکې او بیرې مکتب او د انساني ارزښتونو د نفې فلسفه ده چې له همدې واقعیت څخه راپورته شـوی او په همدی ډول د اجتماعي واقعیت په توګه د ځوانانو په منځ را څرګندیـږي او هغوی له ټولنې څخه ناهیلي، مبارزې سـره بی علاقه، هیپي ګري او نیشه یی توکو ته راکاږي.

«د دی لپاره چې ځانونه د «معاصره مارکسیسـتانو چرګوړو» څخه «خلاص کـړو» کله چې هغوی غـواړي د هر تاریخي حرکت په توجیه کولو لاس پورې کړي، ژست کوي او په څو جملو کې که څه هم د هغې په هکله هیڅ معلومات نلري د نږدې اقتصادي اوضاع له حرکت څخه بحث کوي»! («ټولنه او تاریخ»، آیت الله مطهری، ۱۰۶ مخ)

د دی مکتب د سردمدارانو د یو تن لیکنې ته اشاره کوم چې نه مارکسیست دی او نه د مارکسیســت چرګوړی. بولنو په خپل اثر کې د «فلســفه وجود» تر عنوان لاندې اګزیستانســیالیزم دا ډول توضیح کوي چې: «اګزیستانسیالیزم تر لمړۍ نړیوالې جګړې وروســته د خپــکان او ناهیلیتوب په دوران کې ټول هغه تشویشــونه او ویرې چې د انســان مخې ته راغي «منځ تــه راغلی» چې د دغو غمجنــو ټکانونو اغیزې په روښــانه توګه په ځان کې منعکســوي».د هغه «نوی ســمون (رونــق)» د نړیوال جنګ تر ناوړه عواقبو وروســته چــې زموږ په ټول ژونــد یــی حمله وکړه او بیــا یی چې زموږ د رواني نــړۍ ټولې تاریخي اړیکې پریکړي» څرګند شــو. اګزیستانســیالیزم د بورژوازۍ هغه ځوانانو او انســانانو فلسفي مکتب دی چې له هر ځایه شړل شوي او رټل شویدي.

اګزیستانســیالیزم د «اګزیســتانس» (وجود) له مفهــوم څخه حرکت کویاو وجود همیشــه د فرد وجود دی، هغه فرد چې د خپلې تجربې له مخې د هغې شــاهد دی او هغه ځان سره وړي او له ســره یی تیروي. وجود د انسان (فرد) پــورې اختصــاص لــري او همدغه انســان دی چــې د ژوند په جریــان کې یې جــوړوی، پــه دې ډول فرد د خپل ژوند د تجربې له مخې چې تفکر هم په دې کې راځي کولی شــي ټول شیان تر لاســه کړي. د اګزیستانسیالیزم لپاره یواځې هغه شــی چې مفهوم او مانا لري وجود دی او هغه هم د فرد وجود، شــخص «زه» او په پایله کې هرڅه په هغه کې د خپل ځاني مرکز په محور څرخي. هغه تــه څه فرق نکوي چې مځکه د لمر په چاپیــر څرخي یا بالعکس،چې زمان او مکان د کتلې سرعت سره بدلون کوي یایی نکوي. هغوی علم او پوهې ته اړتیا نلري.

اګزیستانســیالیزم د «وجــود» په هکله چې د دی مکتب بنســټ او اســاس

جوړوي دقیق تعریف په لاس نه ورکوي. د سارتر په وینا «وجود داسې شی ندی چې له لرې د هغه په هکله فکر وکړو. وجود باید په ناڅاپه توګه تاسی کې ځای ونیسي، او په تاسې کې پاتې شي، ستا په زړه لکه د یو ستر او بی حرکته حیوان په شان سخت درونوالی کوي. وجود پرته له دی بل څه ندی». نتیجه دا شوه چې وجود باید «په وجودي تجربی» تر لاسه کړو، هغه تجربه چې د دی مکتب مشرانو هر یو، په یو ډول نه یو ډول توصیف کړیده. د هایدګر لپاره «وجودي تجربه د مرګ مخې ته ورتګ دی». سارتر هغه د کانګې (استفراغ) په بڼه نندارې ته وړاندی کوي او بولنو هغه بیره، غربت، پریشاني او ترهورتیا توصیفوي. د اګزیستانسیالیزم مکتب په واقعیت کې د بیري، ترهورتیا، بی پایلیتوب، د پوچي او بیهودګي مکتب دی، هر ډول بداخلاقي او بی پرنسیبي توجیه کوي.

ښکاره ده چې اګزیستانسیالیزم د بورژوازی یو له ډیرو ارتجاعي او پریوتلو فلسفي مکتبونو څخه دی، د کرکې، ناهیلیتوب فلسفه او د انساني ارزښتونو د نفې کولو فلسفه ده. کوم ځوان چې په دې دام کې بند شي تر پایه په حیواني ژوند کې سقوط کوي. غربت او بیګانګي د دی فلسفی په ذات کې ځای لري که څه هم د طبیعت لپاره اراده، منطق او هدف مني یا یی نه مني. مارکسیست ماتریالیزم د طبیعت لپاره اراده، منطق او هدف نه پیژني. له دې کبله د غربت، ناهبلتوب او د بی پایلیتوپ زده کړه نده. نه یوائې د اګزیستانسیالیزم په شان انساني اخلاقي ارزښتونه نه نفې کوي بلکې د هغو ژور درناوئ کوي. د ډاکټر شریعتي دغه حکم چې «د پوچي فلسفی، د ناهیلیتوب فلسفی، د هر کار د بی مانا پیژندلو فلسفی، د ښو او بدو مساوي پیژندلو فلسفی، د ټولو ارزښتونو د ګډوډ کولو فلسفی علت له طبیعت څخه د آګاه ارادی په شتون سترګی

پېژول دی»، دا یو اګزیستانسیالیستي حکم دی چې ماتریالیزم په ځانګړې توګه مارکسیست ماتریالیزم سره هیڅ مشترک نوږی (وجه) نلري.

## اخلاقي ارزښتونه ټولنې څخه را ټوکېدلي

هغه وخت چې ډاکټر شریعتي د انسان ستاینه کوي،هغه داسې انسان ندی چې د یو تاریخي موجود په بڼه وجود لري او نه هغه ته په ټولنه کې ځای ورکوي. د هغه انسان یو منفرد او انتزاعي انسان دی، د خیال په ډګر کې یو ځواکمن او پیاوړی انسان دی له ټولو لوړو انساني ارزښتونو سره. هغه له شعور ځینی دا ډول خبرې کوي چې ګویا انسان د هماغه پیدایښت له ورځی څخه د نن ورځی په مفهوم شعور څخه برخه وال دی.

«انسان د عجیبه قدرت لرونکې دی چې په هر مادي قدرت او په ټولی هستې پیاوړی دی او هغه علم دی، په ځان، په کائناتو او ارادې پوهیدل دي او وینو چې انسان کولې شي د ارادې له مخې، په علم او تخنیک سره جغرافیایی لوري ته اقلیمي شرایطو ته همدا ډول دګیاه شناسي او انسان پیژندنې قوانینو ته په خپله ګټه ځای ور کړي»(«فلسفه انسان»، دریم دفتر، ۶۳مخ)

اوپه بل ځای کې د انسان د ښیګڼو، پوهې او حکمت څخه خبرې کوي:

«دغه ټولی سپیڅلتیاوی، ښیګڼی، ښکلاوی، ارزښتونه، پوهه او معجزې چې نه په وړوڼ او بی شعوره طبیعت کې.... بلکې د عقل په دماغ او علم کې هم نه ځایېږي له کوم ځایه په انسان کې ځای په ځای شوي؟» («هماغه ځای، ۱۰۷مخ)

ښکاره ده څوک چې انسان د نن ورځی په مقطع او ابعادو کې ونه ویني، څوک چې د انسان پیدایښت او تکامل چې د میلیونو کلونو په تیریدو کې یی

شکل نیولی پام کې ونه نیسي، ځوک چې د اوسني انسان ستر قدرت او پیاوړتیا ویني او د دې قدرت د لاسته راوړنې په ځرنګوالی سوچ ونکړي، طبیعي ده انسان د هغه په نظر یوې معجزې ته پاتې کېږي «مطلقې ارادې» او «مطلق عقل» ته پناه وړي او په هغه شاهدې ورکوي.

سربېره پردې ډاکټر شریعتي په خپل لید کې «انسان» نه د هغه واقعي انسان په توګه کوم چې په اوسنۍ ټولنه کې ژوند کوي نه ګوري، بلکې د تجریدي انسان په توګه کوم چې په خپل خیال کې یې جوړ کړی خبرې کوي. ته به وایې انسان د ارادې، تخنیک او علم له مخې کولی شي جغرافیايي مسیر، اقلیمي شرایط او د طبیعت قوانین په خپله ګټه ځای په ځای کړي.

خو د نن ورځې په متمدنه ټولنه کې داسې انسانان هم وجود لري چې د لومړني بشر او د ماقبل تاریخ په شرایطو کې ژوند کوي، نه علم لري نه تخنیک او نه پوهه له دې کبله د طبیعت قوانینو لاندې مات او مقهور دي. آیا دغه انسانان د ډاکټر شریعتي د «انسانانو» په ډله کې نه راځي؟ کله چې د انسان له سپیڅلتیا، ښیګڼې، ښکلا، ارزښتونو څخه خبرې کوي منظور کوم انسان دی؟ هغه انسانان چې «نن، پرون هر وخت په هر ځای او هر تاریخ کې دواړه د دیوصفته جنایتونو» شاهدان یو؟ که چېري دغه ټول کرامتونه، ښیګڼې، ښکلاوی، ارزښتونه او معجزې په انسان کې ځای په ځای شوي او انسان واقعاً هغو څخه برخه ولري، «ویره، زړه ترل (دلبستګی)، تمه کول، مزې چړچې، هوسونه، حرص،... محافظه کارۍ،... چاپلوسي، مریې توب، بندګۍ، چلوتې، دروغونه، مصلحت پالنه، نزدې کېدل، ځان نزدې کول» یا په یوه جمله دغه ټولې چټلې اړیکې له کوم ځایه په انسان کې لار پیداکړې او دهغه روح یې پستي، کچه توب او دنائت ته راکښلی دی. کرامت، ښیګڼې او ارزښتونه

چېرې او محافظه کارئ، چاپلوسي، مريې توب، چلوټې او مصلحت پالنه چېرې! دغه «عجيبه قدرت او دغه علم» چې انسان ته يې «په هر مادې قدرت او تر هرې هستي پياوړتيا» ورکړې په خواشيني سره نن او پرون هر څه د داسې انسانانو په واک کې دی چې د ځمکې په سر د اکثره انسانانو څخه د مريې کولو لپاره ناوړه ګټه اخيستل کېږي. آيا «انسان» څخه منظور چې د هغه پيدايښت د يوې معجزی په توګه يادول کېږي، همدغه له قدرت او علم څخه برخه ور انسانان دي چې د خپل علم او قدرت له مخې د بې وسې او ناپوهه انسانانو سرونه ترپښو لاندې کوي؟ له کوم ځايه دی چې «انسان» انسان دی ولې له علم او مادي او معنوي قدرت څخه برخه ور ندی؟ د انسان مطلق کول (د يو انساني فرد په توګه) او انسان د ستر قدرت او غوره اخلاقو د مظهر پيژندل د ټولنې واقعيت څخه منشاء نه اخلي دا د خيالبافي محصول دی. ښکاره ده هغه انسان چې د مادي قدرت ځرګندوی (مظهر) دی او هغه هم د شلمې پيړۍ بې پايه قدرت او انسان چې د دغه ټولو نيکواخلاقو ځرګندوی دی هغه هم تر دغې انديشې چې دا ډول د پورتني عالم ځلا او بريښيدنه ده يواځې يو ګام دی چې په اسانۍ سره يې پورته کولای شو. له ټولنې پرته د انسان څخه خبرې کول چټي خبره ده او په ټولنه کې په مطلق ډول د انسان خبره د هغه ټولنيز وضعيت او موقعيت ته له کتو پرته ناسمه ده. مارکسيزم حق لري چې ټولنه په طبقاتو او طبقاتي قشرونو ويشي. څه چې نن ورځ تر سترګو کېږي. مطلق انسان د هغه خيالبافانه خصوصياتو انسان ندی، طبقاتې انسان دی، هغه انسان چې د طبقاتي تړاؤ له مخې يا يې قدرت، علم او تخنيک په لاس کې نيولی په ټولنې او طبيعت حکم چلوي او يا ضعيف او بی وسې دی چې د طبيعت او د نړۍ د قدرتمندو انسانانو تر لاس لاندې مقهور او ربړيدلې انسان دی.

البته د بشر په تاریخ کې جلا جلا پړاونه وجود لري چې په هغه کې انسانان (ټول انسـانان) تر هغه ځایه چې قدرت یې درلود یوځای د خپلو اړتیاو د رفع کولـو لپـاره د طبیعت د ځواک اېـل (مهار) کولو په لټه کې وو. پرته له شـک څخه راتلونکي کې هم داسې پړاوو راتلونکې دی چې په هغه کې انسانان (ټول انسـانان)، طبقاتي تضاد څخه ژغورل شـوي، هغه عجیبه قدرت چې نوم یې علم دی د ټولنې او طبیعت د وړانده ځواک په وړاندې د بریا لپاره په کار اچوي. خو د نن ورځې په ټولنه کې نشو کولی د طبقاتي تړاوو تر شا د انسان د پیاوړي قـدرت او نیکـو اخلاقو څخه د هغه طبقاتي خصلت ته په نه کتو سـره خبرې وکړو. که واقعاً انسان غواړو ـــانسان د بني بشر په مانا صرفنظر له جنس، نژاد او ملیت څخه ــ چې هم یې مادي قدرت ورځ تر بلې مخ په زیاتیدو دی او هم د نیکـو او غوره اخلاقـو خاوند، بله چاره نلري باید د ټولنې د موجوده وضعې د نسـکورولو لپـاره، د یو موټـې جنایتکارانو او دیو صفتانو له لاسـه د مادي قدرت ایسـتلو په خاطر، کارګرانو او زیارکښـانو ته یعنې هغه محروم طبقات چې زبېښـاک، نیواک او ناتارۍ سره د دښمني څرګندوی دي لاس په کار شي د ټولنـې چـارې هغوی ته وسـپاري. دغه مهم د «نفس پـه تزکیه»، د خدای په غولـي او چوپړ کې پـه عبادتونو او په دې ډول نورو هلوځلـو بریالیتوب ته نه رسـېږي. په ایران کې اسـلامي حکومت کوښـښ وکړ چې د خدای او د هغه د پیغامبـر حکمونه پلئ کړي، خو یو له ډېرو فاسـدو، جنایتـکارو، ویجاړوونکو او.... حکمتونو څخه منځ ته راغی چې د بشر په تاریخ کې لیدل شوی نه وو. د نوي ټولنې جوړولو لپاره، هغه ټولنه چې په هغې کې انسـان په خپل برخه لیک حاکم وي، د بشـپړې آزادي ــ د طبیعت او ټولنې له چغ څخه آزاد وي د ترقي او مادي او معنوي تعالي لار ځانته خلاصه کړي ناچار دی په هغه لار روان شي

چـې مارکسـيزم يې په ګوته کوي، هغه لار چـې د طبيعت او ټولنې د قوانينو په بنسـټ جوړه شـوې وي، هغه لار چې زموږ د دوران په يواځنۍ انقلابي طبقې متکي وي، کارګره طبقه، استثمارګران او ستمګران يې غواړي که نه يې غواړي خوښـيږي يې او که نه يې خوښـيږي د ټولنې راتلونکې طبقه ده، جوړوونکې طبقـه ده، هغـه طبقه ده چې د هغوی د پياوړو لاسـونو پرتـه د دې ډول ټولنې جوړښت ناشونی دی. له طبيعي او ټولنيزو قيوداتو څخه د بشريت د خلاصون يواځنۍ لار کمونيزم دی. کمونيستانپه ټينګ ايمان او صداقت په دېلار درومي او د هغې په وروسـتنۍ پايلې بشـپړ باور لري. د کمونيسـتانو د الهام سرچينه، د هغوی د اخلاقي ارزښـتونو سـر چينـه او په همدی ايده آل پـوره باور لري. ډاکټر شريعتي په دې ګمان دی چې کمونيستانو اخلاقي ارزښتونه مذهب څخه اخيسـتي دي. څومـره غټه تېروتنه! مذهب اخلاقي ارزښـتونه نه پنځوي. هغه ځای کې چې زور او زر منځ ته راځي خدای، پيغامبر او د الهي احکام هيريږي. په ځانګړې توګه کله چې د «شـفاعت» او «اسـتيجاري عبادتونو» او د داشـان نورو درغليو پښه په منځ کې وي. جګړه مار او زورور شيعه ګان کولی شي ټول صغيره او کبيره ګناهونه تر سـره کړي، ښـايي هيله يا همد پروردګار په بخښنه باور ولري چې يتبدل السيوات بالحسنات! دا د ټولو په وړاندی د سترګو ليدلی واقعيت دی. آيا اخلاقي ارزښـتونه همدا دي چې مذهب يې خپلو لارويانو ته ډالۍ کويوايي به کمونيستانو له هغوی ځينې اخيستي دي؟

سـربېره پـردې د مومن مسـلمان او کمونيسـتانو تـر منځ په مبـارزه کې د ستمګرۍ او فساد په وړاندې چې حتی د ځان په قيمت يې تماتيږي يو ماهوي توپيـر وجـود لري او دغه توپير په خپله يو ارزښـت دی چې د مذهب لارويان هغه نلري. مسلمان مبارز«طاغوت» سره مبارزه نيک کار ګڼي او په هغې لاس

پورې کوي ځکه معتقد دی چې په نړۍ کې حساب او کتاب، مکافات او بدله شته. څوک چې په دنیا کې ثواب وګټي په ورځ د قیامت کې بدله ورکول کېږي اوجنت ته ځي د انبیاوو او اولیاوو په څنک کې کښېني، برعکس د ګناهکارانو ځای دوزخ دی شاید د اسفل السافلین کندی. هغه په مشبع فصل کې د دوزخ د عذابونو په هکله خبرې کوي چې انسان په وحشت کې اچوي، مشبع فصل د جنت د حورو او غلمانو په هکله آسماني کتاب کې لیکي، هغه پوهیږي چې د جنت دروازې د شهیدانو په مخ پرانیستي وي. د«الواقعه» په سوره کې د هغه ستاینه شویده. په مبارزه کې د موومن مسلمان سرښیندنه د حساب او کتاب لپاره ده. د بدلی لپاره ده چې تر مرګ وروسته یې تر لاسه کوي، خو کمونیست نه په آخرت عقیده لري او نه په قیامت، نه په جنت او نه د هغه په نعمتونو او نه د هغه په جسمي مزوچړچو. کمونیست په خپلې مبارزی کې هغه پریمانه محرومیتونه چې په دې مبارزه کې یې زغم کوي، یواځې د یو شي په هکله فکر کوي او هغه زیارکښ انسان دی، تحقیر شوی تر ستم او استثمار لاندې انسان. کمونیست یواځې د دې لپاره مبارزه کوي تر څو دغه انسان له اوسنۍ بدبختي او غریبي څخه خلاص کړي، آزاد، ځلانده او سوکاله راتلونکې ولري. کمونیست د دې کار سرته رسولو لپاره له چا څخه تمه نلري د مکافاتو په انتظار کې ندی. هغه مبارزه خپله دنده جوړوي، د زیارکښو پرګنو د بې‌برخې‌توب په وړاندی مبارزه. آیا دا یو ارزښت ندی، داسې ارزښت چې تر ټولو ارزښتونو اوچت دی. آیا داسې ارزښت ندی چې نور اخلاقي ارزښتونه له هغه څخه راوټوکېږي؟

# آیا تضاد په مارکسیزم کې دی،
# که په توحیدي ایډیالوژۍ کې؟

ډاکټر شـریعتي چې پرله پسـې مارکسیزم کې د تضاد پیداکولو هڅه کې دی ګمان کوي چې هغه یې د یو با ارزښـته کمونیسـت له خولې ترلاسـه کړی په بریالیتوب سره د ځان ښوونې اوتکبر له مخې یې څو ځله تکرار کړی ده:

«زه دغه مسئله په هر ځای کې مطرح کوم دغه مارکسیستان چې کم لوستي دي او هم زیات معلومات نلري خیال کوي چې ما دغه مسـئله مطرح کړی ده او ځـواب هـم په همدې ډول ماته راکوي پداسـې حال کـې چې تضاد هغوی خپلـه پیژندلی ده. «ژرژپولیسـتر» په دې ډول حل کـړی ده (وګورئ څومره د خندا وړ او شـرموونکې دی! داسې معلومیږی چې تضاد یې حس کړی ده...) وایی: «موږ په فلسـفه کې ماتریالیسـتان یو خو په اخلاقو کې ایده آلیسـت». («مذهب، تکامل او نړی‌لید»۲۴ مخ)

که د مارکسیستانو سواد کم دی! خپله ډاکټر شریعتي چې سواد یې زیاد دی باید دغه مسـئله یی په خپله حل کړی وای. روښـانه ده هرکله چې ژرژپولیستر مارکسیسـتي فلسفه ښـه پیژنې هیڅکله دا خبره د هغه له خولې بیرون نه وځي چې کمونیسـتان په فلسـفه کې ماتریالیزم څخه پیروي کـوي او په اخلاقو کې ایده‌آلیـزم څخـه. که چیرې مارکسـیزم څخه د هغه ذهن کرکـې ړوند کړی نه وي د مفاهیمو او کلماتو په مانا کې به یی غور کړی وو په ژرژپولیسـتر به یی بیځایه نه دانګل او خپله بی سـوادي به یی د مارکسیزم په هکله په تهولیزه توګه مارکسیستي فلسفي مسایلو کې د کمونیستانو او ژرژپولیستر په غاړه نه اچوله.

ماتریالیزم ــ چې د هغی لارویان «ماتریالیسـت» نومول کیږي ــ یو فلسفي

مکتب دی چې ماده تر شعور مقدم او شعور د انسان په مغز کې د خارجي واقعیت انعکاس بولي. ایده آلیزم ــ چې د هغې لارویان «ایده آلیست» ویل کېږي ــ هغه مکتب دی چې د هغه له مخې شعور تر مادی مقدم او ماده د ایده‌ای جوړجاړی دی. که موضوع ته د فلسفي لید لوري څخه وکتل شي «ماتریالیست» او «ایدآلیست» یوبل سره په تضاد کې دي. نشو کولی په عین وخت کې هم ماتریالیست اوسو او هم ایدآلیست، هم ماده په شعور مقدم وبولو او هم شعور په مادی. ډاکټر شریعتي د ایدآلیست کلمه په فلسفي مانا اخیستی او په خپل خیال یی د کمونیستانو لپاره تضاد تراشلی ده. اما په فرانسوي ژبه کې د «ایدآلیست» واژه یوازې د ایدآلیزم لارویانو ته نه اطلاق کېږي بلکې د ایده آل لرلو په مانا هم ده. ایدآلیست هغه چاته هم ویل کېږي چې د ایده آل لرونکې دی او ژرژپولیستر د «ایدآلیست» واژه په خپلې وینا کې په همدی مانا کارولی ده. کمونیستان هم د ایده آل لرونکي دي چې د هغوی د فلسفي مکتب او مارکسیست فلسفی زیږنده ده او دغه ایده آل سوسیالیستي او کمونیستي ټولنه ده، هغه ټولنه چې بنسټونه یی په پانګوالی ټولنې کې ایښودل شوي او د کمونیستانو مبارزه د هغې د تحقق لپاره ده.

ډاکټر شریعتي نه یوازې د تضاد په موندلو کې بلکې د انسان د اخلاقي ارزښتونو په صفاتو کې هم چې د خپل خبرلوځي قلم په ژبه څه لیکلی هغه هم د تخیلاتو په عالم کې دي. هغه هم انسان د ټولنې تر شا وینې او هم اخلاقي ارزښتونه تلپاتی او خدایی ګڼي، په پایله کې د هغه اخلاقي ارزښتونو او د انسانانو د اعمالو د واقعیت تر منځ ژور واټن منځ ته راځي چې نه دوی او نه بل څوک کولی شي دغه واټن ډک کړي. کمونیستان د بی پایه انساني ایده آل په درلودلو، خپل فلسفي مکتب سره په تضاد کې نه لویږي بلکې

ډاکټر شــریعتي خپلو جاویدانه ارزښتونوســره چې د ټولنې اوســنی واقعیت په خپل قلم لیکي پرته له دی چې متوجه شــي په تضاد کې ډوبیږي. واقعاً انســان حیرانیږي چې ډاکټر شریعتي څه ډول په دومره لویه پیمانه متضاد مطالب سره پیونــد کــوي او فکر نه کوي چې لږ تر لږه خپــل ځانته په خپله ځواب ورکړي. هغه په یو ځای کې په خاص غرور او شمشــمه لیکي چې:«دغه ټول کرامتونه، ښکلاوې، سپیڅلتیاوی، ارزښتونه، ښیګڼې او معجزې... له کوم ځایه په انسان کې ټوکېدل شــویدي؟». او په دې ډول پرته له دې چې د انسان شخصیت نظر کې ونیول شــي هغه د لوړو صفاتو او اخلاقي ارزښــتونو مظهر او ښکارندوی دی چې د الهی منبع څخه په هغه کې تویول شــویدی. خو همدغه انســان څو پاڼې وروســته د کچه اخلاقو مظهر، د پســتي، ســپیتانه او ناکجاتوب مظهر ته راوځي: «د دی تناقض برعکس (منظور د ژرژپولیستر «تضاد» دی) چې د ډېرو سنتي مذهبي څیرو او د رسمي ارتجاعي روحانیونو په کړنو او چلند کې لیدل کیږي، هغه کسان چې په «فلسفه او نړۍلید کې ایدآلیست دی عمل او اخلاقو کې ماتریالیست»»:

«هره ورځ لکه د دیوانو په شــان د مردارې فردي زندګي په ســر یو د بل په مخ منګولې راکاږي او هره شپه د «مردارې دنیا» له بیزاري او بدګڼلو څخه چې دنیا پرســتانو خدای او ســبا ورځله یاده کښلی ســبا کوي! او دغې طبقې پورې تړل شوی روحانیت هم د منبر او محراب ترڅنګ «دین» په «دنیا» پلوري اوله احتکار، سودکول، د ځمکې غصبول، بازاری ډوله دوکې، جادویی لوبې، رواج شــوې پانګواله مداري‌توب، سفته‌بازي او واسطه‌کاري، سهام پلورل، لاس په لاس کول او کمیشــن کاري او په زرګونو نوری کرغیړنې انګلېٔ لاســوهنې چې د تولیــد کوونکو او مصرف کوونکو وینې څکي رنج نه ګالي او ګنج نه ورکوي

یواځې دوی دي چې پیسې یې د پانګوالو په روسپيخانو کې بچې زیږوي، ابلیسانه چالاکي، غلچکې چمونه چې جیبونه وهي، زور سره یولاس کېدل چې زر ورله وزیږوي او د خپلوانو د لوټولو لپاره د پردي استعمار دلالي کول او دومره مال او پانګه چې په دې ډول یې دعمر په اوږدو کې راټوله کړې او د امام په چانړ ځای کې یې د سهم او برخې په اخیستو سره پاکوي او د رسید په ورکولو سره د شرعي مالکیت د مالیاتو په نوم رقم اخلي، د سرمایه دار او زمین دار له درآمد څخه د شرعې په نوم ثلث اخلي او د خدای له خوا امضاء کوي او د خپل کار طریقه د مسیح یا د خدای په نوم توجیه کوي.»

(«د انسان فلسفه»، دریم دفتر، ۱۳۴ ــ ۱۳۵ مخ)

بیا څو پاڼې وروسته په دې ډول ادامه ورکوي:

«د خدای پالونکو په څیر چې د ایمان په اصالت باورمند دي او پرته له خدای او خدایي صفاتو او هغه څه چې د خدای په مخ کې دي او د خدای په لار حرکت کوي، هر څه بی مانا بی ارزښته، پست او پلید شمیري، اقتصاد دنیا ګڼي، خوندونه او مزې ګناه، ثروت تباهي، سود تاوان، مادي هڅې خسران، نړۍ دمه ځای (رباط)، عمر د صالح عمل فرصت، زندګي د خدایې اخلاقي ارزښتونو د ازموینې ډګر، د لوړو وجودي اخلاقو تزکیه د مادي زندګي او د غریزي لذت پاللو پریښوول، د اقتصادي ګټې لټون، مصرف پرستي، تجمل، ځان ښودنه، د فردي، نژادي او طبقاتي برتري پالنه، د استبداد، استکبار، استثمار او د خدای له خلقو څخه د ځان ګوښه کولو نفې... او حتی دکار نه کولو په صورت کې له سرمایې څخه ګټه تر لاسه کول ــ خدای سره جګړه کول ګڼي... په هر دم او قدم کې ځان د ژوندي، آګاه او مطلق حاکم خدای په وړاندی مسئول ګڼي او معتقد دي چې هر عمل یې په «عملنامه» کې لیکل

کېږي او باید ځواب یې ووایي او د ژوند پایله یې مرګ او نیستي نده بلکې د خدایــی عدل او میزان په وړاندی حاضریدل دي... ســره له دې ټولو یو مادي چــې نه پــه خدای باور لري او نه پــه قیامت، نه په دې عالم کې په حســاب او کتاب عقیده لري او نه د انسان لپاره په رسالت او مسوولیت،بی پروا او لنډغر دی، بی درده او بی مسوولیته دی، تر مرۍ پوری په دنیا کې ډوب دي او پرته د پیسو له غږ څخه په دې ګرځنده ګنبدې کې د بل شي غږ خوند نه ورکوي، ژوند یې په دري پښو ولاړ دی مغرور دی، ګېډه یې ډکه ده او له نامه کښته تر غوټۍ بیقراره دی، د موسی په دین دی، د فرعون په شان په زور ډډه لګوي، د قارون په شان په خزانه پروت دی بربنډ ته تار ورکوي تر څو د فرعون جادوګره ترینه خولۍ جوړه کړي او بیایی د خدای په ســر کېږدي او د شــربت په نیت شراب څکي او...» (۱۳۸ ــ ۱۳۹ مخ)

آخر کرامت، ښکلا او ارزښتونه چېرې او دغه پستي، کچه‌توب او سپیتانه چېرې! سړیتوب دا دی که هغه!

ښــکاره ده چې سود جویې او زورګویې خدای او مذهب نه پیژني، اخلاقي موازینــو او اخلاقــي اصولو ته اهمیت نه ورکــوي، د زر او زور لپاره اخلاقیات هغه اصول دی چې زور باید دوامدار پاتی وي او زر باید همیشه بچي وزیږوي، ســودجویې او قدرت په خپله د ناوړه اخلاقو ســرچینه ده، د مذهب اصول او اخلاقي موازین، د دوزخ او جنت د مکافاتو او مجازاتو په وړاندی کوم خنډ نه اچوي. ســود خواره او زورور د نورو انســانانو د لاس ګټې په راڅکلو کې دي، په غلا او بډې اخیســتلو کې بی قراره دي، ثروت ټولوي او په پیســو او زور هر څه د ځان لپاره تر ولکې لاندې نیســي. د هغه په نظر اخلاقي ارزښتونه باید دا ډول وي چې د هغه وضع او ثروت وساتي او توجیه یی کړي. خو آیا زیارکښه

پرګنې چې د لاس ګټې يې غلا کېږي، ناموسونه يې لوټېږي، خپل ژوند او د کورنۍ ژوند يې د نورو د هوا او هوس قرباني کېږي يا د هغو مصيبتونو لاس لوبه وګرځي چې سودجويي او قدرت غوښتنه زېږوي، کولی شي هغه اخلاقي ارزښتونه ومني چې په کار يې واچوي؟

آيا کارګره طبقه کولی شي بورژوازي اخلاقي ارزښتونه لکه «برابري» او «وروروري»، «آزادي» او «عدالت» او داسې نور چې د استثماري نظام د ټينګولو او خونديتوب لپاره مرسته رسوي په ځان ومني؟ د دی پوښتنې ځواب هيڅ هغه کس ته چې د زيارکښه انسان په فکر کې وي مثبت ندی. هر څوک پوهيږي چې په بورژوازي نظام کې برابري او وروروري پرته له دوکې بل څه ندي. يو پانګوال او يو کارګر نه برابر دي او نه ورونه عدالت د خلکو په پرګنو ستم کولو پرته بل څه ندي، آزادي، يوه پوچه کلمه ده، آزادي د زورواکو او بډآيانو لپاره ده، د زبيښاک، ستمګري او زرټولونې آزادي ده او له بورژوايي څخه اطاعت کول استثمار ته ځان سپارل دي، رښتيا ويل د انقلابي مبارزينو په ګوته کول دي او داسې نور. همدا رنګه اخلاقي ارزښتونه د يو مريي او مريي لرونکي، د يو فيودال او يو رعيت لپاره نشي کېدای چې يو ډول وي. که په ټوليزه توګه خبرې وکړو، هغه ټولنه چې په نه پخلا کېدونکو طبقاتو ويشل شوی وي هيڅکله په هغې کې داسې واحد اخلاقي اصول نشي پيدا کېدای چې د ټولنې ټولو غړو ته يو شان وي او هغه ټول يو ډول موظف او مسئول وپيژني. آيا ورځنۍ تجربه او پراتيک د مارکسيست ماترياليزم د حکم صحت نه په ډاګه کوي چې په طبقاتي ټولنه کې اخلاقيات ناچاره طبقاتي خصلت لري او هيڅ اخلاقي اصول تلپاتی او لا بدلون ندي؟

د بورژوايي اخلاقي اصولو له مخې د زيارکښو خلکو په لاس د خصوصي

مالکيت له لاسه د توليدي وسائلو اخيستل غير اخلاقي دي. خو د کارګرې طبقې له نظره د بورژوازي له منګلو د توليدي وسائلو اخيستل او زيارکښانو ته دهغو سپارل فوق العاده ارزښت دی ځکه چې له همدې لارې کولی شو د زيارکښو پرګنو زبيښاک ته چې هغوی يې په کښته او سپکې اجتماعي موضع کې اچولي د پای ټکي کېږدو. په ټولې نړۍ کې د کارګری طبقی مبارزه د استثمار د له منځه وړلو لپاره ډېر ستر ارزښت دی کوم چې په تصور کې ځايږي، ځکه د استثمار له منځه وړل، انساني او اخلاقي واقعي ارزښتونه دي، هغه ارزښتونه چې انسان (ټولو انسانانو) څخه واقعي انسان جوړوي واک او ځواک ورکوي. يواځې سوسياليستي او کمونيستي نظام دی چې ټول انسانان له هر جنس، نژاد او مليت څخه وي له زبيښاک، طبقاتي او ملی ستم څخه ژغوري. د طبيعت او ټولنې له بند څخه د هغوی آزادول، ټولنه د نيک بختي او کمال په لور مخ په وړاندی شړي، يواځې په همدې نظام کې وروروليې، برابري، عدالت، آزادي، د انسان لوړ مقام او داسې نور خپله واقعي مانا تر لاسه کوي، يواځې په همدی نظام کې ده چې کار ـ دغه پانګه او تلپاتې ارزښت ـ خپل لوړ او وياړلی مقام تر لاسه کوي. يواځې په همدی نظام کې ده چې بيا د «پليدو او چټلو اړيکو» اغيزې کومې چې ډاکټر شريعتي يې يادونه کوي په ځای نه پاتی کېږي. کمونيستان او کارګران د همدې ايده آل په خاطر مبارزه کوي، د هغوی اخلاقي ارزښت، طبقاتي پيوستون، همکاري، نه ستومانه کار او فعاليت، پاريدل، فداکاري، زړورتيا، جارونه او سرښيندنه، د کړاونو او محروميتونو زغمل، په مبارزه کې ټينګار او.... دا ټول له دغه ايده آل څخه سرچينه اخلي. آيا بيا هم د ډاکټر شريعتي په شان ادعا وکړو چې د کمونيستانو اخلاقي ارزښتونه د هغوی ماترياليستي نړۍ‌ليد څخه نه ټوکيږي؟ آيا د ډاکټر شريعتي دغه ادعا پوچه او

چټې نده چې کمونیستانو خپل اخلاقي ارزښتونه مذهب څخه اخیستي، هغه مذهب چې د لاریانو د اخلاقي رزایلو په هکله یې ډېرې پاڼې توري کړی دي؟ ښایی دعلمي سوسیالیزم تئوري دماتریالیزم احاطې څخه بهر وي؟

نه، داسې نده، دعلمي سوسیالیزم تئوري د اوسنې ټولنې یعنې پانګوالې نظام مادي واقعیت څخه راپورته کېږي او د دې نظام واقعي اوښتون یې سوسیالیستي نظام ته اړین کړیدی. دغه تیریدل او اوښتون د ټولنې د تکاملي قوانینو سره په تضاد او ټکر کې نده له هغو سره په بشپړ انطباق کې ده. سوسیالیستي ټولنې ته د اوښتون بنسټونه ــ هغه ټولنه چې هغې کې په تولیدي وسایلو خصوصي مالکیت، دغه د استثمار، استعمار او د ټولو انساني ارزښتونو د انحطاط سرچینه چې د اوسني نړیوالې ټولنې یعنې پانګوالی نظام په لاس کې ده ــد زیارکښه پرګنو په مالکیت کې پریوځي. دغه بنسټونه کوم دي؟

لمړی: دا چې سرمایه داري د بشري ټولنې د تاریخ یو پړاو دی، تاریخي پړاو په دې مانا هغه ډول چې سرمایه داري نظام پیل لري له ناچاره پای هم لري او ناچاره ده چې خپل ځای یو بل پر مخ تللي تکامل یافته نظام ته ورکړي او وربه یی کړئ.

دویم:دا چې په سرمایه داري نظام کې د ننه تضادونه وجود لري چې هغه ته ټاکلی تکاملي لوری ورکوي او د دې تکامل پای پرته سوسیالیزم څخه بل څه نشي کېدای او

بالاخره دا چې په سرمایه داري نظام کې کارګره طبقه پیداکېږي چې مادي او معنوي وضع یې له زغم څخه وتلې، ناچاره دی د بورژوازی په وړاندې مبارزه پیل کړي، زبیښاک او د سرمایه داري ټولو نیمګړتیاو څخه د خلاصون لپاره ځانته سیاسي موخې و ټاکي او سازمان جوړوی. همدا کار هغوی ته

امکان برابروي چې له نورو استثمار شوو سره يو ځاى د سوسياليستي انقلاب لــه لارې پــه توليدي وســايلو خصوصي مالکيت ړنګ او پــر ځاى يى عمومي مالکيت کښــينوي او په خپله د سياسي قدرتلاس ته راوړلو سره د ټولنې چارې په لاس کې ونيسئ او ټولنه د يوې بې طبقې ټولنې، د کمونيزم لوري ته مخ په وړاندى يوسي.

آيا دغه درې ګوني بنســټونه د پانګوالى ټولنې د تحول عيني واقعيت ندى؟ آيا د پانګوالى تاريخي واقعيت د ترديد ځاى دى؟ مګر شــونې ده چې پانګواله تل پاتې پاتې شي او نوى نظام د هغه ځاى ونه نيسي؟ آيا د کارګرى طبقې شتون او بورژوازي ســره د هغى مبارزه په پانګوالى ټولنى کې نه تر ســترګو کيږي؟ آيا داســې نده چې کارګره طبقه له اســتثمار څخه د خپل خلاصــون لپاره توليدي وســايل چې د خصوصي مالکيت کرغيړنه ثمره ده دغه ډول مالکيت ته د پاى ورکولو پرته بله چاره نلري؟

په دې ډول سوسياليزم او کمونيزم د خوب او خيال ټولنه نده چې د سراب لپاره مبارزه وګڼل شــي، داســې يو نظام دى چې د کارګرې طبقې او دهغوى د متحدينــود مبارزې له لارې ضرورتاً منځ ته راځي. علمي سوســياليزم لکه چې ليدل کيږي د مارکسيستي فلسفې د پونې (تراوش) نتيجه ده. مارکس يواځې د پانګوالې ټولنې په تشريح او د هغې د تکامل لپاره د قوانينو په پيداکولو قناعت نکوي، بلکې د دې ټولنې د تحول مادي بنسټونه په ګوته کوي. مارکس په ګوته کوي چې څرنګه کولى شــو انســان ــ ټول انســانان ــ د پانګوال نظام او دهغه شومې او پليدې کړى چې د ټولو انسانانو په غاړه کښيوتي ځانونه خلاص کړي. په ډاګه کوي چې څرنګه خلاصون د سرسختې پرله پسې او نه پخلا کېدونکې مبارزې له لارى شونې ده. مارکسيزم تاسو ته وايى چې بريالیتوب ته د رسيدلو

لاره سـیخه او اواره لار نده، د بورژوازي په وړاندی د پرولتاریا طبقاتي جګړه لکه د هری جګړې په شـان د بریا او ماتی، د پرمختک او شا تګ متضمن دی خو وروستۍ بریا قطعي او حتمي ده د بریا حتمیوالی په خپله د ټولنې او د هغی د تکامل له قوانینو څخه راتوکیږي. کمونیسـت چې په علمي سوسـیالیزم باور لـري خپل ټول شـیان په دې لار کې جاروي،... جـاروي یی یواځې د محروم انسان لپاره، د انساني سوسیالیزم ارزښتونو په خاطر، پرته له دی چې چا څخه د بدلـې او مکافاتـو تمه ولري. مسـلمان نیک کارونه د اجر پـه بدله کې که څه هم په «هغی دنیا» کې ورکول کیږي سرته رسوي. د مومن مسلمان لپاره اجر د هغه د کړنو او حتی د شهادت انګیزه ده. ډاکټر شریعتي حیران پاتی دی چې یو کس څرنګه پرته له بدلې او مکافاتو پداسې سترو کارونو لاس پورې کوي چې شـونې ده د هغه په مرګ پای ته ورسیږي. له هغه او دهغه لارویان (همکېش) څخه له دې پرته بله تمه نشته. خو کمونیست ځانپاله او ځان غوښتونکې ندی. هغه د دې لپاره نه جنګیږی چې ګټه یی یواځې هغه ته ورسـیږي یا چا څخه د هغې په بدله اجرت تر لاسـه کړي. هغه د زیارکښ انسان د آزادي او نېکمرغۍ لپـاره مبـارزه کـوي او بېره نلري چې موخې ته تر رسـیدو د مخـه مرګ د هغه ګریوان ونیسـی یا خپل سـر په دې لار کې کښیږدي. په «هغې دنیا» کې د ګټې او اوجـرت تمه درلودل د بورژوازي او کوچنۍ بورژوازي خصلت دی. واقعي کمونیسـت له دې خصلت څخه پاک دی. نړیوال کمونیسـتي غورځنګ ته له پیل څخه تر نن پورې که نظر واچوو، وینو چې ډېرو ارزښـتناکه انسـانان حتی یوه ګړۍ هم مبارزې څخه لاس په سر شوی ندی، حماسې یی جوړې کړي او د بریالیتوب شاهد یی هم په غیږ کې ندی نیولی.

خو هغه کس چې د ځان په فکر او د ځانپالنې او آندیویدوالیزم په تورو ختو

کې ډوب شـوی وي نشي کولی پداسـې کار لاس پوری کړي ــ که څه هم بې ضرره او بې خطره وي ــ تر څو یی هغه ته ګټه ونه رسیږي. هر څه، هر عمل او هـر ګام د خپـل ځان په معیـار ارزوي، که چېرې دغـه ګام د هغه د ګټې او فایدې متضمن نه وي هغه ته لاس نه وړاندې کوي. هغه ته توپیر نلري چې نور انسانان په څه موقعیت او وضع کې ځای لري. هغه د نورو غمونو او دردونو ته توجه نکوي یواځې خپل ځان ویني او بس. یواځې خپل ځان غواړي او بس په همدې ډول کله چې په مبارزه کې د خپلې ګټې د پایلې احتمال ونه ویني په شا ځي. دغه کس نه مبارز دی او نه د دې وړتیا لري چې مبارزې ته دوام ورکړي. هغه همیشه د خپلو ګټو خوندي کولو لپاره اجتماعي محیط سره ځان همرنګ کـوي. نن په اسـلامي جمهوري کې په اسـلام باندی د تظاهـر له مخې بریرې پریږدي او ځانته د لوړو مقامونو په لټه دي او په میلیونو سـرمایه راټولوي، بله ورځ د شاهنشاهي رژیم ریښتینی خدمتګار جوړیږي د بوت په بڼه بیا هم د مال، مقام او قدرت په لټه کې دی.

مارکسـیزم کمونیسـتانو ته زده کـوي چې هیڅکله د ځـان پالنی په وړاندې مبـارزې څخه مخ ونه ګرځوئ، نه یواځې په خپل منځ کې ځای ورنکړي بلکې کوښښ وکړي چې د نورو په منځ کې د دغي مبارزې ډیوې روښانه کړي.

مارکسـیزم زده کوي چې هیڅ مبارزه او هیڅ کوښـښ د آرمان په لار کې نه ضایع کیږي. د هر کمونیسـت مبارزه د یوې ذرې په شـان ده، چې په وروستي بریالیتـوب کې خپل ځای لري او د بریالیتوب سـمندر له همدغه کوچنیو ذرو او څاڅکو څخه جوړیږي. کمونیسـتي مبارزه د قهرمانانو کار ندی د کارګرانو او بزګرانو د محرومو او تش لاسو پرګنو کار دی او هر مبارز د هغه په بریا کې خپله ونډه تر سـره کوي، که څه هم ناپیژانده بې نومه او بې نښـانه باقي پاتې

شي.

مارکسیزم زده کوي چې مبارزه همیشه بریالیتوب سره ملګرې نه وي. پداسې نړۍ کې چې د مارکسیزم په وړاندې دومره ستر ځواک ولاړ وي، د آسان بریالیتوب تمه، او په هر حال د مبارزې د بریالیتوب تمه درلودل چټې او بې ګټې ده. خو مارکسیزم په عین وخت کې یو شی را زده کوي او هغه دا چې مبارزینو ته ژوند او قوت بخښي او وروستی بریا یې هرومرو ګڼې دا د سوسیالیستي او کمونیستي ټولنې د ټپکاو اړتیا ده، د انسانانو د ځلانده راتلونکې زیری ده. کمونیست چې د خپل ارمان په لار کې مبارزه کوي د دې حقیقت ښکارندویی کوي. بیځایه نده هغه انسانان چې د خپل آرمان په لار کې ژوند له لاسه ورکوي د لیست په سر کې یې کمونیستان ځای لري. دا یو حقیقت دی چې په هیڅ تحریف او سفسطې پټیدلی نشي.

## بیا هم په مارکسیزم کې دوه مخي!

ډاکټر شریعتي د مارکسیزم دښمنانو د اپلتو په تکرارولو سره مارکس څخه دوه ګونې څیره جوړوي:

«فیلسوف مارکس، ګویا انساني ارزښتونه د ماتریالیستي ډیالکټیک تر پښو لاندې قرباني کوي، انقلابي او لارښود مارکس چې دغه ارزښتونه یې په خپل لوړ مقام کې کښېنولي دي. دغه دوګانګي «ډېره ناوړه او کمزورې وضع ده چې ممکنه ده یوه ایدئولوژي هغې سره مخامخ شي» د ډاکټر شریعتي د وینا له مخې مارکس وایی چې: «څه شیان باید وټاکې او سربیره پر دې د هغې په وړاندې باید مسئولیت ولرې او د مسئولیت تر شا د دغو ټاکل شوو ایده ګانو د تحقق لپاره هڅه، فداکاري او ایثار ته اړتیا شته». «خو کله چې ماتریالیزم ډیالکټیک څخه خبرې کوې... انسان په هماغه بڼه بې بنسټه، جلا شوی او «بې

ارزښــته» تحلیلوي لکه د نورو ماتریالیستانو په ډول» («د انسان فلسفه»، دریم دفتر، ۷۴ــــ۷۵مخ)

ډاکټر شــریعتي داســې انګیري چې ګواکې مارکســیزم هم د اســلام په شان «بایــد او نــه باید» څخه خبرې کــوي. هغه څه چې مارکس پــه لاس راکړي د ټولنــې او طبیعت د تکامــل عام قوانین دي، په ځانګړې توګه د پانګوالې ټولنې د حرکــت قوانیــن دي کــوم چې سوســیالیزم او کمونیزم ته د هغه اوښــتون په ګوته کوي. ښــکاره منل شــویده چې د دې قوانینو عمل د انسانانو د فعالیت له لارې څرګندیږي له دې پرته ښــونې نده. نو ځکه د انسانانو فعالیتد سوسیالیزم د تحقق لپاره اړین دی. هغه وروســته د دې قوانینو له کشــف څخه په خپله د انقلابــي عمــل په لار کې ګام پورته کړ او نور یې هــم په ځانګړي توګه د نړۍ کارګــره طبقه دې لارې ته راوبلله. مارکــس هیڅکله نه وایی چې باید دغه لار غوره کړو هغه ډول چې کپرنیک لمر د مرکزیت په توګه په ګوته کړ (نه مځکه) هغــه ونه ویل چې «باید دغه انتخاب کړئ» او ګالیله چې د مځکې حرکت یی د لمر په چاپیر اثبات ته ورســاوه ویې نه ویل چې «باید دغه انتخاب کړئ» او یا اینشــتین د نســبیت تئوري سره هیڅکله مدعي نشــه چې «باید دغه انتخاب کړئ» برعکس دغه ټول علمي نظریات ډېرو سرســختو مقاومتونو او خندونو ســره مخامخ شــول خو په پای کې ټولو همدا انتخاب کړل او په خپل انتخاب کې حقیقت ســره یوځای شول. مارکس د خپلې تئوري په بیان او عمل د هغه کسانو مقاومت راوپاروه چې دغه حقیقت او عمل یی په خپله ګټه نه لیده. خو کرار کرار د وخت په تیرېدو سره د مارکس تئوري د انقلابیونو په منځ کې خپله لار پرانسته. د «پاریس کمون» د مارکس د تئوري لمړنۍ ثمره وه چې په ناکامي پای ته ورسید. پنځوس کلونه وروسته، دغې تئوري په تزاري روسیه کې تحقق

وموند او بيا په چين او ويتنام کې. د مارکس د تئوري بريالیتوب لپاره همدومره بس ده چې په نژدې تير وخت کې د مځکې د لويې برخې اوسيدونکي د نړۍ تر دريیمې زيات اوسيدونکي ـــ د هغه تر چتر لاندې اوسيدل او په ستر ځواک بدل شول. خو دا ځل هم د زيارکښانو ټولې لاسته راوړنې په اوبو لاهو شوې. له دې ناکامي سره سره چې عظمت يې هيڅ څخه پټ ندی، اوس هم مارکسيزم ژوندی دی او مبارزه يې له سر څخه پيل کړې ده. مارکسيست مبارزين هيڅکله مبارزې څخه نه ستړي کيږي، هر ځل چې ناکامي او ماتې د هغه لاسته راوړنې له منځه يوسي دويم ځل بيا که له صفره هم وي مبارزه پيل کوي، ځکه پوهيږي چې د بشر د نيکبختي لپاره پرته له دې بله لار نشته او په دې هم پوهيږي چې د کار پای بريالیتوب دی. مارکسيست مبارزين د دې مبارزې په وړاندې ځانونه مسئول احساسوي، نه د دې لپاره چې مارکس هغوی ته د مسئوليت «فرمان» ورکړی. د مارکس آرمان، د هر کمونيست آرمان دی. کمونيستان په مارکسيزم ټينګ ايمان لري، هغه په خپله خوښه آزادانه غوره کوي او د هغه په وړاندې ځان مسئول پيژني.

د مارکس «دوګانګي» ـــ فيلسوف مارکس او سياستمدار مارکس ـــ د هغو کسانو چټي انګيرنه ده چې نه مارکس پيژني او نه په مارکسيزم پوهيږي او نه د خپل ټولنيز موقعيت او د خپلې نړۍليد له کبله کولی شي په هغې وپوهيږي. اتفاقاً که دوګانګي وي هغه د ډاکټر شريعتي په نظرياتو کې ده. موږ مخکې وښودل چې په خولۍ ډک اخلاقي ارزښتونه لکه کرامت، سپيڅلتوب، معجزی، فضيلتونه او... چې «په انسان کې تومنه شوي» په واقعيت کې پرته د اخلاقي رزايلو تظاهر څخه بل څه ندي. څرنګه کېدای شي دا ډول لوړ ارزښتونه چې په انسان کې تومنه شوي مګر په واقعيت کې د دی ارزښتونو تجلي تر پښو

لاندې کولو او د ارزښـــتونو ضد بل څه ندي؟ هغه د انســـان «قدسي جوهر» او «مقدسات» چې له هغه ځینی څخیږي له هیپیانو سره چې خواري او ذلت یی ټـول وجود نیولی په هر تباه کوونکــي او تورکار لاس پورې کوي ډېره کوچنۍ مشــترکه وجه نلري. دغه«مقدســات» چې د انســان له «قدســي جوهر» څخه څخیږي او د انســاني ارزښــتونه نوم لري تر هغه څه چې په بورژوازي ټولنه کې تیریږي، دا هغه ټولنه ده چې د ټولو انساني ارزښتونو تباه کوونکې ده، توپیر یی له مځکې تر آسمانه دی. دوګانګي په همدې ځای کې ده نه د مارکس د اخلاقي ارزښتونو په تحلیل کې.

ډاکټــر شــریعتي هم په هغه تضاد کې لاس او پښــې وهي کــوم چې د هغه پخواني ملګري ورسره لاس او ګریوان وو او له حل څخه یی عاجز پاتې شوي دي. مګــر د اخلاقــو د علم ویښ په اتیــک (Ethique) چې د الهی، جاوداني اخلاقــو په اصولو بحث کوي او مورال (Moral) یی د ټولنې اخلاقي موازینو ســره تړاو لري، د دې تضاد ناحل کېدونکې نښــه نده؟ تضاد یوائې په دې کې نده چې د اتیک منجمد او وچ اصول د ارزښــتونو په توګه «په انســان کې تومنه شــویدي دي» موجوده واقعیت سره سم ندي، بلکې اخلاقي ارزښتونه د ټولنې د تکامل په مختلفو پړاونو کې هم یوبل ســره توپیر لري او تر مخه جوړ شــوو اصولو ســره ســمون نلري. د دې دوګانګي علت په همدې ځای کې دی، اتیک د دې پــه ځــای چې خپل اصول او موازین د ټولنې له واقعیت څخه راوباســي د ماوراء طبیعي سرچینې څخه او یا د انسان له «فطرت» څخه تر لاسه کوي.

د مارکسیســت فلســفې دغه دوګانګي لــه منځه یوړه، ځکــه چې د اخلاقي ارزښتونو په تحلیل کې یی واقعیت ته پاملرنه کړی. ډاکټر شریعتي په دې باور دی چې «که انســان نه وي ارزښــتونه هم نشــته» اما کوم انســان؟ انسان، کله

چې دغه انســان له ټولنۍ څخه جلا کړو بیا ورله اخلاق او اخلاقي ارزښــتونه مفهوم نلري. ټولنۍ څخه جلا او منفرد انسان نه کرامت او قداست پیژني او نه ســم کار، عدالت، آزادي او سربښــیندنه. دغه اخلاقي ارزښتونه یوائې په ټولنې کې ارزښــت پیداکوي. آیا د خندا وړ نده د یو منفرد انســان، د بیلګې په توګه چې یوازي او تنها د مریخ په مخ ژوند کوي د ارزښــتونو او اخلاقي موازینو په هکلــه خبرې وکړو؟ هغه څه چې اخلاق نومــول کیږي هغه د قواعدو، اصولو او موازینومجموعه ده چې انسانان یې یوبل سره د خپلو اړیکو یا ټولنې سره په اړیکې کې د یوې مجموعی په توګه له هغی څخه پیروي کوي. انســانان مجبور دي چې د تولید لپاره یا د ژوند د نورو دندو سرته رسولو لپاره ټولنیزې اړیکې مراعــات کړي، د ټولنــې د افرادو په منځ کې متناســب اخلاقي موازین منځ ته راوړي چــې دغــه اخلاقي موازین پــه خپل وار په دې اړیکو اغیــزه کوي، یا به هغه خوندي وساتۍ ــ که چیرې دغه اړیکې د ټولنې د اړتیاوو ځواب ویونکې وي ـــ او یــا به هغو تــه بدلون ورکوي او په بل ډول به یــی جوړوي که چیرې دغه اړیکې زیان رســوونکي وي. اخلاق یوازي په ټولنی او د انســانانو تر منځ په اړیکو کې مفهوم پیداکوي نه په بل ډول. اخلاق انســاني ټولنې ســره منځ ته راغلی او انساني ټولني سره یی بدلون او تکامل پیدا کړی.

د بشــر په لمړنی ټولنه کې چې هلته د تولید وســایل د ټولنې د ټولو کســانو پــه مالکیــت کې وو او تولید هم یوځایې بڼه درلوده د ډلې (ګروه) ټولو غړو یو شــان اخلاقــي قواعد درلــودل چې هغوی یی یو د بل په نســبت او یوبل یی د ګروه په نســبت موظف او مسوول ګڼل. په دې ټولنې کې «زما» او «ستا» څخه روښــانه مفهوم وجود نه درلود، هغه څه چې د انســانانو په شعورکې یی نقش جــوړوه هغــه ګروه او د افرادو تر منځ یووالی وو. د ګروه غړو په اتفاق ســره د

خپل ژوند وسایل یوځای تیارول او په شریکه یې مصرف کول، ټولو شیانو ټولو پوری اړه درلوده، د هر فرد برخه لیک په بشپړه توګه د ګروه برخه لیک پورې، ګډه اقتصاد پورې، د ګروه بریالیتوب او ناکامي پورې تړلی وو. انسانان هیڅکله په دې فکر کې نه لویدل چې د نورو انسانانو په طفیلي بدل شي، ځکه چې اساساً دا ډول امکان وجود نه درلود. د دې ټولنې اخلاقي ارزښتونو د ګروه د غړو ترمنځ په همبستګي، د تولید په خاطر په بشپړې همکاري، د ګروه د یووالی په خوندیتوب او ساتنه کې تظاهر کاوه چې د تولید وضع یې منعکس کوله. د دې ټولنې انسانانو لپاره «کرامت، قداست، فضیلت او معجزې» چې د ابدي او جاوداني ارزښتونو په بڼه معرفي کیږي مفهوم نه درلود. خو کله چې طبقات او خصوصي مالکیت د تولید په وسایلو منځ ته راغی انځور په بشپړه توګه نسکور شو. استثمار او په ټولنې کې د افرادو طفیلي ژوند کول د یو طبیعي امر په بڼه منځ ته راغی. د بردګي دوران ځینې کسانو ته امکانات برابر کړل چې بدني کارونه پریږدي او په فکري کارونو بوخت شي. په دې دوران کې، بردګي او بدرنګه استثمار په هیڅ ډول د ارزښتونو ضد نه تلقي کیږي، برعکس د ارسطو، افلاطون او نورو لویانو په شان بردګي یې لازمي او اړینه شمیرله. په واقعیت کې هم همدا ډول وو، ځکه چې تولید د بردګانو په اوږو بار وو. ارسطو چې په خپله د اتیک بنسټ ایښودونکې دی او انساني فضیلتونه په دوه برخو معنوي فضیلتونه لکه پوهه، عقل، پام کول او فطري فضیلتونه لکه زړورتیا، دوستي، عدالت، نزاکت او داسې نورو ویشي، بردګان نه یوازی د انسانانو په ټولګې کې بلکې د تولید د ابزارو په کتار کې ایښودل او هر ډول فضیلتونه یې له هغوی څخه راشکل. هغوی عدالت، دوستي او نزاکت څخه خبری کوي خو بردګان د دې ارزښتونو وړ نه بولي. دا دي د ارسطو اخلاقي

ارزښــتونه. آیا بردګانو هم د ارســطو په اتیک منلو ســره خپله بردګي منلې وه؟ د بردګي زیږ او ظالمانه زبیښــاک یې ځانته غوره کاوه او د برده لرونکو چلند یې د ځان په هکله د منلو وړ ګاڼه؟ ښــکاره ده چې داســې نده. کله چې ټولنه په طبقاتو وویشــل شوه، اخلاق هم نه یوازې بدل شول، طبقاتي خصلت یې هم پیدا کړ. چېري دي هغه کرامتونه، ســپڅلتیاوی او معجزی چې «په انســان کې تومنه شــوي او څخیدلي دي»؟ برده لرونکي د دې ډول ارزښــتونو لرونکي دي که بردګان؟ هغه پرتمین کلمات چې یوبل پسی راځي البته ښایسته دي خو په کوم ځای کې د هغو نښې وپلټو؟

د بردګــي دوران پــه پــای کې، هغه وخت چــې د بردګانو پاڅــون او غصه د بــرده لرونکــو په وړاندی د بردګي اقتصادي بنســټونه ړنګــوي او لازمیږي د بردګي نظام څخه یو بل نظام ته چې د تولید له ســطحی ســره سمون ولرئ لاړ شــي، هغه وخت بردګي د یوې پدیدی په عنوان انســاني ضــد، غیرعادلانه او د اخلاقي ارزښــتونو ویجاړونکې بلل کیږي. پــه همدی ډول د فیودالي نظام د انحطاط او ســقوط په جریان کې او د بورژوازی اړیکو پیدایښــت او پراختیا په جریان کې د فیودالي نظام له بی عدالتي او ناپوهي څخه خبري کیږي. مارکس چې ســرمایه داري نظام «په دې عنوان چې د انسان وجودي ارزښتونه په پیسو ســنجول کیږي، انســان د اخلاقو له نظره پستي ته راکاږي اوټولنه د «فساد» په لور. اصلي تکیه ځای یی «اخلاقي ارزښــتونه ټاکي»(«د انســان فلسفه»، دریم دفتر، ۷۴مخ)

په دې نظام کې هم له هغه «کرامتونو او ســپیڅلتیاوو» څخه چې په «انسان کې څخیدلي دي» هیڅ اثر نشته.

لــه پورتنــي لنډیــز څخه په ډاګــه معلومیږي چــې لمړی ابــدي او جاوداني

اخلاقي ارزښـــتونه کوم چې د انســـان له «فطرت» څخـــه راټوکېږي وجود نلري او اخلاقیات چې د تولید په جریان کې د انســـانانو تر منځ له اړیکو څخه منشـــه اخلی د ټولنې تکامل ســـره ســـم تحول کوي. دویم په طبقاتي ټولنو کې اخلاق هم طبقاتي خصلت لري او هره طبقه خپل اجتماعي شعور او خپل اخلاقیات لري چې د هغه د اجتماعي هستي انعکاس او غبرګون دی.

وینو چې مارکســـیزم ټولنې ته د ماتریالیزم په وړاندی کولو ســـره نه یوازې د جاوداني او الهي ارزښـــتونو او د مبدلونو او توپیر لرونکو ارزښـــتونو دوګانګي ته د پای ټکې کېښـــود، بلکې په علمي ډول یې د افکارو، عقایدو او تئوریګانو منشـــه وښـــودله. که ماتریالیزم په طبیعت کې تر ایده‌ای د مادې په تقدم عقیده لـــري، پـــه ټولنې کې هـــم مادي زندګي یا اجتماعي هســـتي تر اجتماعي شـــعور مقدم ګڼي او په دې ډول ماتریالیزم په ټولني کې لار پیدا کوي او هغه ته علمي خصلت ورکوي.

داستایوســـکي روســـي پېژندل شـــوی لیکوال چې د نړۍ د وتلو لیکوالانو له ډلې څخه دی په یو ځای کې مدعي کېږي چې:«کله چې خدای نه وي هر شئ مجاز دي» اســـلامي ریالیســـتان له هغې ډلې ډاکټر شریعتي چې په هر ځای کې اخلاقیاتو څخه خبرئ کوې، د دې ستر لیکوال دغه چټي ادعا لکه د نازل شوې وهې په شـــان تکراروي او بیا دغه بې بنســـټه او ناځوانه تور کمونیســـتانو پورې تړي چې هغوی ګویا موخې ته یعنې قدرت ته د رسیدو لپاره هره وسیله مجاز ګڼي. د سیاســـي قدرت تصرف ته د کمونیســـتانو د رســـیدلو لار، چې هیڅکله او هیڅ وخت له هغې څخه لیرې شـــوي ندي معلومه او روښـــانه ده او هغه لار مبارزه ده، د مبارزې په ټولو شکلونو کې، د کارګرو او زیارکښو پرګنو په څنګ کې، د هغوی د اوســـنیو او راتلونکو مصالحو لپاره. د کمونیستانو په نظر کې،

د انقلاب د بریالیتوب او د نوی سوسیالیستي او کمونیستي ټولنې د جوړښت لپاره بله لار او وسیله پرته له دې نشته. د نړیوال کمونیستي غورځنګ تاریخ د مارکس له زمانې تر اوسه پرته له دې بله لار نه په ګوته کوي او له دې پرته بله لار هم نشته. خو ای کاش چې ډاکټر شریعتي ژوندی پاتی وای او لیدلي یی وای ـ البته که چېرې هغه د اوین په زندان کې د اسلامي جمهوري ترهګرو په ګولیو سوریځ سوریځ وژلی نه وای ـ چې زموږ اسلام ځپلي هیواد کې د خدای او قرآن له خبرو پرته بل څه نه تر غوږو کیږي او بی له شکه د الهی فرمان او احکام په هغه کې جاري او ساري دي او «یو موټی خدای پالونکو او له خدایه بیریدونکو» څه ډول انساني او اخلاقي ارزښتونه تر پښو لاندې کوي او د خپل قدرت ساتلو لپاره چې غصب کړی یی ده له هیڅ ډول وسیلې ـ د بیګناه وګړو له قتل، شکنجې، اعدام او حتی د معصومو کوچنیانو څخه نیولې تر ستمګري، دروغ ویلو، غولولو، ریا، د امنیت او آزادي له منځه وړلو او آزار ورکولو څخه مـخ نـدی ګرځولي. د سـلوغي تاریخي انقـلاب ـ چې د امپریالیزم شـړلو په خاطر او شاهنشـاهي رژیم ته د پای ورکولو په خاطر او د استقلال او آزادي په خاطر را منځ ته شـوې وو ـ د شـیعه مسلمان روحانیت له خوا په ټګماري او مداریتـوب چې د دوی په خټه کې تومنه شـوي له هغه څخـه ګټه پورته کړه او قدرت یی تر لاسه کړ، په ډاګه څرګندوي چې له نړۍ څخه د خدای پورته کول او یا د هغوی خوندیتوب د الوهیت په ګډۍ کې د اخلاقي ارزښتونو په مراعات کولو یا د هغوی تر پښو لاندې کولو کې کوچنۍ نقش هم نه لوبوي.

## ۲

ظالم او ستمګر سره مبارزه، د اخلاقي ارزښتونو د تباهي په وړاندې مبارزه، له ټولنیز چغ څخه د زیارکښو او محرومو انسانانو د خلاصون په موخه مبارزه،

له بند څخه د انسـانانو د خلاصون او د هغوی د سـوکالي په خاطر د طبیعت د وړانده ځواک په وړاندی مبارزه، هوکې دا ډول مبارزه سـپیڅلې مبارزه ده او ارزښت دی. اصولاً دغه مبارزه د مارکسیزم په ذات کې نغښتی ده، د مارکسیزم د تئـوري پـه خټه کې نغښـتی ده، ځکه چې د علمي سوسـیالیزم تحقق د ټولو انسـاني ارزښتونو منشاء او ښکارندوی دی کوم چې پرته له مبارزې نه تر لاسه کیږي. هغه څوک چې مارکسیزم زده کوي او د سوسیالیزم د تحقق لپاره مبارزه نه کوي مارکسیسـت ندی. د مارکسیزم د فلسفی ماهوي توپیر له نورو پخوانیو فلسـفو څخه په دې کې دی چې هغوی یواځې د نړۍ په تفسیر او بیان قناعت کاوه حال دا چې مارکسیزم د نړۍ بدلون او بدلون موخه ګرځولي ده او د نړۍ بدلـون پرته له انسـانی مبارزې څخه نه تر لاسـه کیږي: د تولیـد په جریان کې طبیعت سـره د انسـان مبارزه پرله پسې طبیعي محیط ته بدلون ورکوي او ضد انقلابي محافظه کاره ټولنیز ځواک سره مبارزه ټولني ته بدلون ورکوي.

سـره له دې بیا هم د اسـلامي جمهوري یو مشـهور غړی ډاکټرع. سروشپه خپلـو دوه ویناګانو کې «څوک کولای شـي مبارزه وکـړي» تر عنوان لاندې په (ناشر پیام آزادي) کې مدعي کیږي چې:

«مبـارز اوسـیدل له موحد والي پرتـه ټینګ پاتې کېدای نشـي، له توحیدي اندیشـې پرته او په آخروي ژوند باور درلودلو پرته نشو ګولی جهاد څخه دفاع وکړو یا د دفاع په خاطر مبارزه وکړو. د تضاد پیژندنه مبارزه نه هڅوې، بلکې په توحید باور کول هغه را زده کوي او هغه په آخرت ایمان درلودل دي چې په جهاد کې پیاوړي اتلان روزي» (مقدمه)

پـه دې ادعا سـره د واقعیت پـه مخ، د مارکسیسـتانو د مبـارزې په مخ له مارکس څخه نیولې تر ورک شوو او بې نومو مارکسیستان په مخ چې له یوسل

پنځوس کلونو را په دې خوا په بیساري توګه د خپل سپیڅلي ارمان او بشریت لپاره جنګېږي او قرباني ورکوي خپلې سترګې پټوي. آیا حیرانوونکې نده؟

وینـئ چې دغه اسـلامي «متفکر» مبارزه د موحدینـو په انحصار کې راولي کوم چې په اوخروي ژوند او د قیامت په ورځ باور لري. اوس همدغه موحدین او له هغې ډلې په خپله ویناکوونکې په کوم ځای او کومې پیښې کې خپل ځان لیدلی دی، څوک نه پوهیږي؟ ښکاره ده هغه ډول چې موحدین ډاکټر شریعتي توصیـف کړیدي د مبارزې او جهاد اهل نـدي، هغوي «عثماني ژوند کوي او په ابوذر اوښـکې تویوي». مګر د اسـلامي جمهوري تجربه له دې پرته بل څه پـه ګوته کوي؟ یو ځل بیا تېرې شـوې پاڼې لـه نظره تېرې کړئ تر څو حقیقت تاسو ته په ډاګه شي.

کـه چېرې د ډاکټر سـروش لیکنـه همدې باطلې ادعا پـورې محدوده پاتې کېـدای ځـای یې نه درلود چې هغې ته مو اشـاره کړې وای خو په دې وینا کې ډول ډول مطالب د دې ادعا د ثبوت لپاره مطرح شـویدي چې نشـو کولای په آساني له هغه څخه تیر شو. که رښتیا ووایو ډاکټر سروش هغومره د موحدینو څخـه د دفـاع په فکر کـې نده څومره چې د مارکسـیزم سـره د حملـې او له مارکسـیزم څخه د ځوانانو د لرې کولو او بیزاره کولو په فکر کې دی. ډاکټر د مارکسـیزم په ضد یو له «جهاد کوونکو» څخه دی او هغه هم پداسـې حال او اوضـاع کـې چې په دې جهاد کې هغوې ته نه کوم خطر متوجه دی او نه د هغه د اپلتو په وړاندې آواز پورته کېدای شـي، پداسـې اوضـاع او احوال کې چې د سعدي په خبره: «ډبرې یې تړلي او سپیان یې خوشې کړي».

تـر هغـه ځایه چې د «مبارزې» مسـئله، له انسـاني ارزښـتونو سـره نږدې اړیکې لري او دغه برخه همدې مسـئلې ته ځانګړې شـوې او تر هغه ځایه چې

ويناکوونکې دغه مطالبو ته علمي او فلسفي ظاهري بڼه ورکوي، ځای لري چې په لنډه توګه هغه ته اشاره وشي.

## ايدئولوژي او دوه ګونې (دوګانګي) نړۍليد

پــه پيل کې وينــا کوونکې له مکتب څخه خبرې کوي چــې دوه برخې لري: نړۍليــد او ايدئولوژي. نړۍليد عبارت دی د نړۍ په هکله د نظر له څرنګوالي څخــه چــې توصيفي اړخ ســره تړاؤ لري، پــه دې مانا چې د نــړۍ او د هغه د پدېدو توصيف کوي، نړۍ څه ډول جوړ شــويدی، له څه شيانو جوړ شويدی، منشــاءيی چېری دی او کوم لور روان دی او داســې نــور. ايدئولوژي برعکس تکليف ټاکي، په «ښــايې او نه ښــايې» (بايد او نبايد) باندې بحث کوي. مثلاً څــه ډول بايــد ژوند وکړو، څه شــيان بد دي، څه شــيان غوره دي، ښــه او بد څــه دي. «بايــد مبارزه وکړو» هــم د تکليف او «بايد»په ډلــه کې راځي چې د ايدئولوژي يوه برخه ده.

د دې توضيحاتــو په څنګ کې دغــه ادعا هم مطرح کوي چې ايدئولوژي له نړۍليد څخه نه را ټوکيږي او په واقعيت کې غواړي ووايی مارکسيســتان چې پانګوال نظام ســره د سوســياليزم او کمونيزم د اســتقرار لپاره «مبارزه» خپلې نړۍليد څخه تر لاسه کړې چټي او خوشې خبرې کوي. مبارزه له نړۍليد څخه منځ ته نه راځي د مارکسيستانو له خوا دغه ادعا پوچه ده. هغوی نه مبارزه پيل کولای شي او نه هغې ته ادامه ورکولای شي. توجه وکړئ جالبه ده:

«کوم مکتب کولای شــي چې مبارزې ته بلنه ورکړي؟ صحيح ځواب يی دا دی هغه مکتب چې ســل په ســلو کې يی ځان په علم نوې متکي کړی. دهغه ايدئولوژيګانو چې مور يی علم دی، بچېان يی به جنين کې مري د زيږد نوبت ته نه رســيږي او که چېرې تولد هم شــي او هويت پيدا کړي بی کفايته دي...

دغــه بــې هويته او بــې کفايته اولادونه شــتون نلري او که شــتون ولري د لار ښــوونې وســمن ندي او په دې ډول هغه څوک مبارزه کولی شــي چې د علمي ايدئولوژي په لار روان نوي». (۲۶ مخ)

د اسلام په مکتب کې طبيعتاً تکليف له نړی‌ليد څخه نه راتوکيږي. نو مبارزه له کوم ځايه او له څه شي را پورته کيږي؟ ځواب يی دا دی چې:

«خدای په نړی کې دوه انحصاري نقشــونه لري: د هست پنځول (آفريدن) او د بايــد پنځــول. دغه دوه منحصراً د خدای په لاس کې دي او هر څوک بايد د خپل خدای تابع اووسئ او ووايئ څه چې هغه غواړي او څه چې هغه فرمان ورکوي هماغه شان کوو»

په اســلام کــې ايدئولوژي لــه نړی‌ليد څخه نــه راپورته کيــږي. ايدئولوژي مســتقيماً له خدای څخه د صدور شــرف پيداکوي او په دې ډول يواځي هغه کســان چې خدای شــناس دي او د هغه فرمان ته غاړه ږدي کولای شي مبارزه وکړي او بس. دادی په لنډه توګه د دې متحجر مغز «اســتدلال». هغه څه چې پورته وويل شــول د هغه يواځېنی اوخالص اســتدلال دی. خو د دې لپاره چې پايلی ته ورسيږي وړاندوينه يی کړي او شواهد يی ذکر کړي چې بايد تر بحث لاندې ونيول شي.

د ايدئولــوژي له کلمې څخــه پيل کوو. ايدئولوژي څه شــی ده؟ ايدئولوژي د فرانســوي ژبې کلمه ده چې ځانګړی مفهوم لري. د کلمې منشــاء په خپله د همدې مفهوم لرونکې ده. ايدئولوژي له دوه يوناني کلمو (Idea) د فکر په مانا او (Logos)يعنــې علم او معرفت څخه جوړيږي، په دې ډول ايدئولوژي علم او معرفت دی په افکارو باندې او په فرانســوي لغت نامه (لاروس) کې داسې راغلي دي:

«د افــکارو علم، د افکارو او معتقداتو ټولګه ده چې یو ډاکترین جوړوي او په فلســفه کې د افکارو او نظریاتو منســجمه ټولګه ده چې یوه ټولنیزه طبقه په هغې کې خپل ځانته ځای پیدا کوي او هغه د خپل قدرت د تحمیلولو په خاطر بلې طبقې سره په مبارزه په کار اچوي.»

ټول خلک د ایدئولوژي کلمه په همدې مانا پیژني پرته له دې چې مارکسیزم سره سروکار ولري. دا په اوسنۍ نړۍ کې د ایدئولوژي مانا ده او ایدئولوګ هغه چاته ویل کېږي چې یو ټولنیز یا فلســفي ډاکترین ســره تړاؤ ولري. نن ورځ د ایدئولوګ او ایدئولوژي کلمه په هغه مفهوم نه کارول کېږي کوم چې به اتلسمه پیړۍ کې فرانســه کې کارول کېده. هیڅوک ایدئولوګ هغه چاته نه وایی چې د یوې ډلې یا طبقې یا حتی د یوې ټاکلې ټولنې لپاره تکلیف وټاکي. سره له دې بیا هم د ډاکتر ســروش له نظره «تر ټولو صحیح دا ده چې نړۍلید توصیفاتو پوري او ایدئولوژي تکلیفونو پورې وتړو.»(۱۸ مخ).

اوس دا لید ولې تر ټولو صحیح دی؟ وایی به چې توضیح او دلیل ته اړتیا نشته. ښایی د دې تکلیف فرمان هم د لوی خدای له خوا صادر شوی دي!

لنــډه دا چــې مکتب په دوه عنصــرو ایدئولوژي او نړۍلیــد تجزیه کېږي او مدعي کېږي چې ایدئولوژي له نړۍلید څخه نه را پورته کېږي حال دا چې ټول شــیان د دې ادعــا خلاف رایه ورکوي. د بیلګي په توګــه، موږ وایو چې خدای مــوږ پیدا کړي یو او ډول ډول نعمتونــه یی موږ ته راکړیدي (توصیف) اوس زمــوږ تکلیف دادی چې د هغه منندویه اووســو او حمد و ثنایی یی ووایو. آیا زموږ دغه تکلیف چې له دې توصیف څخه را پورته شوی ناروا او بیځایه ده؟ یا وایو چې پینوشــه د شــیلي دیکتاتور ظالم او ســتمګر دی، نو باید هغه ســره مبــارزه وکــړو. ولې دغه «باید» له هغه تکلیف څخه نه راپورته کېږي؟ په خپله

هغه کس ته چې د خدای پرستش کوي وایي:

«تر څو ونه پوهیږي چې خدای شته او که خدای نشته بیا نشي کولای چې د خدای له پرستش څخه خبرې وکړي»

«خدای ولمانځئ» د ایدئولوژي یو عنصر دی، یو تکلیف دی چه خدای شته او د نړۍلید یو عنصردی او تاسې د دې لپاره چې دغه ایډیالوژیک عنصر ولرئ کافي ده چې مقدمتاً دغه نړۍلید ولرئ او ومنئ مو وي چې خدای شته.» (۱۱مخ)

دا دوه جمع دوه تر څلورو ښکاره حساب دی. آیت الله مطهري د هغه همکیش اوهم مسلک هم تکلیف او«باید او نباید» د نړۍلید له بطن څخه راکاږي:

«د نن ورځې په اصطلاح هر ډول نړۍلید هرومرو په عمل کې اغیزه کوي د فکر او عمل په منځ کې اړیکه ټینګوي. د بیلګې په توګه ځینې نړۍلید ګانې د عمل، فعالیت او مبارزې الهام بخښونکي دي او ځینې برعکس د چپتیا، سکون او سر ټیټولو الهام بخښونکي»(«مارکس او مارکسیزم»، دویم دفتر، ۳۳،مخ)

حتی د انګلوساکسون په قاموس کې د ایدئولوژي کلمه د عملي معتقداتو په توګه کې نیول شویده ــ ښایي د ډاکټر د الهام په منبع کې د ایدئولوژي په مانا راغلې وي ــ په دې ډول ایدئولوژي د نړۍلید زیږنده بولي:

«یو ایدئولوژیک سیستم د عملي معتقداتو له تورو لیکو پرته بل څه ندي. پداسې سیستم کې، عملي معتقدات یوبل سره او د تجریدي درک له مخې انسان او نړۍ سره په اړیکه کې دي د بیلګې په توګه مسیحیت خپله رده د انسان او خدای په هکله د احکامو په شمیري جوړوي او له دغه احکامو څخه

د مختلفــو موضوعګانــو په اړه ځانګــړی پاملرنه سوســیالیزم او د اولادونو (فرزندان) کنترول تر لاسه کوي»

دا ټول د دې ښکارندوی دي چې ایدئولوژي د نړۍلید زیږنده ده. خو ډاکټر په سرتمبګي له دې قضیي څخه انکار کوي. د هغه دلایل تر غور لاندې نیسو:

هغه په پیل کې د څو نمونو په وړاندې کولو هڅه کوي وښایئ چې «له نړۍلید څخه د ایدئولوژي رایستل کولی شــي ډېري زیان رســوونکې او ویجاړوونکې پایلې منځ ته راوړي» (۱۱، مخ)

لمړۍ نمونه یې نژادي تئوري ده چې د مختلفو نژادونو د وجود په اســاس ولاړه ده. د حیات پیژندنې علم (زیســت شناســي) په انســانانو او(په نورو ژوندیو موجوداتــو) کې د نژاد موجودیــت مني او له دې واقعیت څخه انکار نشــي کېــدای. خو په ټولنه کې د المان په شــان فاشیست ځواکونه را پیدا کېږي چې په انسانانو کې د نژادونو د موجودیت پر بنســټ د ســپین نژاد (په ځانګړی توګه د جرمني نژاد) د برترئ او غــوره والي بیــرغ پورته کړ او هغه ته یې د خپلو شــومو او ناپاکه بورژوازي مقاصدو لپاره په چوپړ کې وکاروه.

دویمــه نمونه یې د ډارویــن د تکامل تئوري ده چې د«تنازع بقاء» او «بقای اصلح» مسائل یې را منځ ته کړل.

بیا هم په ټولنه کې ځینې کسان پیدا شول چې د ټولنې لپاره یې له هغه څخه ناوړه ګټه واخیســته، زور، حق وژنه او جګړه یې په دې اســتناد چې طبیعت د زور خبرې کوي او کمزوري تر پښــو لاندې کوي توجیه کول. هغوی د ډاروین تئوري د زیســت شناســي میدان څخه د خپلو طبقاتي ګټــو خوندي کولو لپاره اجتماعي ډګر ته راکښــله چې له هغې څخه تر لاســه شــوې پایلې نشي کېدای

غلطي او زيان رسوونکې نه اوسي.

البتــه دغــه نمونې په خپــل ځای کې صحيــح دي. لکه چې ځينې کســان د شــاتو د مچيو او ميږيانو په ټولنه کې دې نتيجې ته رســيږي چې په ټولنه کې د طبقاتو شــتون برحق دی او برســيره پر دې پاچا، ملکه او شــاهي رژيم د ټولنې لپاره ضروري دي، ځکه چې د طبيعت غوښتنه ده! خو دغه نمونې اوس هم د ډاکټر له ادعا سره اړخ نه لګوي. دا چې ځينې کسان له يوې تئوري څخه زيان رســوونکي او ويجاړوونکي نتايج اخلي د دې دليل نشي کېدای چې تکليف له نړی‌ليد څخه نه راټوکيږي. هيتلر او د هغه ياران چې کله د نژادونو په وجود کې جرمــن د غــوره نژاد په توګه دغې پايلې ته ــ چې دا ډول نژاد هيڅ وجود نلري ــ ورســيدل، په ټولنه کې ګڼ شــمير کســانو د نژاد د برتري تئوري رټلې شوی ګڼله. هغوی هم د نژاونو له توصيف څخه چې يو واقعيت دی د ټولو انسانانو له هر نژاد څخه چې دي د سياســي، اجتماعي او اقتصادي حقوقو په برابري، د صحــت هوکــړه کوي او د نــژادي برتري تئوري يی غندلــي ده. ډاکټر ولې د هيتلر او ځينو نورو فاشيستانو زيان رسوونکې تئوريويني او د نورو صحيح او انساناني نتيجه ګيري په پام کې نه نيسي؟ولې سوسيال ډاروينيزم ته توجه کوي او د هغې مخالفينو ته پاملرنه نکوي؟ آيا دغه تکليف چې بايد د ټولو انسانانو له هر جنس، نژاد او مليت څخه چې وي د حقوقو د برابري لپاره يی ــ مبارزه وکړو «زيان رسوونکې او ويجاړوونکې» ده؟ هغه مترقي ځواکونه چې د نژادي تئوري په مخالفت راپورته شــول، له خدای څخه يی فرمان تر لاســه نکړ، او زياترو يی په خدای هم عقيده نه درلوده. هغوی د دې لپاره مخالفت وکړ چې نــژادي تئــوري هيڅ ډول علمي پايه نه لــري، دا د نژادونو تر منځ توپير چې يو بيولوژيکي واقعيت دی ناسمه نتيجه ګيري ده.

کله چې له یوې تئوري (توصیف) څخه غلطه نتیجه اخیستل کیږي په دې مانا نده چې نشو کولی له هغې څخه سمه نتیجه تر لاسه کړو. د حیرانتیا خبره دا ده چې د ډاکټر سروش توضیحات په خپله د دې ښکارندویی کوي چې کولی شو توصیف څخه تکلیف وټاکو منتهی هغه یواځې زیان رسوونکو او ویجاړوونکو تکلیفونو ته اشاره کوي. خپله هغه په دې باور دی چې:

«د هر خارجي واقعیت په وړاندی کېدای شي لږ تر لږه دوه غبرګونه ولرو او له دې کبله له «هست» (یعنې له واقعیت څخه) «باید»، ځانګړې جهت ګیري نه راپورته کیږي» (۴۲، مخ)

د حیرانتیا خبره ده مګر د انساني نژاد توپیر (واقعیت) څخه د نژادي توپیر تئوري راپورته شوې نده؟ مګر له همدې نژادي توپیر څخه د نژادي توپیر ضد موضعګیري نده راپورته شوې؟ مګر الهي فرمان چې ډاکټر سروش هغه د ایدئولوژي منبع او منشاء بولي په هغې کې دوه ډوله «ځانګړې جهت ګیري» نه تر سترګو کیږي: څوک چې د هغه فرمان ته سرنه ټیټوي او برعکس هغه څوک چې الهي فرمان یوه پیرزوینه ګڼي؟ دا سمه نده هغه کسان چې د خدای فرمان ته سر نه ټیټوي حتماً د هوا او هوس تابع دي، او دا هم سمه نده څوک چې خدای پرستان دي هغوی د هوا او هوس تابع ندي. دغه مطلب ته ډاکټر پداسې شرایطو کې ګوته نیسي چې خدای پرستان یا حتی ځان ښکاره کوونکي (متظاهرین) کولای شي هر څه چې یی زړه وغواړي او هر څه چې یی په خوله راځي ووایې پداسې حال کې چې مخالفانو څخه د سا اخیستلو حق هم اخیستل شویدی. ښاغلی ډاکټر په یواځې ځان قاضي ته درومي! هغه یوې بلې نمونې ته هم اشاره کوي چې یادونه یی بی ګټې نده:

«یوه بله نمونه هم د یادولو وړ ده چې زموږ د خبرې عنوان سره ډېر نږدیوالی

لـري او هغـه په طبیعت کـې د موجوده تضاد د د مبارزې او اسـتنتاج له اصل څخـه عبـارت ده او ویل کیږي باید مبارزه وکړو ځکـه چې مبارزه د دې نړۍ د جوړښـت بوه برخه ده. منظور دا ده چې د ډیالکټیک منطق پربنسـټ په نړۍ کې ټول تضادونه یوبل سـره مبارزه کوي، بی پایه او بی امانه مبارزه،.... اوس ولې مبارزه یعنې پوښتنه دا چې «ولې باید مبارزه وکړو» د ډیالکټیک په مکتب کـې، داسـې مکتب چې د اضـدادو په مبارزه او نزاع قائـل دی ځواب ورکړی دی. ځـواب پـه دې ډول دی: دا چې په نړۍلید کې بـاور لرو چې په نړۍ کې د اضـدادو مبـارزه ده پـه ایدئولوژي کې نتیجه تر لاسـه کوو چـې باید مبارزه وکړو» (۱۷، مخ)

او څرنګه چې «باید او نباید»، (ایدئولوژي)، له نړۍلید څخه نه راټوکیږي د همـدې دلیل له مخې هغه څـوک چې په نړۍ کې د اضدادو په مبارزه باورلري نشي کولی په مبارزې لاس پورې کړي یا دمبارزې بلنه ورکړي.»

ګوری چې ټولې خبرې په همدې ځای څرخي. د لمړنی وینا ټولې هلې ځلې د دې لپاره دي تر څو مدعي شـي چې مارکسیستان نشي کولای مبارزه وکړي. خو واقعیت دا دی چې د مارکسیسـانو مبارزې څخه انکار کېدای نشـي او په خپله وینا کوونکې هم انکار نکوي خو په دې باور دی چې د هغوی مبارزه غیر منطقـي ده، ولـې؟ د دې لپاره چې «باید او نباید» له نړۍلید څخه نه راټوکیږي او دغـه ترینګلـی او کم عقلـه حکم (تکلیف له توصیف څخـه نه راټوکیږي) پرتـه له هغه څخه بل هیڅ څوک دهغه مدافع ندی او دا له مارکسـیزم سـره د مبـارزې لپاره ابداع شـویدی. د هغه مقصد دادی چې مارکسیسـتان مبارزه نه کوي، هغوی پسـې روان نشـو او کـه چېرې له واقعیت څخه هـم څه وایې د هغـوی مبارزه غیر منطقي ده ځکه چې د اضـدادو له مبارزې (نړۍلید) څخه

راپورته شـوې ده! دا هغه ځواب ده چې «ولې بايد مبارزه وکړو» د پوښتنې په ځواب کې يوبل پســې غوټه کړي او له خپله ځانه دغه خبري جوړ کړي دی. هيـڅ مارکسيســت دا ډول خبرې نکوي ځکه چې لومـړي د ايدئولوژي کلمه د ډاکټر په ډول نه تعريفوي. د مارکســيزم په فلســفه کــې ايدئولوژي د اجتماعي (سياســي، اقتصادي، حقوقي، هنري، اخلاقي، فلسفي..) نظرياتو سيستم دی چــې د ټاکل شــوو طبقاتو د ګټو ويناکوونکــې او په عين وخت کې د هغوی د چلند د موازينو، عمل او د معيارونو ارزيابي ده او دا هغه تعريف نده کوم چې ډاکټر ســروش يی په لاس ورکوي. دويم دا چې مارکسيســت له نړۍليد څخه د ايدئولــوژي پــه جــلا کولو باور نلري په دې اســاس د ډاکتــر دغه حکم چې انســاني او اخلاقي ارزښتونه له دې ټولګې څخه چې مبارزه له نړۍليد څخه نه راټوکيږي په کلکه رټلې شميري.

هيــڅ کلــه هم عيني قوانين (په طبيعت او ټولنه) کې د انســان لپاره تکليف او «بايــد او نبايد» نه ټاکي. د جاذبــې عمومي قانون هيڅکله فرمان نه ورکوي چې دغه يا هغه جســم پورې جذب شــه، په ژونديو موجوداتو کې د چاپيريال ســره د مطابقــت قانون دغه تکليف نه زيږوي چې کــه چيري د افريقا مرکز ته ســفر کوې د پوســتکې رنګ تور کړه او که د اروپا شــمال ته سفر کوې سپين پوســتې اوســه. يا که چيرې قطب ته ولاړ شــې غريزي حرارت د چاپيريال تر حرارت پورې کښــته راوړه او داسې نور. د تضاد قانون هم د انسان لپاره «بايد او نبايد» نه تجويزوي او له همدې کبله دا به ډيره بی عقلي وي که څوک تصور وکړي چې «بايد» مبارزه يی د تضاد له قانون څخه راکښلې ده. البته اجتماعي قوانين په بل ډول دي او د افرادو لپاره تکليف او دنده ټاکي چې دا د اجتماعي قوانينــو (هغه قوانين چــې په ټولنه کې وضع کيږي) لــه توپيرونو څخه ده چې

عیني قوانینو ســره توپیرلري. لکه د بیلګې په توګه د اســلامي جمهوري قوانین تکلیف کوي، لمونځ وکړه، روژه ونیسه او ښـځو ته وایي: ځانونه په تور کفن کې ونغاړئ او داســې نور. خو د تضاد قانون حتی د طبقاتي مبارزې په بڼه کې د افرادو لپاره «باید» نه پنځوي. د تضاد قانون ټول کسان او ټول شیان په ځان کــې رانغــاړي او له هغه ټولګې مبارزه. اجتماعــي ډګر کې د فرد مبارزه د یوې طبقې د برخې په توګه د دې قانون د موجودیت یواځینۍ شــاهد دی نه دا چې د تضاد قانون د مبارزې امر ورکوي.په ټولنه کې مبارزه همیشــه یوې موخې ته د رســیدو لپاره صورت نیسي او د یو مارکسیســت مبارزه له اجتماعي قیوداتو څخه د زحمتکښــو او محرومو انســانانو د خلاصون لپاره ونډه ده چې د ټولنې د ارتقاءاو تکامل په خاطر یې ســرته رســوي. د وینا کوونکي ډاکټر مبارزه هم پــه همــدې ډول ده منتها د هغه د مبارزې موخه د ټولنې د تکامل مخنیوې او د قهقرا په لور په شا تمبول دي.

وینــې چــې هغه ټول مقدمات لــه وړاندې چمتو کوي تر څــو خپلې ټاکلې موخــې ته ځان ورســوي. بیا مکتب په دوه برخو ویشــي، ایدئولــوژي په خپله خوښــه تعریــف او تفســیروي، د ایدئولــوژي اونړی‌لید تر منــځ د چین دیوال راکاږي او له خپله ځانه د مارکسیســتانو په خوله کې خبرې ورکوي او دا د دې لپــاره دي چې د «مبارزي» خصلت د یو ارزښــت په توګه مارکسیســتانو څخه ســلب کړي. دا ډول ټکر یوازې د دې جناب ځانګړتیا نده، بلکې ټول اســلامي ریالیستان که واړه دي که زاړه له همدې ډول روش څخه پیروي کوي.

هغه څه چې پورته وویل شول یوازې هغه بېلګې وې چې نړی‌لید څخه یې ویجاړونکې نتیجې درلودې. اوس راځو د مطلب اساســي ټکي ته په څه دلیل مجــاز نده چې لــه ایدئولوژي څخه نړی‌لید ته پل جوړ کړو، ولې له «هســت»

څخه «بايد» ته تيريدلی نشو:

«دغه مدعا يو ســاده منطقي دليل لري... منطق موږ ته زده کوي چې نشــو کولی «هســت» څخــه «بايد» ته ورســيږو ولې؟ د دې لپاره چــې: «په منطقي اســتنتاج کې هيڅکله نشو کولی له يو شــمير مقدماتو څخه نتيجې ته ورسيږو کوم چې هغه کلمې پداسې (واژه) کې ځای ولري کله چې هغه کلمه په مقدماتو کې کارول شوې نوي. دا د يومنطقي استنتاج د صحت لپاره لازمي شرط دی. که تاسو ووايی «حسن ځوان دی» او «حسن ايراني دی»، «حسن درس لوستې دی» او بيا نتيجه تر لاســه کړي چې حســن ناروغ دی، دغه استنتاج د منلو وړ نــدی، ځکه چې د«نــاروغ» کلمه «په مقدماتو کې نه تر ســترګو کيږي». اوس وروســته تر دې توضيحاتو دغه ټکي ته رســيږو چې زموږ د بحث مســتقيمه برخه ده.

«توصيفي قضيه داســې وايی «نړی همدا شــان دی که ندی»... له يوې خوا په ايدئولوژي کې وايو بايد د مبارزي لار په مخه ونيسو... يعنې په نړی‌ليد کې د «بايد» واژه نلرو پداسې حال کې چې په ايدئولوژي کې«بايد» لرو»(۲۳، مخ)

هرومرو متوجه شوي ياست منطقي دليل دادی چې په نړی‌ليد کې د «بايد» کلمه نشــته او په ايډيالوژی کې د«بايد» کلمه شــته، د دغه اســتنتاج په نتيجې کې منطقي نده چې ونشــو کولی له نړی‌ليد څخه ايدئولوژي ته لاړ شــو. واقعاً دغه «استدلال» ته بايد آفرين ووايو! که چېرې د منطق زده کړه انسان دې ډول ګمراهي او ککې لارې ته بيايی غوره داده چې دغه زده کړه جهنم ته واســتول شي يا يې په خپله منطقيونو ته ډالی کړو!

د منطق کار پيژندونکې وايی:

«هيڅ واقعيت د چا لپاره مشخصه جهت ګيري نه ټاکي يا په بل عبارت د هر

خارجي واقعیت په وړاندې کېدای شي لږ تر لږه دوه ډوله غبرګون وجود ولري له همدې کبله ده چې له «هســت» (یعنې لــه واقعیت) څخه «باید» (ځانګړې جهت ګیري) نه راټوکیږي.»(۲۲، مخ)

ښــه توجه وکړئ، زما کور اور اخیســتی او د ســوځیدلو په حال کې ده. ګڼه ممکــن نــده نتیجه واخلو چــې «باید» اور مړ کړو ځکه چې پــه اور لګیدنه کې «باید» نشته او په اور مړ کولو کې «باید» شته. ګڼه د اور سوځېدنې له واقعیت څخه د اور مړ کولو تکلیف ته رسیدای نشو! دا دی هغه منطق چې صحیح فکر کول او د صحیح استنتاج زده کړه په ګوته کوي! زلزله کور ته ټکانونه ورکوي. لمړې هغه څه چې د کور اوســیدونکو فکر ته راځي هغه داده چې اوسیدونکي خپل ځانونه له سرپټو ځایونو څخه لیرې کړي تر څو خاورو لاندې پاتې نشي. د زلزلــې له واقعیــت څخه د ځان خلاصولو تکلیف نــه رامنځ ته کیږي! په یو غره کې اورشیندنه پیل کوي، یو کلي چې د غره په لمن کې پروت دی د لمنځه تللــو پــه حالت کې قــرار لري. هر ژوې د ذوب شــوو موادو د جــاری کېدو په فکر کې لویږي چې باید له ســیمې څخه لیرې شــي او ځانونو وژغوري. د اور شــیندنې واقعیت له ســیمې څخه د لیرې کېدو تکلیف انسان ته ورکوي. خو د منطق کارپوه د دې تکلیف منبع او مبدا په بل ځای کې لټوي. آیا ستاسو په نظر حیرانوونکې او مســخره نده؟ پورتنې بیلګې په عین حال کې په ګوته کوي چې هر واقعیت څخه همیشــه او په هر حال «دوه ډوله غبرګونه» نه را پورته کیږي. البته په دې ځای کې د ســلیم عقل انســانان په پام کې دي، نه هغه کســان چې عقل اوشعور یې له لاسه ورکړی.

هیڅوک نشــته چې په استنتاج کې تکلیف له واقعیت، له ایده آل او نړۍلید څخــه تردیــد ولري. په خپله ویناکوونکې په دې باور دی چې «تر اوســه ما یو

مـورد هم ندی لیدلی چـې د دې خبرو خلاف وي». خو هغـه په دې «منطقي دلیـل» تـول ګوته پـه خوله حیرانوي! د مسـئلې د حل کونجـي (کلید) یو بی قابلیته «باید» دی، هیڅا تر اوسه د دې پالنه نده کړی دا چې «باید» په نړۍلید کې نشـته او په ایډیالوژی کې شـته، هغه د خپلي وینا په پای کې وایی د «باید» منبع او مبداء خدای دی چې وایی باید اور مړ کړئ، نه د اور لګیدنې واقعیت، خدای دی چې وایی «باید» له زلزلی، اورشـیند (اتشفشـان)، سیلاب او نورو آسـماني او ځمکنیو بلاګانو څخه ځانو ته نجات ورکړئ، نه د دغو بلاګانو له واقعیت څخه، په رښتیا چې اسلامي ریالیزم د تحجر او بې منطقي لوړه څوکه ده!

همدغه بې ارزښـته «باید»د منطق او فلسـفی کارپوه په لاس کې د دې امر د اثبات لپاره کافي ده چې ووایی د مارکسیسـتانو د مبارزې دعوه باطله او غیر منطقي ده، او یوازې هغه مکتب کولای شـي مبارزې ته بلنه ورکړي چې «سـل په سـلو» کي یی ځان په علم متکي کړي نه وي. «هغه ایدئولوژي چې مور یی علـم دی بچېـان یی د مور په ګېډه کې مړه کیـږي». «که څوک وغواړي مبارزه وکړي او دغه مبارزه د علم پر بنسـټ توجیه کړي توجیه به یی منطقي او دفاع منونکـې نوي». د ناچاري له مخې همدا علت دی چې په اسـلامي جمهوریت کې مارکسیستان د مبارزې حق نلري او ځای یی یا هدیره ده یا د اوین زندان. ځکـه چـې د هغوی مبارزه د منطق له نظره ـــ هوکې د منطق له نظره د توجیه وړ نده. هماغه ډول چې ډاکټر سـروش په خپل منطق، د پانګوال په واسـطه د کارګرې طبقې د استثمار په حقیقت سترګې پټې کړي او لوړی یی ورله آسمان ته پورته کړی. اوس د همدې منطق له مخې د مبارزې حق مارکسیستانو څخه اخلي او ځوانانو ته بلنه ورکوي چې علمي نړۍلید او ایډیالوژی پسـې مه ځی

چې له هغې څخه د مبارزې مکلیف نه راتوکېږي.

ډاکټر عبدالکریم سروش په دویمې وینا کې خپلې خبرې په دې مطلب شروع کوي: «څوک کولی شي چې مبارزي ته دوام ورکړي» که څه هم هغه په خپلې لمړنۍ وینا کې د خپلې فلسفې او منطق له مخې د دغې سپکې او بې ارزښته د «باید» کلمې پواسطه د ټولو په باور چې له توصیف څخه تکلیف منځ ته راځي، د بطلان خط کش کړ.

په دویمې وینا کې «علم» څخه کار اخلي. او «ثابتوي» چې یو مارکسیست که څه هم مبارزه پیل کړي، نشي کولی هغې ته دوام ورکړي او کله چې ستونزمنه شرایط منځ ته راشي له مبارزې څخه لاس اخلي. هغه د سنت مطابق د لمړنۍ وینا په پای کې د «کربلا صحرا» ته مخ اړوي او دې نتیجې ته رسیږي چې نشو کولی په علم تکیه وکړو، باید په خدای توکل ولرو.

«علم د توکل شایستګي نلري... که څوک په چا یا کوم شئ توکل کوي هغه یوائې خدای دی... یوائې هغه څوک چې د توکل لایق دی هغه خدای دی».
باید په مبارزه کې او د هغې د دوام لپاره «په هغې مبداء او منبع توکل وکړو چې شکست منونکې نوی او د زحمتونو بدله ورکوي، په هغه توکل او دهغه لپاره مبارزه کول همیشه نتیجې ته رسیږي» (۴۱ ـ ۴۲، مخ)

په دې ډول موحد او مومن مبارزه کوي د دې لپاره چې «د هغه د مبارزې اجر او بدله» ورکړه شي. که په دې دنیا کې ورکړه شي ډېره ښه، مقام، شهرت، ثروت او جسماني خوند به تر لاسه کړي او که چېرې بریالی نشي او تر بریا د مخه مرګ یې په لټه راشي په هغه وخت کې د خپلو زحمتونو اجر او بدله د «الواقعه»سوره مطابق په آخرت کې تر لاسه کوي، هغوی ته د ډالۍ وي!

# علم او علمي قانون

ځـای لـري چې بیاځلـي یې تکرار کړو ډاکټر سـروش هومـره د خدای او اسـلام په فکر کې ندی ځومره چې د هغې دندې سـرته رسولو په فکر کې دی چې په غاړه یی اخیستې: مارکسیزم سره د مبارزې اوپه ځوانانو او روڼ آندو په منځ کې د هغې د نفوذ خنثی کولو دنده ده. هغه دې موخي ته د رسـیدو لپاره، دغه ناسـمې نتیجې ته ځان رسـوي تر څوعلم خوار او بې ارزښته کړي، علمي قوانین او وړاندویني یی بې اعتباره وښـایی، او د دې لپاره چې نتیجه تر لاسـه کړي هڅه کوي چې وښایي علمي نړۍ او علمي ایدئولوژي چټې انګیرنه ده او نه ښـایې په هغه باور ولرو. هغه لمړی د واقعیتونو په شـناخت کې د علومو د ارزښت په نفې کولو بحث کوي او په دې باور دی چې علم د نړۍ په شناخت کې حد او برید لري چې «له هغې څخه وړاندې تللی نشي».

«علوم اصولاً هغه وړاند وینې کوي چې په عمل کې ګټورې وي خو دا چې ځومره حقیقت په ګوته کوي هغه جلا مسئله ده» (۳۱، مخ)

او دا پـه دې مانـا ده چې علم او علمي وړاند وینـې که څه هم په عمل کې ګټوري دي ولې په هغه اندازه چې حقیقت دی په ښـه کولی نشـي او نه یی په ښه کوي. په بل عبارت د مادي نړۍ پیژندنه هیڅکله انسان ته لاس نه ورکوي او لږترلـږه د هغـه یوه برخه هماغه شـان د«اسـرار په ډول» باقـي پاتې کیږي. اسلامي ریالیزم همیشه د مادي نړۍ د شناخت په مخ اسرار آمیزه پرده راکاږي د دې لپاره چې د خپلې اړتیا وړ اسرار د هغې تر شا پټ وساتي.

«علمـي انـدازه ګیري... د همدې مادي نړۍ په ښـودلو کې چې زموږ ورله لاس رسـی شـته دومره بې وسې ده نو هغه پټ نړۍ چې اساساً د علم دخالت

هلته نشته حالت به څه وي»(۳۳،مخ (تکیه د ف)

علم چې کله واقعیت سم منعکس کړي حقیقت یی تر لاسه کړیدی منتها په عین حال کې نسبي او مطلق حقیقت له مادي نړۍ څخه د انسان شناخت پرله پسې له سطحې څخه عمق ته او له کم عمق څخه زیات ژور عمق ته مخ په وړاندې تګ کوي. دا د علمي شناخت کلي قانون دی چې د علومو تاریخ ثابته کړیده. مادي نړۍ هیڅ سور نلري چې انسان ونشي کولی هغه ته لاس رسی ولري. منتها د نړۍ «اسرار» یوځل او یو وار نه کشف کیږي، ځکه چې د هغه یا دغه «سور» د کشف لپاره باید د تحقیق وسائل په واک کې وي او دغه وسائل یوازې او یوازې د مولده نیروتکامل د انسانانو په واک کې ورکوي او همدا ډول علمي سوچ (اندیشه) باید هغې کچې ته ورسیږي چې د «سور» رمز کشف او بربنډ کړي. مولد ځواک همیشه د پرمختک په حال دی لکه د علمي اندیشو په شان چې ورځ تر بلې تکامل کوي. په پایله کې هر وخت نوی او تازه «سور» یا «اسرار» کشف کیږي چې دغه چاره تر بې نهایته ادامه لري. په هر زمان کې د انسان لپاره د فرد په مقیاس یا د ټول بشریت لپاره ناپیژندل شوی واقعیت شتون لري خو نه پیژندونکي ندي.

وینا کوونکې د دې باطلې اندیشې د اثبات لپاره چې علم هیڅکله «ټول» حقیقت ته لاس رسی نشي پیدا کولی د علمي اندازه ګیري خطاګانو ته اشاره کوي کوم چې هم د باصری حس څخه اوهم د اندازه ګیري وسائلو له دخالت څخه را ټوکیږي. د بیلګې په توګه د مایعاتو د حرارت درجې د اندازه ګیري په وخت کې کله چې ترمامیتر په مایع کې دننه کوو د سنجش همدغه وسیله، په خپله د مایع یو مقدار حرارت جذبوي، له دې کبله د حرارت درجه چې ترمامیتر یی ښایې د مایع د واقعي حرارت درجه (هغه درجه چې مخکې د

ترمامیتر له منځلو څخه چې موږ غوښتل اندازه یې کړو) نده، برسیره پردې کله چې د ترمامیتر د حرارت درجه لولو زموږ سترګې هم لږ او زیاد غلطي کوي. یا په یو سیم کې د بریښنا د جریان اندازه کولو لپاره آمپرمتر چې په خپله مقاومت لرید جریان په مسیر کې وصل کوو نو کله چې دغه د سنجش وسیله د جریان د شـدت درجه ښـایی د بریښنا د جریان واقعي اندازه نده او داسې نور. په دې ډول عادي اندازه اخیسـتنې همیشه نږدیوالي سـره ملګري دي. په عادي ژوند کـې دغه نږدیوالـی دومره د اهمیت وړ ندی او سـتونزې نه زیږدوي. خو علم په دغو نادقیقو اندازه کولو بسـنه نه کوي او په هغه ځای کې چې لازمه شـي په هغه اندازه دقت څخه کاراخلي چې دتقرب اندازه صفرته رسـوي. د الکترون دالکتریکي بار د اندازه ګیري په هکله څه ویلای شـو چې $^{-۱۹}$(۱،۲۰۶) کولون (کولومب) دی. په خلاء کې د نور سـرعت د ۱۹۲۵ کالد اندازه ګېري مطابق پـه یوه ثانیه کـې ۲۹۹۷۷۴ کېلو متره ده چې حد اکثـر تقریب یې لس (۱۰) کېلومتـره ده په وروسـتۍ اندازه ګېري کې د سـرعت انـدازه ۲۹۹۷۹۲,۴۵۸ کېلومتـره پـه یوه ثانیه کې نښـه کوي چې تقرب یې تر لـس (۱۰) مترو زیات تجاوز نه کوي. نن ورځ د علمي اندازه کولو سروکار، میکرون $^{-۶}$(۱۰)یا حتی په نانو (۱۰)$^{-۹}$(Nano)سره ده. ښکاره ده چې علمي اندازه ګېري په معمولي اندازه کولو سنجول د علمي اندازه ګیري خطا کول او د شک القاء کول دي.

د نـن ورځې انسـان د فضا او نـورو کوراتو په عصر کې د مسـافرت ژوند کوي، منل شویده که چېرې اندازه ګیري په فوق العاده دقت سرته ونه رسیږي د بریالیتوب امکان نشـته. دا هغه مسـئله نده چې د وینا کوونکي له نظره به پټه وي خو هغه د ورځنیو عادي اندازه اخیسـتنو خبري د دې لپاره را مخ ته کوي چې د علمي اندازه اخیستنې دقت او اعتبار له منځه یوسي، تر دې ناوړه دا چې

د اندازه ګيري تر شا حقيقت مسخ کوي.

شونې ده چې انسان د ترمامتر په لوستلو کې لږ څه خطايي سره مخامخ شي خو دغه خطايي په ناروغ کې د تبې حقيقت او د حرارت حقيقت په کلي توګه نه نفې کوي. يو لنډه اشتباه د امپرمتر په ويلو کې د دې مانا نده چې د الکتريسته حقيقت او د هغه خواص له منځه ځي. خو وينا کوونکې د علمي اندازه ګيري په سر باندی د مادي نړۍ څېره تر پوښښتنې لاندې راولي. روښانه ده کله چې علمي اندازه اخيستني «چې د علم دقيقې برخې دي په دې ډول زيان منونکې دي او د مادي نړۍ د څېري په ښوولو کې دومره بې وسه شي د علم د نورو برخو تکليف معلوم دی» نتيجه دا چې علم موږ ته حقيقت ښوولی نشي له هغه څخه «بت» مه جوړوئ، هغه پرېږدئ، د توحيد او آخرت په لار روان شئ او په ځانګړې توګه علمي نړۍليد او علمي ايدئولوژي څخه ځان ليری وساتئ تر څو خسرالدنيا و آلاخره نشئ!

ډاکټر سروش وروسته له علمي اندازه اخيستنو څخه د علمي قوانينو بحث راپورته کوي. نه يوازې اندازه ګيري، بلکې«علمي قوانين هم همدا ډول دي» نه يوازې له علمي اندازه اخيستنې څخه بلکې له علمي قوانينو څخه هم حقيقت نه څرګنديږي او هغه وړاندوينې چې د دغو قوانينو پر بنسټ منځ ته راځي «له واقعيت سره لږ څه واټن لري» داسې واټن چې هيڅکله موږ ته نه معلوميږي. ولې «علمي قوانين په دې ډول دي»؟ ځکه چې «ټول هغه د يوې شرطي قضيئ په بڼه دي» او «که»(اګر) لري.

«تجربي ــ علمي قوانين په دې بڼه دي که داسې وکړو، له دې لارې لاړ شو، په دې طريقه مبارزه وکړو هغې پايلې ته رسيږو چې په دښمن بريالیتوب دی»(۳۰، مخ)

په دې ترتيب قانون يو شرطي قضيه ده او «که» لري، «که زه مثلاً د مصدق واټ څخه مستقيماً د طالقاني واټ سهېل لوري ته په لاره شم د انقلاب څلور لارې ته رسېږم» دا قانون دی، يا «که د ورځې په اوږدو کې آسمان شين وي لمر ځلېږي» دا هم قانون دی، «که څوک نا وخته د شپې په مړه خېټه ډېرخواړه وخوري د شپې به ترهوره خوبونه ويني دا هم د ډاکټر د «فتوا» له مخې يو «قانون» دی.

ګوری چې ښاغلی ډاکټر خپل علمي قانون څه خېله خندې او مضحکې وضعی ته رسولی او په څه مسخره بڼه يې راوړی دی. د دې ډول «قوانينو»د کشف لپاره څېړنې او علمي تحقيقاتو ته اړتيا نشته حتی علمي اندازه ګيري ته هم اړتيا نه ليدل کېږي، د هر چا تجربه حتی يو عامي کس هم دا ډول «قوانين» هغه ته ډالۍ کوي. که څېړې د پورته د (۳۰،مخ) مثال او توضيح د حکم په تاييد نه وای امکان يې درلود دغه انديشې په زړه کې لار پيدا کړې وای چې هر علمي قانون شرطي دی خو هره شرطي قضيه علمي قانون ندی. په خواشيني سره ياده شوی توضيح چې په عامي بڼه بيان شوې هرې شرطي قضيی ته د قانون بڼه ورکوي که داسې نوي هر څوک پوهېږي چې نشي کولای پورتني مثالونه علمي قوانين وګڼي يا يې حتی علمي قانون ته ورته يو شی وشميري. د هغه بل مثال هم: چې د حرارت په ثابتې درجه کې«که» د ګاز حجم نيمايی شي د هغه فشار دوه برابره کېږي د خپلې خبرې د تاييد لپاره ناروا ګټه پورته کوي. د ګازونو قانون (اووبلن ګازونه) دا دی چې «د حرارت په ثابته درجه کې د کاز حجم دفشار په نسبت معکوس بدلون کوي» وينئ چې قانون شرطي ندی او «که» هم نلري. منل شويده د قانون نتيجه دا کېږي چې «که» د کاز حجم نيمايی شي فشار يې دوه برابره کېږي. خو روښانه ده چې دغه عبارت قانون

ندی، د قانون یوه جلوه، او یو حالت دی. «که» منه له ونې څخه جلا شــي په ځمکــه لویــږي. دا د جاذبې عمومي قانون ندی. د جاذبې عمومي قانون کې په مطلق ډول د «که» خبره په منځ کې نشته. د جاذبې عمومي قانون، یو له څلورو سترو ځواکونو څخه ده چې ټول کائنات ګرځوي او یوه شرطي قضیه نده. دغه قانون را زده کوي چې ټول مادي اجســام یوبل جذبوي او د جاذبې قوه د هغه له کتلې سره مستقیم او د هغوی د فاصلې له مربع سره معکوسه رابطه لري. دا یو علمي قانون دی چې هیڅا ته دهغه د کشف او حتی د درک لاس رسی نشته په دې دلیل چې د پدېدو له ســطحې او ظواهرو څخه نه راپورته کېږي بلکې د هغوی له عمق او ماهیت او منځ څخه ســرچېنه اخلي. د ارشــمیدس قانون را اخلو: هر جســم چې په مایعاتو کې غوټه شــي په هغه جســم له لاندې څخه په پورته عموداً فشار وارد کېږي چې د بیځایه شوو مایعاتو وزن د جسم وزن سره مساوي دی. یا د اجسامو د سقوط قانون

(h= 1\2gt2) او داســې نور. دغه قوانین د مادي نړۍ د اجســامو تر منځ اړیکې په ګوته کوي. ضروري، عامې، تلپاتې او ټینګې اړیکې دي چې د هغوی لــه ماهیــت څخه را پورته کېږي. دغه اړیکې د انســان له ذهــن څخه بیرون او دانســان له شــعور څخه په مســتقله توګه وجود لري چې انســان یوازې د هغه شــناخت تر لاسه کولی شــي او هغه په خپل چوپړ کې نیسي. علمي قانون عام دی چې د مادي نړۍ ټول اجسام (لکه پورته یاد شوي درې قوانین) یا لږترلږه د ځینې شــیانو او پدېدو ډلې یا طبقې په کې شــاملیږي. اړینه ده ځکه چې دغه اړیکه ناچاره اجباراً عمل کوي، ټینګه او پایداره ده ځکه چې یو وار نه پیښیږي کېږي، هرکله چې شرایط برابر شي بیا تکراریږي، ماهوي دی ځکه چې د شیانو له عمق او ماهیت څخه سرچېنه اخلي او بالاخره عینیت لري ځکه چه د انسان

له شعور څخه بيرون او مستقل اړيکې نيسي. دا دهر علمي قانون خصوصيات دي. پــه علمــي قانون کې که هغــه طبيعي قانون دی او که اجتماعي، مشــروط ندی، «که» نشته. آيا ډاکټر سروش چې په ساعتونو ساعتونو د تلويزيون په مخ را څرګنديږي او په مختلفو فلســفي مســائلو بحث کوي واقعاً نه پوهيږي چې قانون څه شی دی، واقعاً نه پوهيږي هغه څه چې وړاندې کوي، قانون ندی؟ له مارکسيزم څخه د اسلامي رياليستانو د درک نشتون يو لامل دا ده چې هغوی د مفاهيمو په نړۍ کې د صوري منطق له ډګر څخه بيرون ګام نږدي او د فلسفې په نړۍ کې ــ د زړې او خوسا فلسفې په مانا کې ـــلاس او پښې وهي. برعکس د مارکســيزم ســروکار مادي نړۍ ســره دی هغه نړۍ ســره دی چې په هما غه شـــان شتون لري، هغه نړۍ سره چې شعور څخه بيرون او مستقل وجود لري. مارکســيزم او اســلامي رياليزم په دوه متفاوتي نړۍ کې لار وهي، دوه متفاوتې نــړۍ چــې هيڅکله د هغوی په منځ کې ســازش او پخلاينه امــکان نلري، دوه نړۍ چې يو يې تير وخت حتی ډېر پخواني تير وخت پوری او بل يې راتلونکې پــوری تړاو لري، دوه نړۍ چې يوه يې جامد، متحجره او ارتجاعي ده او بله د حرکت مخ په وړاندې ــ د خوځښت او انقلاب نړۍ ده.

دغه اړيکه «که دغه شـــان وي همدغه شـــان کيږي» چې وينا کوونکي يې د علــی قانــون په عنوان وړاندې کوي داســې اړيکه ده چــې ځينې وخت صوري منطق د علی اړيکې په ځای په کار اچول کيږي. دغه اړيکه د يو شي يا پديدې د وجود پيدا کولو لپاره يواځې د شرط په توګه کاريږي. خو هر شرط علت ندی. په دې ډول «که» د دې اړيکي په هکله د علت ــ معلول اړيکې ښکارندوی دی په بل مورد کې حتی علی اړيکه هم ښودلی نشي. د بيلګې په توګه کله چې وايو: که اوبو ته حرارت ورکړو په بخار بدليږي د حرارت او بخار تر منځ علی اړيکه

په ځای ده. خو دغه اړیکه چې «که شپه پای ته ورسیږي، لمر د غره له څوکې راپورته کیږي» علی اړیکه نده ځکه چې د شپې پای د لمر د راختلو علت ندی. لـه هغه ځایه چې ښـاغلی ډاکټرځینې وخت له غزل څخـه د بیتونو په راوړلو علمي مسائل حل و فصل کوي! بیځایه نده دغه «شرط» په دې ځای کې راوړو چې اړیکه برقراروي خو داسې اړیکه چې د هیڅ معقولې خبرې جوګه نده:

کنم مصالحه یکسر به صوفیان می کوثر

بشرط آنکه نګیرنـد ایـن پـیاله ز دستم

لـه یـاده مو ونه وځي چـې علی اړیکه د دې امر ښـکارندویه ده چې: «الف ضرورتاً ب منځ ته راوړي».

د وریځـې د الکتریکي بار تخلیه ضرورتاً تندر او تالنده زیږوي یا د بریښـنا جریـان اجباراً چـراغ رڼا کوي. په دې ځای کې هم «کـه» مطلقاً ځای نلري او په دې ډول د «که داسـې وي، هغسـې کیږي» اړیکه د علیت اصل په بشپړه او جامع ډول نه بیانوي.

منل شویده که چېرې علمي قوانین شرطي دي او«که» لري، کله چې علمي قوانیـن د واقعیـت پـه پیژندنه کې حاکم قوانین هغه تر لاسـه نه کړای شـي د دقیقې وړاند وینې امکان هم د هغوی لپاره نشته.

«علمي وړاندوینه هم چې د هغوی پر بنسټ (علمي قوانین ع ــ ف)په دې ځانګړي او مادي نړۍ کې سر ته رسیږي یوه اندازه له واقعیت سره واټن لري» (۳۳، مخ)

وړانـدې کتنـه په هغه صورت کـې امکان لري چې انسـان د یوې پدیدې یا یو شـي څخه دقیق شـناخت ولرئ د هغه منبع او د حرکت لوری هم وپیژني. خو که زموږ شـناخت هغه وخت «که دا شان وي، هغه شان کیږي» شرطي او

منحصر وي څرنګه کولای شو علمي وړاندې کتنه ولرو؟

د علمي وړاندی کتنې مسـئله هغه ډول چې ډاکټر سـروش یې خلکو ته په خولـه کې ورکوي هغه شـان نده. په دې ځای کې هـم اړینه ده چې څو بیلګوته مراجعـه وکړو. هر څوک کولی شـي د مطالعې له مخې، د هغوی ډېري نمونې پیداکـړي. کله چـې په ۱۸۶۹ کال کې روسـي کېمیا پوه مندلیـف د کېمیایی عناصـرو جدول یا یې ښـه ووایـم د کېمیایی عناصرو دوراني سیسـتم تدوین کاوه، پـه دې جدول کې د هغو عناصرو لپاره چې تر هغه وخت پورې کشـف شـوي نه وو خالي ځایونه پرېښودل شوي وو. په دې جدول کې حاکم قانون د دې امکان ورکړ چې نه یوازې دغو عناصرو ته نوم ورکړل شـي، بلکې د هغوی کېمیایـی خواص او حتی د هغوی اتمي جوړښـت هم وړاند ویني شـي. دغه عناصر وروسـته کشف شـول او علمي وړاندې کتنې د عمل بشپړه جامه په تن کړه.

آیا ښاغلی ویناکوونکي کولای شي موږ ته ووایی د دغې علمي وړاند وینې په کوم ځای کې له واقعیت څخه واټن درلود؟

د اتـم د کوچنیـو ذراتو په ډګر کې او د دایراک Dirac د تئوري په چوکاټ کـې کلـه چې په ۱۹۲۸ کال د الکترون په هکله وړاند وینه وشـوه باید داسـې ذره وجـود ولـرئ چې د الکتریکي بار له لحاظـه مخالف وې یعنې مثبت وي. پـه ۱۹۳۲ کال کې دغې وړاند وینې حقیقـت وموند او د پوزیترون په نوم ذره کشـف شوه او وروسته تر هغې وړاند وینې وشوې چې هره ذره خپله ضد ذره لري. په واقعیت کې همداسـې وه چې په تدریج سـره ضد ذرات یو په بل پسې کشف شول (د پروتون ضد، د نوترون ضد او داسې نور). (ځینې ذرات د ضد ذرات نلـري لکه فوتون). ولې دغه دقیقـې علمي وړاند وینې چې تحقق یې و

موند په کوم ځای کې حقیقت سره واټن لري؟

د نسبیت د تئوري تر کشف وړاندی د فزیک ټول پوهان په دې باور وو چې په فضا کې د نور خپریدل همیشه په مستقیمه لیکه حرکت کوي. انیشتین چې جاذبې قوه یې د مقناطیسي میدان په ډول یو میدان پیژانده وړاندوینه وکړه چې د جاذبې قوی د میدان په مجاورت کې نور له مستقیم خط څخه انحراف کوي او کږوپیږي. د دې وړاندوینې د صحت معیار له یوې لارې شونی وو او هغه دا چې د بشپړ کسوف په وخت کې چې بشپړه تیاره منځ ته راځي، که ستوري، له خپل عادي وضعیت څخه نسبت لمر ته لرې تر سترګو شي د هغوی نور باید د لمر د جاذبې په میدان کې کږوپ شي. دغه وړاندوینه د ۱۹۱۹ کال د مې میاشتې په ۲۹ نیټه اثبات ته ورسیده او نن ورځ داینشتین وړاندوینه د ټولو پوهانو د منلو وړ ده. د دغې وړاندوینې کوم ځای عیب لري او له حقیقت څخه څومره واټن لري؟ د مندل په نوم یو اطریشي کشش د دوه ډوله نخودو په پیوند کولو سره چې کوم نتایج تر لاسه کړل دې پایلی ته ورسید یایی بهتره ووایم وړاندوینه یې وکړه چې په ژوندیو موجوداتو کې د وراثت عامل مادي ذرات دي چې هر یو یی په جلا جلا ټوګه له یو نسل څخه بل نسل ته لیږدوي. د دغه پوهان تحقیقات او وړاندوینه تر څو کلونو له یاده ووتلې او هیچا هغه ته توجه ونکړه. خو بالاخره د هغه وړاندوینه صحیح ثابته شوه او نن منل شویده چې د وراثت عامل د ژن په نوم ذره ده چې د کرموزم په امتداد کې ځای لري. مګر له دې بل څه دي چې د اجسامو د سقوط په قانون کې هره ګړۍ کولی شو د سقوط په حال کې د جسم فاصله د هغه له پیل څخه په دقت پیش بیني کړو؟ آیا دا واقعیت ندی چې کولی شو د نسبیت قانون له مخې د هر جسم کتله د هغه د سرعت په تړاو په دقیقه توګه وټاکو؟.

ګورو چې نه علمي قوانین شرطي دي، نه علمي وړاندوینې له «حقیقت سره لږ څه واټن لري» او نه علمي اندازه اخیستنې هغه ډول دي کوم چې ډاکټر یی په ګوته کوي. د وینا کوونکي اصلي موخه د علمي نړۍ‌لید او علمي ایدئولوژي نفې کول دي او دې موخې ته د رسیدو لپاره ښایی لږ تر لږه د علم مقام راټیټ کړي، علم بې اعتباره کړي او په دې کار کې تر هغه ځایه وړاندې ولاړ شي او ووایی چې «حتی نشو کولي چاته اطمینان ورکړو چې سبا لمر راخیږي. په سلګونو زره وارې تر اوسه لمر راختلی خو ډاډ نشته چې سبا لمر راخیږي» (۴۰، مخ). په دې ډول هره ګړۍ شونې ده چې نړۍ ګډوډ شي، هیڅ شی ضروري ندي او ټول شیان د اتفاق او تصادف محصول دي. ځکه نشو کولی ډاډمن اوسو چې سبا به لمر له ځلا څخه نه پاتې کیږي او کهکشان به په ځمکه نه رالویږي او ځمکه به له حرکت څخه نه پاتې کیږي، ځمکه به د عطارد پر ځای او عطارد به د ځمکې پر ځای نه ځای پر ځای کیږي او په دې ډول نور. کله چې په نړۍ کې هیڅ نظم او ترتیب نشته او هره ګړۍ امکان لري یوه پیښه رامنځته شي، هغه وخت تاسې منئ چې د محشر په ورځ لمر د مغرب له خوا را پورته کیږي، د انسانانو سترګې د سر له پاسه په ځای کیږي او لمر د ځمکې سطحې ته څو متره نږدې واټن کې ځای په ځای کیږي او خردجال سهاروختي له ښکر، لکۍ او سوم سره کله د قد په کوتاه کیدو او کله د قد په لوړیدو مومنانو ته ځان ښکاره کوي او په دې ډول نور زیات توهمات او انګېرنې!!!

هوکې نه ښایی علم څخه بوت جوړ کړو او د هغه پالنه وکړو، اصولاً پرستش هرڅه چې وي د هغه موضوع، له ځان څخه بیګانګي ده، خو په عین حال کې نه ښایی د ځوانانو د ګمراه کولو لپاره حقایق واړول شي، نه ښایی مارکسیزم سره د مبارزې لپاره د علم مقام ته سپکاوی وشي، نه ښایی د خلکو

د ګمراه کولو لپاره هره وسیله مجاز وګڼو. حیرانوونکې خو دا ده ښاغلی ډاکټر چې د فرهنګي انقلاب مســوولینو څخه یو تن دی، تاســو ته ډاډ نه درکوي چې ســبا لمر راخیږي. افسوس پداسې فرهنګي انقلاب چې داسې کسان یې د ثمر رسولو مامور وي.

د عینــي قوانینــو وجود یواځې طبیعت پورې تړلي نــدي. په ټولنه کې هم دا ډول قوانیــن وجود لــري او عمل کوي. په ټولنه کې هــم قانون عام، ضروري، ټینګ، ماهوي او په عین حال کې عیني یعنې له شعور څخه مستقل اړیکې دي. سره له دې هم د طبیعت د قوانینو اود اجتماعي قوانینو تر منځ یو اساسي توپیر وجــود لــري چې دغه توپیر د هغوی د اغېزی په طریقې کې دي. په طبیعت کې یواځې بې شــعوره او ړانده ځواکونه دي چې یو په بل باندی د اغیزې له مخې قوانینو ته ژوند ورکوي. په طبیعت کې هیڅ شی چې د شعور، ارادې او هدف لرونکــې وي وجود نلري. خو پــه ټولنې او د هغې په تکامل کې او هغه لاملونه چــې تاریخ جوړوي له شــعور، ارادې او هدف څخه برخــه مندي. په ټولنه کې هیڅ شی نه رامنځ ته کیږي مګر دا چې په اګاهانه ډول یوې ټاکلی موخې ته د رسیدلو لپاره وي.

خــو د انســانانو اګاهانه فعالیت دغه واقعیت ته بدلــون نه ورکوي دا چې د تاریخ جریان هم د عامو او داخلي قوانینو له لاری منځ ته راځي. ټولنیز قوانین یواځــې د انســانانو د ذهني فعالیتونو له مخی په ټولنه کــې رامنځ ته کیږي دغه مطلب دومره ښــکاره ده چې بیان ته اړتیا نلري. ټولنه یو انســاني چاپیریال دی قوانیــن یــی هم د همدی چاپیریال په ډول دي. که انســان نه وي ټولنه نشــته، طبیعــي ده چــې اجتماعي قوانین هم نشــته. ټولنه د اړیکــو مجموعه ده چې د اجتماعي ژوند په بهیر کې د انســانانو په منځ کې ځای پر ځای کیږي. د تاریخ

پــه مختلفــو پړاونو کــې دغه اړيکې يوتربلــه توپير لــري او د توليدي ځواک د تکامــل درجې پورې تړاوو لري. په هغه محيط کې چې د انســانانو او د هغوی د فعاليتونــو او د دغو فعاليتونو په بهير کې تر اړيکو پرته نور څه نه وي طبيعي ده چې په هغه محيط کې قوانين هم د انسانانو او د هغوی د فعاليتونو له لارې منــځ تــه راځي. کله چې د ټولنيزو قوانينــو او د هغوی د اغيزی په هکله خبرې کوو نشــو کولی او نه ښــايی چې د انسانانو په فعاليت سترګې پټې کړو، ټولنيز قانون کوم وحشي او داړونکې حيوان ندی چې له طبيعت يا د «ماوراء طبيعت» له خوا د انســانانو په ســر رادانګي او هغوی تر پښو لاندې کوي. ټولنيز قوانين په خپله د انسانانو د اګاهانه، ارادي او هدف لرونکي فعاليت په بنسټ راپورته کېږي. معلومه نده چې يو شــمير کســان ولې په دغه ښــکاره او منل شوی امر نه پوهيږي. تاســو ته وايی که چېری سوسياليستي او سوسياليزم ضرورت دی او ناچــاره د عينــي قوانينو له مخی رامنځ ته کېږي نو د انســانانو فعاليت ته څه اړتيــا ده او حتــی ګوند ته څه ضرورت دی. آيا دغه کســان نــه پوهيږي چې د سوسياليســتي انقلاب ضرورت د انسانانو له فعاليت څخه پرته وجود نلري او نه تحقق پيداکولی شــي، يا پوهيږي خو مارکســيزم ســره د مبارزی او د خلکو تيرايســتلو لپاره هغه عنوان کوي؟ سوسياليســتي انقلاب د انســاني ټولنی يوه پدېــده ده او دهغــې ضرورت هم د انســانانو د ورځنې فعاليتــاو د هغه تاريخ د تکاملــي پړاوو څخه را ټوکېــږي. د کارګرانو طبقاتي مبارزه او د ســازمانونو جوړول د دې مبارزې پرمخ بيولو لپاره، د سوسياليستي انقلاب او سوسياليزم په لوري يو حرکت دی. لکه د سوسياليســتي انقلاب او سوسياليزم د دښمنانو فعاليت چې دهغه په مخ خنډونه جوړوي او مخه يی نيسي. خو يوشی چې منل شــوی هغه داده چې د سوسياليســتي انقلاب قانون له همدې طبقاتي مبارزي

څخه راټوکیږي او بالاخره خپله اغیزه په ډاګه کوي او پرته له دې بل څه کېدای نشي.

د سوسیالیستي انقلاب قانون د انسانانو فعالیت څخه منځ ته راځي. دا قانون سره له دې چې په خپله د انسانانو د فعالیت ثمره ده یوه عیني اړیکه ده، ماهوي او دروني اړیکه ده چې د پانګوالی ټولنې د بررسي له تل څخه راټوکېدلی نه له هغه پدېدو څخه چې په سطحه کې تغلول کېږي، ټینګه او تکرار کېدونکې اړیکه ده په دې مانا هر ځای او هر وخت کې چې پانګوال نظام منځ ته راشي ژر یا ځنډ سوسیالیستي انقلاب پیښیدونکې دی. دغه قانون مارکس نده راوړی، دغه قانون پانګوالې نظام سره منځ ته راغلی. مارکس یواځې هغه کشف کړی لکه نیوټن چې د جاذبې عمومي قانون کشف کړ یا ډاروین چې د ژوندیو موجوداتو د تکامل تئوري. د طبقاتي مبارزي قانون هم همدا شان دی: عیني قانون دی چې د انسان د شعور او ارادې تر شا وجود لري، ضروري دی ځکه هغه ټولنه چې په متخاصمو طبقاتو ویشل شوې وي پیښیدل یې حتمي دي. ټینګ او پایدار دی ځکه هر زمان او هر ځای کې چې دا ډول طبقات منځ ته راشي دغه مبارزه را مخ ته کیږي. سوسیالیستي انقلاب هم د اجتماعي انقلاب د قانون یوه بڼه ده او د ټولنې د تکامل یو ځانګړی پړاوو دی چې دهمدې خصلت لرونکې دی او داسې نور. لکه چې وینو ټولنیز قوانین په خپلو خواصو کې د طبیعت قوانینو سره اختلاف نلري. اصلي توپیر په دې کې دی چې په طبیعت کې قوانین د وړندو او لاشعورو ځواکونو تر اغیزې لاندې را منځ ته کیږي او په ټولنی کې د انسانانو د فعالیت او د انساني اړیکو تر منځ، په ځانګړی توګه تولیدي او اقتصادي اړیکې په هر ځای کې د قانون په بڼه حکم چلوي، چې د هغه پیژندنه انسان ته د وړاندوینې او وړاندی

کتنې امکان برابروي. ټولنیز قوانین هم له دې امر څخه مستثني ندي، منتها دغه ټکي ته باید پاملرنه وکړو چې ټولنه د مادی د حرکت یو له ډېرو پیچلو او بغرنجو شکلونو څخه دی، چلند یې هم د انسانانو، ټولنیزو ټولګیو او د طبقاتي ځواکونو فعالیت سره پیوند لري چې په نتیجه کې د تاریخی پیښو وړاندوینه د یو سلسله مقدماتي تئوریکانو پیژندنې ته او په عین حال کې د علمي اسلوب کارولو ته اړتیا لري، هغه اسلوب ته چې د طبیعت او ټولنې عامو قوانینو سره سمون ولرئ. هغه تئوریک مقدمات چې مارکسیزم پی ریزي کړي په لنډه توګه دغه ډول دي:

لمړی باید اجتماعي واقعیتونه تحلیل شي او وپیژندل شي، د دې ډول ټولنې پیژندل (په هر مقیاس چې وي) یوازې د ماتریالیستي تئوري پر بنسټ، د تاریخ او ټولنې حرکت څخه تر لاسه کېږي، هغه تئوري چې د موولده ځواک او د تولیدي او طبقاتي اړیکو د تکامل ضمانت کوي، د طبقاتي مبارزی، د اقتصادي او ټولنیز تکامل او بدلون ضمانت ورکوونکې دی.

دویم باید د ټولنیز طبقاتي ځواک او د هغوی د ژوند شرایط، دهغوی طبقاتي ګټې او د هغوی طبقاتي چلند او برخورد وڅېړو او بررسي یې کړو. لکه چې وویل شول ټولنیز قوانین د انسانانو د فعالیت له لاری تبارز کوي. اجتماعي وړاندوینې هم د انسانانو د عمل او فعالیت له لارې تحقق پیدا کوي. په همدې بنسټ باید طبقاتي محرکه ځواک تشخیص شي او په عین حال کې توجه وشي تر څو په پام کې نیول شوي راتلونکي امکانات او ټولنیزې دورنما توانمندي، ګټې او هدف سره همغږي ولري.

دریم یواځې د ډیالکټیکي جبر، یعنې د ټولنیزې قانونمندي او اصل علیت د پیژند لو په بنسټ علمي وړاندوینه امکان تر لاسه کوي. هر ډول راتلونکې

وړاندوینــه چې د تاریخي جبر پر بنســټ ولاړه نــه وي پرته له خیالونو او چټي انګیرنــو بل څه ندي. هېره مو نشــي چې ډیالکټیکي جبــر، ټولنیزو قوانینو ته د ضرورت او اتفاق د وحدت په سترګه ګوري او دا په دې مانا ده چې راتلونکي حوادث باید د ضرورت او اتفاق د یوې واحدې مجموعې په توګه درک شــي. (د ضرورت او تصادف مبحث ته مراجعه وکړئ)

د اجتماعي وړاندوینې میتود (د عامې فلســفی له نظره) هماغه ماتریالیستي ډیالکټیک دی. ماتریالیستي ډیالکټیک د وړاندوینې لپاره د انسان فکر داخلي او بهرني تضادونو او د دغه تضادونو تر منځ مبارزې ته متوجه کوي، هغه مبارزې ته چې راتلونکي تمایلات له هغه څخه راټوکېږي. ماتریالیستي ډیالکټیک فکر د داخلــي او بیروني پیچلو اړیکو په لورکاږي، د پیچلي تکامل په لورکوم چې پرله پســې کمي بدلونونو او یوځــای کېدل،کېفي بدلونونــو او پریکېدل دي. د انقلابي اسلوب په کارول باید انقلابي او انتقادي تفکر سره یو ځای شي، هغه څه چې نوي دي وســاتل شــي او هغه څه چې زاړه او د جمود فکري محصول دي پریښــودل شي. ماتریالیســتي تئوري د ټولنې او تاریخ تکامل او د انقلابي وړاندوینې اسلوب، مارکس او انګلس ته دا امکان په برخه کړ چې په پانګوالي نظــام کې د سوسیالیســتي انقــلاب وړاندوینه وکړي چې دغه وړاندوینه ســمه او صحیح وه، علمي وه او د ۱۹۱۷ کال د اکتوبر میاشــت کې یې په روســیه کې تحقق وموند. همدغه انقلابي تئوري او اســلوب، د امپریالیزم تر ســلطی لانــدې هیوادونو کې د امپریالیزم ضد د دموکراتیک انقلاب وړاندوینه شــونې کړه. هغه کســان چې په جمود فکــري اخته دي، هغه څوک چې انقلابي تفکر خوار ګڼي او د خپل تفکر طریقه انقلابي شــمیري، هغه څوک چې اندیشــې، مفاهیــم او تئــوري د انســان د فطرت محصــول ګڼي او نه د نــړۍ له واقعیت

څخــه، نشــي درک کولی چــې واقعيت هميشــه د بدلون په حــال دی او ځينې وخت بدلونونودومرهوړاندې ځي چې د واقعيت کېفيت او ماهيت بدلون سره مخامخ کوي، پداســې وضعيت کې هغه تئوري چې پرون صحيح وه نن غلطه له صحنې څخه راوځي. هغې پســی نښــتل برخلاف د علمي او انقلابي لارې په مبارزه کې د ماتې او ناکامي سبب ګرځي. په مارکس نيوکه کوي چې د اروپا د انقــلاب په هکله يی وړاندوينه ســمه ونه ختله. مارکــس د پانګوالې ټولنې د تحليل په اساس، هغه ټولنه چې اوس هم د غوړيدلو په پړاو کې وه او د تکامل صعودي قوس يي طی کاوه، دې نتيجې ته ورســيد چې سوسياليســتي انقلاب بايــد پــه يو وخت د اروپــا په صنعتي هيوادونــو کې يا لږترلــږه د اروپا په څو صنعتي هيوادونو کې منځ ته راشــي ترڅو برياليتوب ته ورســيږي. مارکس په ســمه وړاندوينه کوله که چېرې په يو صنعتي هيواد کې کارګران د سوسياليستي انقلاب لپاره راپورته شي او حتی که انقلاب د بورژوازي په نسکوريدو پای ته ورســوي، د اروپا سراسر بورژوازي به هغوی سره د جګړې لپاره راپورته کيږي او انقــلاب به خپــه کړي. په دې ډول انقلاب بايد په يــو وخت لږترلږه په څو ســترو صنعتي هيوادونو کې په مخ واچول شــي تر څو د اروپا بورژوازي ته د پرولتاريا په وړاندی د اتحاد مجال تر لاسه نشي. دغه وړاندوينه په هغه وخت کــې کامــلاً صحيح وه. تاريخ د دې ګواه ده چې د فرانســی او المان بورژوازي څرنګــه پــه ګډه د پاريس کمون دغه د پرولتاريا لمړنی سوسياليســتي دولت په وينــو کې ډوب کــړ، تاريخ د دې ګواه دی چې نړی والې بورژوازی په څه ډول د شــوراګانو د هيواد د بريالي سوسياليســتي انقلاب په وړاندي په ګډه راپورته شول، خو د پرولتاريا او نورو زيارکښانو له وطن څخه د دفاع په وړاندی ناکام پاتې شول.

خــو صنعتي ټولنه په خپل تکامل کې مخ په وړاندې ولاړه او ســرمایه داري یــو نــوي پړاو ته، امپریالیســتي مرحلې ته ننوته. د انحصــاري تضادونو په دې عصر کې امپریالیستي دولتونه دومره اوچت پورته کیږي چې څه ناڅه په اوږدو امپریالیســتي جګړو پای ته رســیږي. همدغو تضادونو او جګړو د یو ځانګړي هیواد پرولتاریا ته امکان ورکړ چې د انقلاب لپاره راپورته شــي او هغه ثمر ته ورســوي، پرته له دې چې نړیواله بورژوازي د انقلاب د سرکوب لپاره فرصت پیداکــړي. لنین د امپریالیــزم د تحلیل له مخې او البتــه د ټولنې دعیني تکامل او د بــورژوازي ټولنې په قوانینو تکیه کولو ســره پــه خاصه توګه نوې وړاندوینه وکړه، سوسیالیســتي انقلاب یې په یو واحد هیواد کې د مارکس د وړاندوینې په ځای، چې د پرولتاریا انقلاب به په یو وخت په څو سترو صنعتي هیوادونو کې منځ ته راځي، خپله وړاندوینه ریښتینې کړه، دغه وړاندوینه هم سمه وه چې د ۱۹۱۷ کال اکتوبر کې یې په تزاري روسیه کې تحقق وموند.

مائوتســه دون چې د مارکسیســتي ډیالکتیک اصول په یوه نیمه مستعمره او نیمه فیودالي هیواد کې په کار واچوه او د چین د ټولنې انقلابي او انقلابي ضد ځواکونو دقیق تحلیل اود مارکسیســتي علمي اســلوب په کار اچولو سره نوي او تــازه قوانین په لاس راکړل، نورې وړانــدې ویینې یې وکړې چې د مارکس لــه وړاندې ویینو ســره یې توپیر درلود، د هغه ټولې وړاندوینې واقع شــوي په ۱۹۴۹ کال کې انقلاب بریالی شــو چې پرته له سوسیالیستي انقلاب څخه بل څه نه وو.

په لومړي ځل دا ډول انقلاب یو نیمه مســتعمره او نیمه فیودالي هیواد کې پیښــیږي چې ظاهراً یې د مارکس له وړاندوینې ســره سمون نه درلود. خو هغه څــه چــې مارکس د هغو په کشــفولو لاس برې شــو، په صحیــح ډول همدغه

کشـف دی چې د ټولنیزو وړاند وییلو بنسټ جوړوي، همدا ده چې د طبیعت او ټولنې د تکامل عام قوانین او په عین حال کې د ټولنې د تحقیق او بررسـي اسـلوب د مادي ډیالکټیک اسـاس پـه لاس راکړ. هغه کسـان چې د طبیعت قوانین دومره سسـت او کاواکه معرفي کوي چې حتی نشي کولی د سبا ورځی د لمـر ختلو ډاډ ورکړي، بیا اجتماعـي قوانینو ته تر دې زیات تنزل ورکوي او تر هغه ځایه تنزل ورکوي چې د قانون مطابق وړاندوینه څه چې په خپله قانون تر خاورو لاندې کوي

«د تاریخي قوانینو په څنګ کې یو بل سـتر نا مطمینه عنصر هم وجود لري هغه دا ده کله چې موږ نشو کولی د یوې وړاندې ویل شوی حادثی په هکله ډاډ من اووسو په داسې حال کې چې په خپله وړاندې ویل شوې حادثه په بل ډول بدلون ومومي یا وځنډیږي یا د تل لپاره خنثی شي»(۳۶، مخ)

نړیوالـه بـورژوازي (البته چې د بریالي سوسیالیسـتي هیواد بـورژوازي او خرده بورژوازي څنګ کې نیسـي) د پرولتاریا او د هغوی د لارویانو د هڅو په وړاندی له خپلو ټولو قواوو او ټولو وسـایلو او د مبارزی له ټولو لارو څخه په ګټې اخیسـتو سره کوښـښ کاوه تر څو د پرولتاریا هڅې په انقلاب کې ناکامه کړي او تر شـا یـی کړي چې تر ډېر ځایه په خپل کار کـې بریالي هم دي. خو دا په دې مانا نده چې سوسیالیسـتي انقلاب به نه پیښـیږي او سوسیالیزم به د سـرمایه داري په ځای نه کښـیني. پانګه واله ټولنه سوسـیالیزم ایجابوي. هیڅ تـلاش او هڅه د دغه ضرورت مخه نشـي نیولی او عین حـال کې په دې مانا هم نده چې د سوسیالیستي انقلاب او سوسیالیزم وړاندوینه ده چې بورژوازي تـه د مقابلې انګیزه ورکوي او د سوسیالیسـتي انقـلاب قانون له منځ وړي، په پانګوالـی ټولنه کـې د پرولتاریا وضعیت د بورژوازي پر ضـد مبارزه ایجابوي

او بورژوازي هم پرولتاريا سره د مقابلي لپاره په انتظار نه کښیني چې مارکس پیداشي او سوسیالیستي انقلاب پیش بیني کړي. اساساً سوسیالیستي انقلاب د طبقاتي مبارزي په بنسټ ټينګ ولاړ دی او طبقاتي مبارزه د بورژوازي مقابله هم د پرولتاريا د ناکامولو لپاره په ځنګ کې لري. دغه اندیشه چې اجتماعي وړاندوینه «تر نظر لاندې نیول شوی حادثه بدلوي یا هغه د همیش لپاره خنثی کوي» دا ډول وینا په واقعیت کې پرته د ټولنیزو قوانینو له انکار څخه بل څه ندي، کله چې قانون شته او وړاندوینې د قانون په بنسټ سرته رسیږي، بیا نو نه حادثه بدلیږي او نه د همیشه لپاره خنثی کیږي؛ البته په ټولنیزو قوانینو کې د مخالفو ځواکونو د چلند او برخورد له مخې د وړاندوینې د پیښیدلو وخت نشو ټاکلې خو دا په دې مانا نده چې وړاندوینې به نه پیښیږي. که علمي وړاندوینې پیښې نشي، قانون تر سوال لاندې راځي. په واقع کې وینا کوونکې په قوانینو او علمي اصولو چې په ټول مادي نړۍ (طبیعت او ټولنه) حکم چلوي باور نلري او د جبر تاریخ مفهوم چې پرته له قانونمندي او په ټولنه کې د علت او معلول اړیکو څخه بل څه ندي، یو تنګ دهلیز بولي چې ګویا مارکسیزم په هغه کې تړل شویدی، ګویا مارکسیزم د دې لپاره چې ټول خلک ځانته راوغواړي، د دې لپاره چې د «علمي مبارزینو زړه» لاس ته راوړي د تاریخ جبر څخه یی جنډه جوړه کړی، او که نه داسې کسان چې علم سره سروکار لري او په هغه ښه پیژني پوهیږي چې د تاریخ جبر کوچنۍ علمي ملاتړ نلري، اساساً دغه ډول مسایلو ته په علم کې ځای نشته. په علم کې هیڅ چاته وعده نه ورکول کیږي. هغه غواړي د خپلو همکښانو په ډول په دغه اوتو بوتو خپلې رنګ بایللې، زنګ وهلې او خوسا شوې فکر په ځوانانو وپلوري. خو دغه باطل شوي ټوکي د هغوی په تروټه او بی رونقه بازار کې پېرودونکې نشي پیداکولی.

نن ورځ په ځانګړې توګه ایران کې تر پنځو (۵) کالو وروسته تجربو په ډاګه کړه چې اسلامي جمهوری نشي کولی په دغه چلوټو او غولولو کار تر منزله ورسوي. مارکسیزم په ډېر قوت د حقیقت د لارویانو ذهن او روح تر خپلې اغیزې راولیاو د پرولتاریا لارویان چې د بشریت ځلانده راتلونکې ته سترګې په لار دي زیات قوت وربخښي. په ایران کې مارکسیزم او کمونیزم د آخونانو تبلیغات نه درولی شي او نه یې له منځه وړلی شي. کولای شي کمونیست اعدام کړي خو کمونیزم اعدامولی نشي. ایران د سرمایه داري په لار روان دی او په څنګ کې یې پرولتاریا ورځ تر بلې په زیات کمیت او غوره کېفیت د بورژوازي په وړاندې قد پورته کوي، که کولای شي دغې وضعی ته بدلون ورکړي، که کولای شي سرمایه داري نظام، بورژوازي او پرولتاریا نابود کړي، بیا کولای شي چې کمونیزم او مارکسیزم هم له منځه یوسي. خو ټولنه په شا نه ځي د اسلامي جمهوري د واکدارانو هلې ځلې چټي او بیځایه دي، په ایران کې به سرمایه داري ته یا د همدوی له خوا یا د نورو زبېښاکګرو له خوا دوام ورکول کیږي او مخ په وړاندې به درومي. مارکسیزم او کمونیزم د همدې سرمایه داري نظام زیږنده ده، د داسې نظام د ټغر ټولول پرته له پرولتاریا څخه د بل هیڅ ځواک له وسی پوره نده. که نشي کولای د سرمایه داري نظام نابود کړي، په همدې ډول نشي کولی، د مارکسیزم او کمونیزم پرمختک، تکامل او د هغه وروستۍ بریا ته خنډ شي.، مارکسیزم او کمونیزم نه مري او تر څو چې ټولنه د طبقاتي نظام له بند څخه آزاده نکړي خپل ژوند او خپلې لار ته به ادامه ورکوي. دغه موخې ته رسیدل له مبارزي او هغې ته له دوام ورکولو پرته نه تر لاسه کیږي. دا هغه موخه ده چې مارکسیستان په هغه باور لریاو د مبارزي لار ته به تر پایه دوام ورکوي.

## آیا طبیعت شعور، اراده او موخه لري؟

ډاکټر شریعتي د ماتریالیزم پرخلاف په دې باور دی چې:

«نــړۍ یو ژونــدی، د موخې درلودونکې، په خپله پوه (خود آگاه) د شــعور خاوند او د ایده آل او موخې لرونکې» دی. («توحیدي نړۍلید»، ۲۴ مخ)

هغه له نړۍ څخه یو مشخص تعریف په لاس نه ورکوي. د هغه په وړاندې، یــو ځای کې «نړۍ یعنې وجــود»، وجود، طبیعت او ټولنــه دواړه په څنګ کې نیســي (زه په دې بحث کې «ماوراء طبیعت» ســره ســروکار نلرم)، خو په بل ځــای کې توحیــدي نړۍلید په دې باور دی چې «نــړۍ او طبیعت یو کالبد او درنګه دی» (هماغه ځای، ۳۵ مخ) له وروســتۍ خبرېدا تر لاسه کېږي چې نړۍ او طبیعــت دوه جــلا جلا «درنګې» دي او طبیعت د نړۍ یوه برخه نده. له دې نیمګړتیاوو سره سره هغه څه چې دهغه له لیکنو څخه یې درک کولی شو هغه دادي چې طبیعت د نړۍ یوه برخه ده او پرته له دې بل څه هم کېدای نشــي. د دی لیکنــی پــه هر ځای کې چې د طبیعت څخه بحــث کېږي منظور ټول عیني واقعیتونه دي پرته له انسان او انساني ټولنې.

## آیا طبیعت ریښتیا هم د شعور خاوند دی؟

د ډاکټر شــریعتي په نظر طبیعت (نړۍ) شــعور لري، اراده لري، ایده‌آل او هدف لري او په دې ډول د انسان ټولې رواني پدېدې طبیعت ته تعمیم ورکول کېږي.

لمړی به وګورو چې شــعور څه شی دی. شــعور د انسان د رواني فعالیتونو مجموعــه ده، هغــه فعالیــت دی چې په هغه کې د خارجي نړۍ ټول حســي او تعقلي اشکال انعکاس مومي، ټول انساني عواطف، احساسات او اراده په ځان

کې رانغاړي او په دې مفهوم يوه پديده ده چې انســان ته ځانګړې شــوې. دغه ډول ډول انځورونه پيچلی رواني پروســې، ارګانيک فونکسيونونه د مغز په نوم ياديږي چې د جوړښــت له پلوه تر ټولو ډېر پيچلی او بغرنج شــکل دی چې تر اوســه متحرکې مادی ليدلی ندی. مغز، د انسان د رواني پديدو ارګان دی. البته انسان يواځنې حيوان نه دی چې له رواني پديدو ځينی برخه ور دی. هرڅومره چې حيوان د تکامل په لېکه کې وروســتی ځای ولري د هغوی عصبي سيســتم ســاده او په پايله کې د هغوی رواني پديدې په کښــته درجو کې ځای لري او په هغه ځای کې چې مرکزي عصبي سيستم نشته هلته هيڅ ډول رواني پديده هم نشته.

که په تيرو وختو کې د ژونديو موجوداتو د تکامل تئوري او د انسان حيواني منشاء د سرسختانو مقاومت سره مخامخ کېده، نن ورځ په افريقا کې وروستيو کيندنو د شک ځايونه له منځه يوړل او په ډاګه يې کړه چې انسان دحيواناتوله نړۍ څخه راپورته شويدی.انسان د خپلو بيولوژيکي صفاتو سره سره د زرګونو سوه کلونو په موده کې د حيواناتو له جرګې څخه متمايز نه وو د هغوی په ډول او د هغوی په اندازه د طبيعت د ځواک تر اغيزې لاندې قرار درلود او د هغوی په شــان هرهغه څه چــې طبيعت ورله اختيار کې ورکــړي وو قناعت کاوه، تر ډېره ځايه يې د انســان ډوله بيزوګانو په شــان د ونو په ښاخونو کې د ښکار او ميوه ټولولو لپاره ګټه اخيسته. په دغه ټول دوران کې نه د شعور او مذهب او نه د منطق او بيان پته ليدل کېږي. دغه ادعا چې

«تاريخ په هر ځای کې انســان څخه خبر لري خدای او مذهبي احساس يی ورلــه پــه څنګ کې ليدلی دی، پرته له دې د «بې مذهبه ټولنې» مفهوم د تصور وړ نده»

حقیقت او علمي واقعیتونو سره اړخ نه لګوي. انسان باید د اجتماعي شعور یوې ټاکلی درجې ته رسیدلی وي تر څو د مذهب مفهوم تر لاسه کړي.

د انسان لومړني فرهنګي آثار (Homo) تر دوه میلیون زیاتو کلونو وړاندی تـړاوو لـري، په دې ځای کې فرهنګ په عامه مانا نظر کې نیول شـوی یعنې د هغه شـیانو مجموعه چې انســان یی په ټولنه کې تر لاســه کوي او هغه څه چې پخوا یی تر لاسه کړيدي، له مختلفو تکنیکونو نیولی تر عاداتو، دودونو، آثارو او علمي، هنري، فلسـفي او مذهبي افکارو او داســې نور. د انسان د تکامل په اوږد تاریــخ کــې باید تیرو اویا (۷۰) او اتیــا (۸۰) زره کلونو ته مراجعه وکړو ترڅو نســبي تکامل موندلی تکنیک او دهغه په څنګ کې د شــعور او تفکر او د دنیا پرســتي آیین او د ارواحو د تقدس (د توتم پرســتش) آثار چې د بشــر د لمړنیو مذهبونو په توګه یادیږی وڅیړو.

د انسان فرهنګ د ډبرینو کالیو جوړولو څخه پیل کیږي چې د کار نښه ده او کار د انســان اګاهانه فعالیت دی چې خپلې موخې ته د رســیدو لپاره یی مخی ته ږدی. البته فعالیت شناخت ته اړتیا لري که څه هم په کښته بیدیایی بڼه وي. خو که دغه شــناخت کار ســره ځای نه واي انســان به د حیواناتو له نړۍ څخه تمایــز نــه درلود. په واقع کې هغه څه چې انســان یــی د حیواناتو له نړۍ څخه جلا کړ کار وو. کار د انســان جوهر دی. البته په ځینو حیواناتو کې هم کار تر سترګو کیږي: غنه داسې اعمال تر سره کوي چې د جولا اعمال یاد ته راولي او د شاتو مچۍ خپل کندو پداسې مهارت او سنجش جوړوي چې معماران ورله حیــران پاتــې کیږي. خو هغه څه چې ډیر بد معماران له ډیرو غوره مچیو څخه متمایــز کوي هغــه دا چې معمارلمړی کور په خپل مغز کې جوړوي او بیا هغه ته په خارج کې واقعیت ورکوي.

انســان د نــورو حيواناتو برخلاف يوازې د طبيعــت ورکړی ته تمه نه کوي، بلکې خپلې اړتياوی د خپل کار پواسطه توليدوي او توليد له وسايلو او اسباب پرته حتی که ډېر ابتدايي هم وی امکان نلري. انسان هغه وخت ځان د حيواناتو له نړی څخه جلا کوي چې د خپل ژوند اړتياوي د خپل کار پواسطه توليدوي او د خپل مادي ژوند بنسټ د هغه پواسطه جوړوي.

دا هغــه ټکــې دی چې کولی شــوپه لومړي نظر کې يی په حقيقت پوه شــو داسې نکته نده چې په هکله يی شک پيدا شي. د انسان توصيف د کاليو (ابزار) جوړوونکي حيوان په توګه، د انسان هغه خصوصيت په ځان کې رانغاړي چې هغــه تــه يې امکان ورکړ تر څو ځان د طبيعت غلامي څخه د طبيعت په حاکم بدل کړي. وروســتی کېندنې چې د انسان د پيدايښت او تکامل د تاريخ څيړنې لپاره ســرته ورســيدی په ډاګه کوي چې انسان لږترلږه دوه ميليونه او دری سوه زره کالــه پخــوا د ډبرينــو کاليو په جوړولــو بريالی شــويدی او جالبه دا چې د ډبرينــو کاليــو جوړولو په څنګ کې د انســان د کوپړی ظرفيــت په فوق العاده توګــه زياتوالی پيداکوي او هــر څومره چې د کوپړی ظرفيت زياتيږي په څنگ کې يی د انسان د فرهنګ په تکامل کې هم زياتوالی راځي. د نن ورځی انسان (Homo Sapiens) چــې د دري ســوه زرو او پنځــه ســوه زرو کلونو تر منځ عمر لري، دغه ظرفيت ۱۳۵۰ ســانتيمتر مکعب ته رســيږي. البته دغه رقم په اوسني انسان کې هم مبدلون دی او له ۷۹۰ څخه تر ۲۳۰۰ سانتي متر مکعب پورې رســيږي خو حقيقت دادی چې د انســان د تکامل په تاريخ کې د کوپړی د ظرفيت لوړيدل د فرهنګ له تکامل سره ملګری دی.[۸]

د انســان کار، د منفــردو او جلا جــلا افرادو کار نــدی، کار اجتماعي دی. اجتماعــي کار نه يواځې د انســان او طبيعت تر منځ نــوې اړيکې جوړوي چې

د حیواناتـو په نړۍ کې حتی په ډېرو تکامل موندلو حیواناتو کې ســابقه نلري. بلکې اجتماعي کار او تولید د انسانانو په منځ کې تازه اړیکې جوړوي. انسانان چــې خپلې اړتیــاوې د تولید په بهیــر کې، په همغږي ســره کار کوي او خپلې تجربې یوبل ته انتقالوي پرله پسې د خپل شــناخت لیــد لوری ته په تدریجي توګه پراختیا ورکوي. ګډ کار د انســاني ټولنې افراد یوبل ســره پیوندوي. پالنه او ناســته ولاړه انسانان دې ته اړباســي چې یوبل سره پوه شي خپلې غوښتنې، نیتونه او موخې یوبل ته ووایي. له دغې ناســتې ولاړې او اړتیاو څخه ژبه پیدا کېــږي او لــه هغې ســره څنګ په څنګ اندیشــه او تفکر منځ تــه راځي چې د مادي ژوند تکامل سره یوځای تکامل کوي. ژبه او اندیشه چې د اجتماعي کار محصــول دي په خپل وار د ټولنې د تکامل په بهیر (روند) اغیزه کوي او ټولنه مخ په وړاندې کاږي.

لکه چې وویل شــول شــعور، د انســان د مغز د فعالیت محصول دی خو د مغز فعالیت هغه وخت شروع کېږي چې انسان خارجي نړي سره په اړیکه کې شیپرته له غږیزو څپو چې په فضا کې خپریږي د غږ احساس منځ ته نه راځي، د معطــرو مــوادو د ذراتو له اغیزې پرته د بوی احســاس پوزی ته نه رســیږي، دهغې رڼا (نور) له اغیزي پرته چې نوراني جسم څخه تر سترګو کېږي د رنګ، شــکل او اندازي احســاس صورت نه نیســي.تودوخي او یخني،نرم او ځیږ، د پوســتکي له لارې احساسیږي. په دې ډول د مغز اړیکه له خارجي نړۍ سره د حسي غړو له لارې منځ ته راځي. همدغه ډول ډول احساسونه د بهرنۍ مادي نړۍ د حسي او تعقلي شناخت او نورو رواني پدېدو منشاء او پیل دی. د شعور سرچینه او مضمون خارجي نړۍ پوري مشروطه ده. پرته له خارجي نړۍ څخه د شــعور خبره هم مطرح کیدای نشــي. هره اندازه چې د شعور او مادي بهرنۍ

نــړۍ اړیکــه ژوره او هر اړخیــزه وي په هماغه اندازه شــعور هم زیات تکامل تر لاســه کوي. له بلې خوا په هغه حالت کې چې انســان د طبیعت زیږنده او د طبیعت د تکامل ثمره یعنې یوه بیولوژیکي پدیده او یو اجتماعي وجود دی، د اجتماعي اړیکو مجموعه هم ده. د شعور رشد او تکامل هم د همدې اجتماعي اړیکو پر بنسټ او د اجتماعي ژوند د بهیر نتیجه ده.

د انســان د بیولوژیک او اجتماعي دوه خصلتونو په منځ کې هغه څه چې د شــعور په رشــد او تکامل کې ټاکونکې نقش درلود او لــري یې هغه اجتماعي خصلت دی. انسان د سلګونو زرو کلونو د خپل اجتماعي ژوند په بهیر کې وار پــه وار د طبیعــت او د هغه د حرکت او تکامــل قوانین پیژني، طبیعت او خپل اجتماعي ژوند ته بدلون ورکوي او په عین حال کې چې خپل شعور او امکاناتو ته پراختیا ورکوي خپل ځانته هم رشــد او تکامل ورکوي. په لنډه توګه کولای شــو ووایو چې لمړی شــعور یوه ازلي پدیده نده، د مادي نړۍ د ټاکلی درجی تکامــل څخه رامنځ ته شــوی اومادي نړۍ ته د بدلــون ورکولو په څنګ کې د اجتماعي ژوند تر اغیزې لاندې رشد او تکامل کړی. دویم: شعور د انسان مغز سره نه شلیدونکې اړیکه لري او له هغه څخه نه جلا کېدونکې دی،

دریــم د شــعور ســرچینه د انســان په مغز کــې د مادي نــړۍ انعکاس دی. بالاخره څلورم شــعور د انســان د کار ثمره ده چې پرته له هغه د انسان د اړتیاو تولید او د چاپیریال بدلون او بیا تر هغه وروســته شــونې نه وه چې فکر او ژبه منځ ته راشــي.(۹) دغه ټول منل شــوي علمي حقایق دي. بنــایی وي به داسې کســان چې د ژوندیو موجوداتو د تکامل تئوري او د انســان حیواني منشــاء نه مني او له هغې ســره د دښمني له لاری را مخې ته کیږي، بنایی داسې کسان به هم وي چې علم او د هغه لاســته راوړنو ســره پخلا کېدونکي ندي او د علم په

لا یتناهي بشپړ امکاناتوباور نلري، علمي تئوري او پراتیک ناسم ګڼي خو دغه دښمني، حقیقت له حقیقت څخه جلا کولای نشي او نه د علم له لا یتناهي امکاناتو څخه څه کمولی شي. آیا دغه حکم چې شعور او اراده د انسان د مرکزي عصبي سیستم فونکسیون ته ځانګړې شوی دی کېدای شي تر شک لاندې راشي؟ څرنګه کولی شو دغه خصیصه چې یوازې انسان ته ځانګړې شوې طبیعت ته یې تعمیم کړو او د هر ډول سلیم منطق برخلاف ادعا وکړو چې طبیعت د شعور او ارادې څښتن دی؟ البته کولی شو د خیال او سوچونو په نړۍ کې ډوب شو ډېره، ونه، غر، سیند، ځمکه او آسمان ډ شعور خاوندان وبولو، خو دغه سوچونه نه ډبره او نه ونه د شعور خاوندان جوړولی شي او نه ځمکه او آسمان او نه غر او سیند. دغه خیالونه له ذهن څخه بهرني نړۍپورې هیڅ اړیکه نلري.

## آیا طبیعت موخه لري؟

لمړې باید پوه شو چې هدف څه شی دی. هدف د فکري وضعې تصویر یا حالت دی چې انسان هغه د راتلونکې لپاره د عیني امکاناتو په چوکاټ کې په اګاهانه توګه غوره کوي او د خپل عمل له لارې هغه ته تحقق ورکوي. د دې تعریفاجزاء به نور هم وڅېړو.

هدف تر هر څه د مخه د فکري وضع یا راتلونکي حالت تصویر دی. خوهره فکري وضع، حالت یا حادثه په راتلونکې کې لزوماً هدف ندی. دې ډول تصویر ته په هغه شرط هدف ویلای شو چې دغه تصویر د انسان یا انسانانو له هیلی او مېل سره سمون ولري. کله چې انسان د راتلونکي وضعې یا حالت تر ټاکلو وروسته کوښښ کوي هغه ته تحقق ورکړي د دې نښه ده چې دغه تصویر د انسان له غوښتنې او هیلې سره سمون لري او که داسې نه وي بیا

دا ډول کوښښ له سالم عقل سره سر نه راپورته کوي. د بيلګي په توګه کولی شو دغه راتلونکې فکري تصوير په زړه کي تير کړو چې سږکال به ژمي کې د هزار په لويه لار رشی (برف کوچ) له غره څخه پريوځي. دا د راتلونکې وضع فکري تصوير دی خو د هدف نوم ورباندی ايښودی نشو ځکه چې د انسان له غوښتني ياهيلې سره سمون نلري او د هغه لپاره عمل صورت نه نيسي! ډاکتر چې د خپل ناروغ مرګ د يو مرګونې او ناعلاجه ناروغي له کبله د هغه د مړينې وړاندوينه کوي هدف نه اعلانوي ځکه چې د ناروغ مړينه نه د ډاکترغوښتنه ده اونه د ناروغ، نه ناروغ خپل ژوند ته د پای ورکولو په هڅه کې دی او نه ډاکتر د ناروغ د وژلو هڅه کوي. په دې ډول راتلونکې فکري تصوير يوازې هغه وخت هدف نومول کېدای شي چې د انسان له غوښتنو او هيلو سره سمون ولري او انسان د هغه د تحقق لپاره هڅه کوي نه دا چې هغه د انسان د فکري تصوير تر شا (وراء) او انسان څخه مستقل تحقق ومومي او انسان دهغه په وقوع کې اغيزه ونلري.

کله چې هدف، د انسان له غوښتنو او هيلو څخه خبرې کوي د دې ښکارندوينه کوي چې د انسان يوه اړتيا پوره کوي. ښايی دغه اړتيا فردي، ګروهي، طبقاتي يا د تولی ټولنې اړتيا وي. ښکاره ده چې د انسانانو د ډلو، او طبقاتو اړتياوې په هر حال کې يو ډول نه وي او زيات وخت يوبل سره په تضاد او تناقض کې دي. د ټولنې له دوه عمده طبقو څخه هره طبقه هڅه کوي چې خپلو طبقاتي موخو او اړتياو ته د عمل جامه په تن کړي. د ټولنې د تکامل حرکت هدف ته د رسيدلو لپاره د دغو طبقاتو د فعاليت له نتيجې پرته بل څه ندي او د ټولنې د تکامل چټکتيا دې پورې تړلی ده چې د افرادو اړتيا تر کومې اندازې د طبقې او د ټولې ټولنې اړتياو سره همغږې ده. په بې طبقې ټولنه کې د

ټولنې د ټولو افرادو اړتیاوې او موخې د ټولې ټولنې اړتیاوو او موخو سره بشپړ سمون لري له دې کبله د ټولنې ټول افراد په اتفاق او اګاهانه ټوګه د هغوی د تحقق لپاره هڅې کوي او ټولنه په چټکتیا سر ه مخ په وړاندې ځي. له بلې خوا انسان پرله پسې داسې واقعیت کې ژوند تیروي چې د هغه د ارادې او غوښتنې له مخې شکل نه نیسي او نشي کولی هر ډول چې هغه وغواړي او هرې خوا ته چې میل وکړي بدلون ورکړي. د دې واقعیت له مخې داسې امکانات شتون لري چې کولی شو یوازې د همدې امکاناتو په ډګر کې هدف خپلې مخې ته کېږدو او د هغه د تحقق لپاره ګام پورته کړو. په دې اساس د یو هدف ټاکلو لپاره لمړی باید شته امکانات وپیژنو او د هغو سمه ارزیابي وکړو. په دې ډول، هدف باید، د موجوده واقعیت او شته امکاناتو ترعلمي تحلیل وروسته، د یو واقعي امکان تر عنوان لاندې وپیژندل شي تر څو وکولای شو هغه د امکان نړۍ څخه د واقعیت نړۍ ته راوړو. هغه څه چې د علمي تحلیل په اساس واقعي امکان ونه پیژندل شي تحقق منونکې ندی او نشو کولی چې هدف یی وټاکو. واقعي امکان چې پای یی، ټاکل شوی هدف دی، د تکاملي حرکت یو بنسټ دی او تکاملي حرکت په ټولنې او طبیعت کې د عیني حاکمو قوانینو پیروي ده، له دې کبله نشو کولی هدف په خپل سر د واقعي امکاناتو په منځ چې وټاکو. د دې لپاره چې، واقعي امکان، هدف ته ورسیږي باید د هغه تکامل د عیني قانونمندي مطابق په وړاندې حرکت وکړي او که داسې نه وي ټاکل شوی هدف نه تر لاسه کیږي. ظاهراً داسې بریښي چې انسان، د خپل شعور او ارادې له مخې وړتیا لري، هر هدف ـ له عیني شرایطو او د تکاملي قوانینو حرکت څخه مستقل هدف، د خپل ځان په وړاندې کیښودلی شي او تر لاسه کولی یی شي. خوپه واقعیت کې داسې نده. هدف هغه وخت تر لاسه کېدای

شي چې د تکامل له قوانینو سره په تضاد کې نه وي او د واقعي امکاناتو په منځ کې هغه چې تحقق منونکې وي وټاکل شـي. د بیلګې په توګه د سـرمایه داري نـړۍ له پیل څخه د کوچنیو کالیو تولید تــه بیرته ورتګ واقعي امکان ندی، د ټولنې د تکامل قانون سره په تضاد کې ده. دا ډول هدف یوائې د خیال په نړۍ کـې ممکـن دی او تحقق یی هم د خیال له نړۍ څخـه وړاندې نه ځي که څه هم په دې لار کې زیات کوښــښ وشي.په دې ډول په ټولنې او د تاریخ په بهیر کې، انســانان باید هغه هدف د ځان په وړاندې کېږدي او د هغه د تحقق لپاره زیار وباسي چې د موجوده واقعي امکاناتو په ډله کې د ټولنې د تکاملي قوانینو سره په سمون وي. ذهني هدفونه که هر اندازه غوښتونکي او هڅونکي هم وي هیڅکله تر لاســه کېدای نشــي که څه هم هغه ته د رســیدلو لپاره له هیڅ ډول کوښــښ او ایثار څخه سپما ونشي. په لنډه توګه هدف، واقعي امکاناتو پورې، د ټولنــې د تکامل قوانینو پورې، مبارزې او اجتماعي او تاریخي پراتیک پورې چــې حیاتي اهمیت لري تړلی دی. په پراتیک او تولنیزو او تاریخي مبارزو کې مهمه دا نده چې انســان څه هدفونه په مخ کې ږدي، مهمه داده چې هدفونه تر کومــې کچــې د ټولنې د واقعي امکاناتو په ډګر کــې ځای لري او تر کوم بریده د ټولنې د تکاملي قانونمندي ســره اړخ لګــوي. یوائې هغه مبارزې بریالیتوب ته رســیږي، یوائې هغه هدفونو ته لاسرسی پیدا کولی شو چې د ټولنې قوانین په پام کې ونیول شــي. منل شــویده هره اندازه چې انســان د ټولنې اقتصادي- اجتماعي جوړښــت ښــه وپیژنــي او د ټولنې د حرکت لــوری د تکامل له عیني قوانینو ســره په انطباق کې سم تشــخیص کړي او د مجهولو لاملونو تر اغیزې لاندې رانشــي او په خپلواکه توګه خپل هدف او هغه ته د رســیدلو لار وټاکي هغه تر لاســه کولی شــي. په پای کې کله چې هدف څخــه خبرې کیږي ناچاره

باید وسیله یا مادي وسائل اوهغه ته د رسیدلو ایده وجود ولري. پرته له اسباب او وسیلی هدف ته رسیدل شوني ندی که څه هم د تکامل عیني قوانینو سره سمون هم ولري. دا هم باید ووایم هدف ته رسیدل په دې مانا دي چې یو له واقعي امکاناتو څخه د عمل جامه په تن کړي او بیا د هغه په تحقق سره امکان له منځه ځي او د نورو واقعي امکاناتو په ټولګه کې بدلون او تحولات منځ ته راځي او په پایله کې هدف هم بدلون سره مخامخ کیږي. په دې ډول هدف داسې شی ندی چې یو وار د تل لپاره وټاکل شي بلکې د عیني واقعیت له تکامل او د انسانانو عملي فعالیت سره یو ځای بدلون مومي او نور هم زیات دقیق کیږي یا د نورو اهدافو ځای نیسي. هغه څه چې وړاندې وویل شول په ډاګه کوي چې هدف باید په پرله پسې توګه د ټولنې د تکامل عیني قوانینو او موجوده واقعي امکاناتو، د افرادو او طبقاتو اړتیاوو او ګټو او هدف ته د رسیدلو لپاره د وسائلو اړیکي په ډیالکتیکي توګه په پام کې ونیول شي. په دې ځای کې کولی شو دوه انحرافاتو ته اشاره وکړو: لمړی د حرکت دعیني قوانینو او تکامل مطلق کول په دې مانا دي چې په ټولنه حاکم عیني قوانین، غواړی که نه غواړی ټولنه او افراد د یو ټاکلي برخه لیک په لوري شړي او دغه برخه لیک ته رسیدل د انسانانو عمل او فعالیت ته اړتیا نلري. دا فاتالیزم(Fatalisme) دی، انحراف دی چې انسان د عیني قوانینو په وړاندی یی چاره او بی وسی کوي. ښکاره ده که په دې ډول لید سره انسان د ځان لپاره هدف ټاکي یو عبث او بې ګټې خبره ده، ځکه برخه لیک تر مخه، د انسان له دخالت پرته ټاکل شوی او د تصمیم نیولو امکان آزادانه ندی. بل انحراف عیني قوانینو او وسائلو ته پام نه کول، د هدف او ارادی مطلق کول دي. د دې ډول هدف تحقق لپاره هڅې کول په یقین سره ثمر ته نه رسیږي په انحراف او ماجراجویې تمامیږي.

له پورته ياد شــوو توضيحاتو څخه په ډاګه کېږي چې هدف شعور او فکر سره نه شــليدونکې پيوند لري، هدف او انســان يوبل څخه جلا کېدونکي ندي. که له طبيعت څخه انسان ګوښه کړو نه هدف شته او نه هدف مطرح کېدای شي.

«که چېري په طبيعت کې د انســان او د هغه د متقابلې اغيزې څخه صرف نظر وکړو نه يواځې وړانده او بې شــعوره لاملونه وجود لري چې پرله پســې يو په بل اغيزه کوي... هر هغه څه چې پيښيږي...د اګاهانه هدف او ارادی په توګه منــځ ته نــه راځي. برعکس په تاريخ کې هغه څوک چې عمل کوي هغه يواځې انســان دی چې شعور او فکر ځينې برخه ور دی په شوروشوق عمل کوي او د يو ټاکلي هدف لپاره لاس په کار کېږي. هيڅ شی پرته له اګاهانه ارادي هدف څخه نه ترلاسه کېږي.»(مارکس)

د پام وړ ده ډاکټر شريعتي چې په ځينو ځايو کې د طبيعت په شعور، ارادې او هدف تکيه کوي په دې باور دی چې «نړۍ د ارادې لرونکې دی، شعور لري، د ايده آل او هدف څښــتن دی» په بل ځای کې د طبيعت شــيان شــعور څخه بې برخې دي. او د هغه لپاره انســان يواځينې موجود دی چې شــعور او ارادې څخه برخه‌ور دی. «انسان د طبيعت د ټولو موجوداتو په منځ کې داسې موجود دی چې په خپله زيار باســی (شــاعر) دی، په طبيعت پوه دی، فکر کوي، اراده کوي، انتخاب کوي او د طبيعت سنتي جبر ته بدلون ورکوي... ټول کائنات او د طبيعــت مــادي موجودات، جامد او ژوندي، تــول عبارت دي له ناخود آګاه مصالحو څخه، د خدای د ارادی لاس ته يا د طبيعت مادي جبر[۱۰] ته مجبور دي. لــه خپــل ځان څخه هيڅ ډول شــناخت او اراده نه لري. ګياه همداشــان رشــد کوي غوټۍ کوي، ګلان کوي، ميوه نيســي وروسته ژېړيږي او وچېږي، باد حرکت کوي، غرونه ســولول کيږي، ســپوږمۍ د ځمکــې په چاپير څرخي،

دغه ټول پرته له دې چې وپوهيږي او احساس يې کړي د يو قانون غلامان دي چې دهغه په بنسټ قانون جوړشوی او منظم شويدی. خو انسانان د کائناتو د ټولو موجوداتو بر خلاف د فکراو خيال خاوند دی، پنځوونکې، نوښتګر، عصيانګر، ځان پوه او نړۍ پوه دی.»(«د انسان فلسفه»، ۶۲ـ ۶۳مخ) کله چې ډاکټر شريعتي انسان څخه خبرې کوي په هغه مفهوم چې معمولاً ترينه ګټه اخلي په نظر کې نه نيسي. انسان څخه د هغه مطلب ټول انساني افراد نه دي. «هر څوک چې په پښو لار وهي د لاس په ورغوي او تندي يې ويښتان نه وي انسان ندی، ناطق حيوان دی.... ټول ناطق حيوانان دي خو ټول انسانان نه دي. انسان د خپل قدرت په اندازه چې د محيط په بدلون او تطبيق کې يې د خپل ايده آل سره سم په کاروي انسان دی[11]»(«د انسان فلسفه»،۹۳مخ)

که انسان د شعور او ارادی په درلودلو سره يو استثنايی او ځانګړی موجود دی او په طبيعت کې بل هيڅ موجود له شعور ارادی او هدف څخه برخوردار نشته نو نړۍ څرنګه کولی شي چې د شعور، ارادې او هدف خاوند اوسي؟ آيا دغه شعور، اراده او هدف انسان څخه منشاء اخلي؟ نه، هيڅوک په دې باور ندي. يواځې يو شی پاتې کيږي او هغه دا چې آګاه اراده، نړۍ او د هغه ټولې اجزاوې د يو توانا او وسمنې ارادې له خوا د يو هدف په لوري بيول کيږي. دا ډول آګاه اراده بايد له نړۍ څخه بهر وي (په کوم ځای کې؟) ځکه چې ډاکټر شريعتي په نړۍ کې هيڅ شی پرته له انسان څخه د شعور خاوند نه پيژني. که چيرې داسې وي نو بيا دغه نتيجه تر لاسه کيږي هر هغه څه چې په نړۍ کې پيښيږي د هغه په لاس او اراده منځ ته راځي، يو ټاکل شوی مسير طی کوي تر څو ټاکلي هدف ته ورسيږي. (کوم هدف؟)

دغه باور چې طبيعت لره نهايی هدف او «غايې علت» شته له پخواني يونان

څخه سر راپورته کوي او له هغه ځايه د مسيحيت او د اسلام نړۍ ته لار پيدا کوې، د علومو تکامل او پرمختک سره د نړۍ ټولې ساده او پيچلې پدېدې د حاکمو عيني قوانينو د عمل نتيجه، له هغه څخه ګڼي، چې اوس هم په مذهبي محافلو کې پاتې دی او تبليغ کيږي. هغه مذهبي زده کړه او فلسفي رغبت چې د عليت اصل ــ په ځينو ځايو کې د تظاهر له مخې د هغه پيروي نفې کوياو په عيني واقعيت کې هر بدلون او تکامل معنوي هدف ته رسيدل ګڼي ـ دغه موخې له بدلون او تکامل څخه لومړيتوب لري او ټاکونکې نقش لري ــ چې غايېت، فيناليزم(Finalisme) يا تله ئولوژي (Teleologie) نوميږي.

په دې زده کړې کې، د نړۍ د ټولو بدلونونو محرکه ځواک، د بهرني او داخلي متقابلو تضادونو اغيزه، د شيانو په سيستمونو او پدېدو کې نه بلکې په هغه موخو کې دی کوم چې غالباً د نړۍ په ماوراء کې ځای لري. د واقعيت جوړښت او تکامل د اصل عليت په بنسټ نه بلکې د غايېت پر بنسټ توضيح کيږي يعنې د وسمن او توانا وجود د فعل او ارادې ثمره ده کوم چې د نړۍ لپاره يې هدف ټاکلی او نړۍ د هغه په لوري بيايي. په دې ځای کې فاعلي علت د «غايې عليت» تابع دی او «غايې علت» مقدم پر فاعلي علت دی. نړۍ د يو ټاکلي هدف لپاره پيداشوی او دهغه په لوري مخ په وړاندې ځي. د انسانانو فعاليت او هلې ځلې او د ټولنې حرکت هم همدغه متعال او نهايې هدف ته د رسيدلو لپاره دي.

په هغه زمانه کې چې ځمکه د نړۍ مرکز ګڼل کېدله، لمر، سپوږمۍ او ستوري د هغه په چاپير څرخيدل، په هغه دوران کې چې انسان اشرف مخلوقات شميرل کېدی او د کائناتو په مرکز کې پروت وو، ټول شيان د انسان په محور ګرځيدل او انسان ته د ګټې رسولو په اساس ستايل کېدل، مثلاً کبان د دې

لپاره په ســین کې دي چې انســان ترینه تغذیه شي، لمر او سپوږمۍ د دې لپاره چې انسان ته په ورځ او شپې رڼایی او تودوخي وبخښي، دنګې او له پاڼو ډکې ونې د دې لپاره پیدا شــوي چې انســان دګرمي او تودوخي په وخت کې د هغو ســیوري لاندې کښــیني او داســې نور. انګلس هغه په دې ډول تر ملنډو لاندې نیولي:

«پیشوګانې پیداشوي د دې لپاره چې مږک وخوري او مږک پیدا شوي چې د دې لپاره چې پیشــوګانې یې وخوري او ټول طبیعت پیدا شوی د دې لپاره چې د پنځونکي (افریدګار) عقل ننداری ته وړاندې شي»

هــګل په دغه طنزآمیــز عبارت د هغه یادونه کوي: «حتــی د پنبه چوب ونه پیدا شوې د دې لپاره چې وکولای شو د بوتلونو لپاره ورځینې سرپوښ ولرو»

د آلمان حساس شاعر هنري هاینه په خپل اثر کې «سفر به هارتز» د شیانو د بیانولو دغه طریقه په ملنډو نیولې:

«ونې شــین رنګ لري د دې لپاره چې شــین رنګ د سترګو لپاره غوره رنګ دی... خدای غوایی پیدا کړل د دې لپاره چې د غوایانو ســوپ انســانان قوي کوي، خر یې پیداکړ د دې لپاره چې انسان سره په مقایسه کولو کې پرتله شي او انسان یې پیدا کړ د دې لپاره چې د غوایی سوپ وخوري او خر نشي».

د نړۍ او هغه پورې د اړونده شــیانو د بیانولو دغه طریقه چې انســان د هغه په مرکز کې او ټول شیان د انسان د غرائزو او غوښتنو د ارضا لپاره دي که څه هــم رواج یې پــه کلونو کلونو دواموموند خو د سســتي او بیمایه ګي له کبله له غوره والي او رواج څخه ولوید.

د غایت اصل په دوه اساسي شکلونو کې تجلي کوي:متعالي غایت چې د ټولو مادي پدیدو هدف د غیر مادي ځواکونو پواســطه له نړۍ څخه بهر ټاکل

کېږي. ذاتي غایېت چې هدف په خپله شیانو او پدېدو کې ځای لري او په دې ډول پدېدې ټولې د هدف تابع دي چې د هغوی په داخل کې نغښتی دي.

ښکاره ده غایېت چې په هره بڼه واوړي د طبیعت قوانین په پام کې نه نیسي علومو څخه جلا په لیرې واټن کې واقع کېږي.

## آیا د نړۍ نظام او انتظام د نړۍ د هدف درلودلو نښته ده؟

هغه څه چې ایډیالیست فیلسوفان او الهي فیلسوفان یې دعوت ته رابولي هغه دا چې په نړۍ کې د هدف وجود ومني یو له هغو څخه د نړۍ د ټولو شیانو د نظام او انتظام مجموعه ده او بل د ژوندیو موجوداتو تکامل داسې تر سترګو کوي چې یو ټاکلی هدف پسې روان دي. «انسان د طبیعت د اجزاوو په منځ کې همغږي او جوختېدل مشاهده کوي، د طبیعت کړنې همیشه تر انتظام لاندې په دې شانویني چې د دغی همغږي او جوړجاړي نتیجه یو ځانګړی هدف دی او انسان نشي کولی ومني چې دغه همغږي او جوختېدل پرته له دې هغه هدف چې په طبیعت کې له وړاندی ټاکل شوی دی تر لاسه شي برسیره پر دې انسان په ځینو مواردو یا ټولو برخوکې، طبیعت په یو جهت لرونکي تکاملي خط سیر کې ویني دا په خپله د دې دلیل کېدی شي چې طبیعت یوې ټاکلي نقطې ته متوجه دی او دغې نقطی ته د رسیدلو لپاره خپل مسیر پیل کوي او ادامه ورکوي». («اصول فلسفه و روش رئالیزم»، ۳ټوک،۲۴۶ مخ)

پرته له شک څخه طبیعت د نظام او انتظام لرونکې دی خو دغه همغږي او جوختېدل د وړند او ناآګاه ځواک د اغیزې نتیجه ده چې په طبیعت حکم چلوي او د هغوی له متقابله اغیزو ځینی قوانین منځ ته راځي. مختلفو علومو چې قوانین په لاس راکړي تر اوسه یې د طبیعت د ډېرو پدېدو نظام او انتظام توضیح کړیدی پرته له دې چې د طبیعت له ځواک څخه د بل ځواک ته اړتیا

وي. پرته له شــک څخه اوس هم ډېر مســائل وجود لري چې د هغوی لپاره د حل لار پیدا شــوی نده. په راتلونکي کې به نور مســائل هم پیدا شي چې علوم به د هغوی په روښانه کولو کې ګامونه پورته کړي. دا طبیعی ده هر څومره چې علوم پرمختګ کوي، هرڅومره چې د انسان شناخت د نړۍ د پدېدو او شیانو پــه هکله ژور او هر اړخیزه کېږي نوي او تازه مســائل منځ ته راځي. د بشــري ټولنې د تکامل تاریخ په ګوته کوي چې انســان وار په وار له مجهولاتو څخه د معلوماتو په لور، له ناپوهي څخه د پوهې په لور او له ســطحي شــناخت څخه د ژور او هــر اړخیــز شــناخت په لوري پرمــخ تللی چې دا په خپلــه د ټولنې د راتلونکي تکامل تګ لاره په ګوته کوي.

طبیعت لره داســې اســرار نشته چې د انسان له لید او سترګو د هغه شناخت پټ پاتې شــي. د علومو لپاره، ناشــناخته شته خو ناشناخته شوني ندي. بشر د خپل تیر پخواني تاریخ په لړ کې انســان د طبیعت د قهر په وړاندې بې وســې او خوار ووکوښــښ یې کاوه چې د طبیعــت پدېدې توضیح کړي، څرنګه چې لــه نړۍ څخه یې د شــناخت کچه ټیټه وه او د نــړۍ د پدېدو لپاره یې صحیح او علمــي توضیح پیدا کولی نشــوه ناچاره یې د تخیل قــوې ته پناه وړله. دغې طریقې ســره د نړۍ بیان د واقعي شــناخت پر بنسټ ولاړ نه وو خو وار په وار د علومــو د پرمختــګ په وړاندې په ګونډو شــو. مذهب ډېره هڅه وکړه چې د علم د پرمختګ او د حقایقو د کشف مخه ونیسي. خو د علم او پوهې ځواک دومره پیاوړی وو چې کلیســا یې له خپلې مخې پورته کړه او د پرمختګ لپاره یې لار پرانیســته. مذهب او کلیســا یوبل پسې خپلې مورچلې له لاسه ورکړې، خو دا په دې مانا نده چې کاملاً خلع سلاح شویدي. هغوی پرله پسې په داسې ځایو منګولې خښــوي چې د بشــر پوهه تر اوسه په هغوی برلاسه شوی ندی یا

يې په بشــپړه توګه روښــانه کړې نده. په دې برخه کې دعغوی ماتې هم حتمي ده. د علم او مذهب تر منځ نه پخلا کېدونکې تضاد بالاخره د علم په ګټه حل کېږي.

په دې کې هيڅ شک نشته چې نړۍ د نظام او انتظام لرونکې دی. که داسې نــه وای د ځمکې په مخ به انســان نه وو پيداشــوی. کله چې انســان دغه ټولو همغږيو ته حيران پاتې شــي د «ولی» ځواب موندلو لپاره هڅه کوي. دغه نظم او انتظــام له کوم ځايه پيــدا کېږي؟د طبيعي ځواک لــه متقابلې اغيزې او هغه قوانينو څخه چې له دوی ځينی منځ ته راځي؟. په هر ځای کې چې قانون حکم چلــوي پــه هغه ځای کې نظم برقرار وي. د نــړۍ نظم او انتظام د عيني قوانينو د عمــل نتيجــه ده، لکه د انرژي او مادی د بقا قانون، د عمومي جاذبی قانون، د کوانتا تئوري، د نســبيت تئوري، د هســته يې فزيک تئورې چې په ټول نړۍ حکم چلوي. کله چې ډبره يا بل هر جســم هوا ته ګوزار کړو په يو خاص نظم او ترتيب ســره کوم چې د اجســامو د ســقوط په قانون کې راغلي بيرته ځمکې ته پريوځي. د اجســامو ســقوط د عمومي جاذبی د قانون د عمل نتيجه ده چې وړنــده ده، قهــري ده، پرتــه له هدف څخه ده، په دې خــای کې دغه خبره چې ډبره د ځمکې مرکز سره «مينه» لري او «غايت» يې دادی چې د ځمکې مرکزته جذب شي بيځايه اوخوشې خبره ده.

د طبيعت د نظام او انتظام له مظاهرو څخه يو هم شمسي منظومه ده. مګر پرته له دې بل څه دي چې دغه نظام او همغږي د طبيعي ځواکونو د اغيزي او په نړۍ د عيني حاکمو قوانينو محصول دی؟ ولی بايد د شمسي منظومې نظام د هدف منشــاء وپيژنو او هغه د ماوراء طبيعي ځواک سره په تړاو کې توضيح کړو؟ لمر يو له ميلياردونو ســتورو څخه دی چې د «شــيري لار» په کهکشــان

کې يې ځای نیولی او د «شـیري لاری» کهکشان د نړۍ آغاز او شروع دی. په میلیونــو نور کهکشــانونه په مختلفو بڼو د لایتناهــي فضا په ټولو جهتونو کې د حرکــت پــه حال کې دي. د هغو په هر يو کې ســتوري منځ ته راځي او د ډېرو ستورو هسته بيا د انفجارونو پواسطه زوال کوي او له منځه ځي او ستوري هم لکه د لمر په شان خپل عادي مسیر طی کوي. له ځمکې څخه دهغوی واټن له لــس ګونو ميليونو نوري کلونو څخه تر میلیاردونو نوري کلونو پورې رســيږي. تر ټولو ډېر لرې ســتوری چې د نن ورځې په تلســکوب کې د لیدلو وړ دی هغه له ځمکې څخه د ۵ میلیارده نوري کلونو په واټن کې پروت دی او دا فقط هغه کرښــه ده چې د نن تکنولوژي او د ځمکې د اتمســفر شــرایط یې محدودوي. ۵میلیارد نوري کلونه یو رقم ده چې په ژبه آسانه راځي خو تصور یې په زحمت سره د انسان په خیال کې ځايېږي. په یاد کې یې ونیسو چې د لمر وړانګه فقط په ۸ دقیقو او۱۸ ثانیو کې ځمکې ته رســیږي. په دې سترې لایتناهي فضا کې چــي هرڅه بدلونونه منځ تــه راځي ټول هغه قوانینو څخه پیروي کوي کوم چې پورته یې یادونه وشوه، وړانده، قهرجن، بی ارادې او بی هدفه قوانین.

د علمــي قوانینو لمــن د نړۍ ډېرو کوچنيو ذراتو ته هــم غځیږي او په هغه ځــای کې هم نظم او انتظام تر ســترګو کيږي. اتم بلــه منظومه ده چې د رواني پېړۍ په ســر کې یې ټول حيران کړی وو. ځينو پوهانو او فيلسوفانو هغه څخه نتيجه واخيسته چې ماده له منځه ولاړه او د ماترياليزم بنسټ نسکور شو، ځینو د علیت قانون چې نړۍ شــمول قانون دی تر پوښــتنې لاندې راوست او ځینو کســانو هغه د طبيعت د اســرارو په ټولګه کې وشمیرله او د هاتف اصفهاني د شعر بند یې غوره وګڼه چې ویلي يې وه «د هرې ذرې زړه چې وسپړی لمریې په منځ کې ځليږي» یعنې د اتم جوړښــت د متعال ذات د انوارو جلوه ده. خو

هرڅومره چې د اتم پېژندنه په وړاندې لاړه په ډاګه شـوه چې په هغه کې هیڅ داسـې پدېده نشـته چې د ماتریالیزم ډیالکټیک او د عیني قوانینو د فرمانروایی له دایرې څخه بهر وي. د اتم په داخل کې د الکترونو شـمیره، په مدارونو کې د هغوی ځای نیول او د هستې په شاوخوا ګرځېدلو څخه نیولې تر هستې او د هغـې د مختلفـو اجزاوو په منځ کې همغږي یواځې د طبیعي ځواک او د عیني قوانینـو لاس دی او بس، د ذراتو له دغـې مجموعې څخه هیڅ هدف متصور ندی. البته که د «غایېت» په ژبه خبرې وکړو کېدای شـي ادعا وکړو چې د اتم پیدایښت د دې لپاره دی چې د شلمې (۲۰) پېړۍ انسان له هغه څخه اتمي او هیدروژني بمب جوړ کړي او د خپلو دښـمنانو په سـر یې ګوزار کړي او انرژی څځه یې د خپلو اړتیاوو د رفع کولو لپاره کار واخلي! خو ښکاره ده چې د ذراتو په نړي کې دغه نظم اوهمغږي هیڅ هدف پسې نه ګرځي.

د نظم او انتظام او هدف درلودلو مسـئله په ژوندیو سیسـتمونو کي تر نورو زیـات لمسـوونکې ده. ژوندي ژونـدي موجودات په دوه برخو کې، د انسـان حیرانتیا پاروي.

لمـړی د یـو فـرد په برخه کـې او هغه هـم په خاصـه توګه په څو سـلولي موجوداتـو کـې چې د رشـد په بهیر د تخم له سـلول څخه د بلـوغ تر مرحلی چې په تدریج سـره ګڼ شـمیر څېرې او جوړښـتونه ترینه منځ ته راځي. او بل د نـوع (Espece) په برخه کې یعنـې د ژوندیو موجوداتو په تکامل کې چې له ویروسـونو، باکتریګانـو او نباتاتو څخه نیولې ترعالـي ځناورو پورې چې پرله پسې په زیات نظم او همغږي سرته رسیږي. داسې تر سترګو کیږي چې ژوندي موجودات د خپلو ارګانو د جوړښـت او چاپیریال سـره د تطبیق او سـازګاري له مخې یو خاص هدف پسـې روان دي. په ډېرو مواردو کې چاپیریال سـره د

ژوندیو موجوداتو توافق او جوختیدل او هغه ســره د ژوند کولو شرایط، واقعاً حیرانونکې دی؛ د اوبو مرغانو د ګوتو په منځ کې پردې کش شوي چې وکولی شي په اوبو کې لامبو وکړي، ړنده مږه (کورموش) چې معمولاً ځمکې لاندې ژوند کوي د غار او ســوړو جوړولو لپاره قوي منګلي لري، هغه بوټي او واښــه چې په وچو او بې اوبو ســیمو کې زرغونیږي پاڼې یې د اغزو په شــان ټوکول کیږي تر څو خوله ونکړي او اوبه یې ضایع نشــي، چاپیریال ســره د همرنګۍ په مرسته (Homochromie) او له محیط سره هم شکل (Mimetisme) کېدل ځینی حیوانات ځانونه پټوي، تر څو د دښــمنانو له تعرض اولاس رســي څخــه خوندي پاتي شــي، د مرغانو او ماهیانو دلاس بدلــون په وزرونو باندې چې د هوا او د اوبو محیط یی ورله په واک کې ورکوي کولی شو دا ډول نورې بیلګې هم وړاندې کړو دغه ټولې بیلګې د انســان په اندیشه کې دا تلقینوي چې د ژوؤ پــه نړۍ کې هدف پروت دی. په واقعیت کې هم د ۱۸ میلادي پیړۍ تر پــای پــورې د ژوندیو موجوداتو د نړۍ په هکله ټــول افکار د انواعو د ثبات او پیدایښت په مدار څرخیدل؛ داسې چې د حیواناتو او نباتاتو انواع له پیل څخه په همدې بڼه پیدا شوي او هماغه باقي پاتې شوي، پنځوونکي (آفریدګار) هره ډلــه (نوع) د ژونــد کولو لپاره په ځانګړي چاپیریال کې پیدا کړي او هغه یې د ژوند کولو لپاره په هماغه چاپیریال کې په مناسبو وسائلو مجهز کړیدي.

د ډولونو (انواع) د ثبات او پیدایښت اصل او د «غاییت» اصل د ۱۷ پیړۍ تر پای پورې د ډېرو پوهانو په منځ کې خپل ځای او حکم خوندي ســاتۀ. خو په تیر تاریخ کې د ځمکې په چاپیر د ډول ډول ســنګوارو پیدایښــت او له بلې خــوا موجــوده ډولونو څخه د نوو ډولونو مشــاهده د ناڅاپه بدلون له مخې (د ۱۸ پیړۍ په هماغه نیمایی کې) وار په وار د ډولونو د پیدایښت او ثبات نظریه

شک او تردید سره مخامخ شوه او د ډولونو د تحول(Transformisme) اندیشه منځ ته راغله چې د هغې په موجب د وخت په تیریدو سره یې تحول پیدا کړ له ساده او یو رنګي څخه د پیچلیتوب او تنوع خوا ته تللی دی.

د ډولونو د تحول اندیشه د ۱۹ پیړۍ په لمړیو کې د ژوندیو موجوداتو د تکامل په هکله د لامارک له خوا د یوې فرضیې په توګه مطرح شوه چې په ذهن کې د مذهب د واکمنۍ او د لامارک د ساده او ماشومانه توضیحاتو له کبله د توجه وړ ونه ګرځیده او په کوټیالۍ کې له یاد څخه پاتې شوه. د ۱۹ پیړۍ په لمړۍ نیمایی کې د زیست شناسي نورې څانګې لکه د جوختیدلو (تطبیقي) تشریح، ټوکېدل پیژندنه، سلول او کېمیایی ژواک پیژندنه، د ژوندۍ نړۍ د وحدت مسئله، چې د حیواناتو او نباتاتو قرابت او پیوند یې په ډاګه نندارې ته وړاندې کړل. په ۱۸۵۹ کال ډاروین د لمړۍ ځل لپاره د ژوندیو موجوداتو د تکامل او محیط سره د موجود د جوختیدلو واقعي تئوري بیان کړه او په خپل تلپاتی اثر کې د «بنیاد انواع» تر عنوان لاندې په ډېرو ګڼو مشاهداتو او تجربو تکیه وکړه درې واقعیتونه یې بیان کړل او دوه نتیجې یې ترلاسه کړې، لمړی واقعیت: د هر ډول افراد پر له پسې بدلون سره مخامخ دي په دې ډول چې هیڅ داسې فرد نشو پیداکولی چې د هغې ډلې نورو افرادو سره توپیر ونلري. دا یو واقعیت دی او هر څوک هغه ویني. دویم واقعیت: ژوندی موجودات د هندسي تصاعد په اساس زیاتیږي. دریم واقعیت: دغه چټک او تصاعدي زیاتوالي سره سره د ډول د افرادو شمیر ثابت پاتی کیږي پداسې حال کې چې د هغوی مجموعه په تنهایی سره کولی شي چې دټولی ځمکې مخ وپوښي. دغه درې واقعیتونو څخه دوه نتیجې تر لاسه کیږي: لمړی دا چې د ژوند لپاره او هغه ته د دوام ورکولو لپاره یوه مبارزه په جریان کې ده یا د ډاروین په خبره

«د ژوندیــو موجوداتو د چټک زیاتوالــي د علت له مخې، د ژوند کولو لپاره له ناچارۍ مبارزه صورت نیسي». دویم دا چې په دې مبارزې کې هغه چې صالح او ســپیڅلي دي ژوندي پاتی کېږي، ځینې ډېر پیاوړي، ځینې ډېر چټک، ځینې د اوبو او هوا د بدلون په وړاندې ډېر مقاومت لري، خینې د بدلونونو په نتیجه کې، محیط سره همرنګ او هم شکل کېږي او د دښمنانو له شر څخه خوندي پاتــې کېږي او داســې نور. البته لــه مبارزې څخه منظور، یواځــې په منګولو او غاښــونو جګړه کول نده بلکې د هغه یا دغه فرد امتیاز او برتري د هغه بل فرد په پرتله د ژوند د بقاء او د نسل ادامه ده. هغه افراد چې د بدلونونو لپاره مساعد دي فزیکي او زیستي محیط سره سمون پیداکوي او هغه افراد چې محیط سره د سمون قدرت نلري له منځه ځي. همدغه مبارزه د زندګي او بقاء اصلح لپاره وار په وار په دوامداره توګه د ډول (نوع) جوختیدل د ژوند له محیط سره پرتله کوي.

په دې ډول هرې ډلې کې، افراد د بدلونونو په حال کې دي، دغه بدلون چې پــه افــرادو کې منځ ته راځي یا د فرد د امتیــاز او ځواکمن کېدو موجب ګرځي چــې په پایله کې هغه تــه د ژوند کولو لپاره په مبارزه کې قوت ورکوي یا د فرد په تاوان تمامېږي او په پایله کې د هغه حیاتي ځواک ټيټوي په ډېرو حالاتو کې یی له نابودي ســره مخامخ کوي. هغه بدلونونو چې د امتیاز او ځواکمن کېدو ســبب دي راتلونکي نســلونو ته منتقل کېږي او د نســل د ژوند قابلیت زیاتوي د همــدې بدلونونــو اغیزه ده چې له یوې ډلې څخه بله ډله پیدا کېږي. د انواعو بنیــاد په همــدې واقعیت کې پټ دی. کوم اتفاقي بدلون چې په افرادو کې منځ ته راځي «د ژوند لپاره مبارزه» او «بقاء اصلح» د پیلامې لپاره جهت پیدا کوي او په نتیجه کې داســې معلومېږي چــې ژوندۍ نړۍ د هدف په لوري روانه ده.

ډارویـن د ډېرو اسـنادو او مدرکونو لـه مخې په ډاګه کـړه، بیولوژیکي وجود چـې ظاهراً د هدف په لټه روان بریښـي پرته لـه وجود څخه چې هغه ته هدف پـه لاس ورکړي شـونې ده، په طبیعـت او ژوندی نړۍ حاکـم قوانین د ژوند بیانولو او توضیح لپاره کافي دي. د ژوند کولو محیط سره د ژوندیو موجوداتو جوختیدل او سـمون چې د هدف په نوم یادیـږي، په واقعیت کې هدف ندی، بلکـې د زیسـت محیط سـره د ژوندي موجـود د متقابلی اغیـزې ثمره ده، د ژوندي موجود د داخلي او بهرني عواملو د تضاد ثمره دی.

دلته د یو ټکي یادول اړین دي او هغه دا چې سازګاري او جوختیدل، مطلق ندي له دې کبله ویلای نشو چې پدغه یا هغه محیط کې د ژوند لپاره د مناسبو ارګانو وجود ته اړتیا شته. د بیلګې په توګه ځینې مرغان لکه هیلي، قو او پټکې چې د ګوتو په منځ کې پردې لري او ژوند یې اوبو لرونکي محیط سـره سـمون لري، برسیره پر دوی نور مرغان هم په همدې محیط کې ژوند کوي په هماغه انـدازه په اوبو کې لامبو کوي پرته لـه دې چې د ګوتو په منځ کې پردې ولري. ړنده مږه (کور موش) چې د کېندلو لپاره قوي منګلې لري او تر ځمکې لاندې ژوند سره سمون لري، نور ژوونکي (جوندګاه) هم ځمکې لاندې سوړې کېندي خو د ړندې مږې په شان د ځمکې کېندلو لپاره قوي منګلې نلري. داسې نوري بیلګې لږ ندي. همدارنګه په ډېرو حیواناتو کې هم داسې ارګانونه یا جوړښتونه وجود لري چې هغی ته یې هیڅ ګټه نه رسـیږي. د بیلګې په توګه دوه یا شـپږ تور خالونه د پینه دوز حشرې په سرو وزرونو کې هغې ته څه ګټه رسوي. دغه ارګانونه هغه غړو څخه پاتې شـوي کوم چـې دهغوی په تېرو پلرونو او نیکونو کې یې نقش درلود خو اوس یی نقش له لاسـه ورکړی او پاتې شوني یی باقي پاتې دي. له هغی جملې د آپندسي کولمه، عقل دندان، د انسان د ملا په تیر کې

وروستۍ مهره. ځینې وخت ګتور ارګانونه د افراط تر پولې وړاندې ځي د ګټې په ځای د حیوان ژوند ګواښ سره مخامخ کوي لکه د ځینو ګوزنو غټ ښکرونه چې وزن یې ۲۰ څخه تر ۲۵ کیلو ګرام پورې رسیږي د تیښتې او منډې په وخت کې د ونو په ښاخونو کې نښلي له ځغاستې څخه یې مخه نیسي او د مرګ خولې ته یې بیایي. هغه ارګانونه یا جوړښتونه چې په ځناورو کې د ګټې وړتیا نلري د هدف درلودلو مسئله تر پوښتنې لاندې راولي. د شتر مرغ وزرونه څه هدف درلودای شي کله چې د الوتو لپاره په درد نخوري، د «شترګاویلنګي» حیوان د پنځیدلو او خلقت هدف لکه د اورني توزنګ (Ornithorhinque) چې په استرلیا کې ژوند کوي څه دی؟ دغه حیوان هګۍ اچوي خو بچیانو ته شدې ورکوي، پلنه مښوکه لري او پښې یې پټکې ته ورته دي، لکۍ یې د اوبوسپي په شان ده اوپوستکې یې د ګیدړې پوستکي په ډول ده. د انګلي بوټي او ځناور چې د نورو بوټو او ځناورو له طفیل څخه ژوند کوي هدف څه شی دی؟ مار ولی باید په ځمکه وښکیږي، غرڅې په دښتو کې منډې ووهي، مرغان په هوا والوزي، ماهیان په اوبو کې لامبو ووهي او انسان دځمکې په مخ په دوه پښو وګرځي؟ له دې تنوع څخه هدف څه دي؟ آیا د دې لپاره دی د انګلس په قول چې د «پنځوونکې(آفریدګار) عقل ننداري ته وړاندې شي»؟ د تکامل د تئوري له پلوه دغه ټولی پدیدې تریو ځای پورې د توجیه وړ دي خو کله چې د هدف خبره منځ ته راځي د هغې لپاره بیان نشو پیداکولی.

الهي فلاسفه، دغه د «ریالیزم» د مکتب پیروان په نړۍ کې د شیانو یا پدیدو د بې ګټې توب په هکله باور نلري ځکه کوم شی چې ګټه ونلري هدف کیدای نشي او هدف درلودل د الهي فلسفې اصول دی. هغوی لکه د هغه ۱۷ پیړۍ فرانسوي لیکوال په شان په دې باور دي چې «هیڅ حیوان بې ګټې غړی نلري

او هيڅ حيوان ګټور غړي څخه بې برخې ندی». د هغوی په نظر په حيوان کې د بې ګټې غړي «ادعا» او حتی له دې څخه په کلي توګه د «پديدو بې ګټې توب» په طبيعت کې ګويا يوه «مغالطه» ده ځکه چې نتيجه يې «نه پوهيږم» او «نشته» څخه اخيستل شويده. خو په واقع کې که مغالطه وجود ولري هغه په همدې«استدلال» کې ده. په دې ځای کې د«نه پوهيږم» خبره نده د «پوهيږم» خبره ده. په وروستۍ پيړۍ کې د انسان ټولې تجربې او پراتيک په ګوته کوي چې د اپنديسي غړي ضميمه بې ګټې ده، د ملا د تير وروستنۍ مهره د انسان د نيکونو د لکۍ پاتې شونې ده ځکه د ګټې اخيستو وړ نده. هغوی په انتظار کې ناست دي چې علم د هغوی د «پنځوس زره کلونو وړاندې» هيله سرته ورسوي د اپنديسي ضميمې او د هغې په شان د نورو ارګانو ګټور توب په انسان او نورو حيواناتو کې پيدا کړي. علم خپل قضاوت په دې هکله کړی دی او په ژونديو موجوداتو کې ډېر بې ګټې ارګانونه او جوړښتونه د يو منل شوي حقيقت په ډول څرګند کړي دي.

ښکاره ده چې د ډاروين تئوري يعنې د تحول تئوري، مذهب او کليسا سره نه جوړيږي او د هغوی تر هجوم لاندې واقع کيږي. د «بنياد انواع» تر خپريدو لږ ځنډ وروسته په هغه مجمع کې چې د انګليسي ټولنې د پوهې او پرمختک پلويانو د دغې تئوري د څرګندولو لپاره په اکسفورډ کې غونډه جوړه کړه، د ښار اسقف په ډېر شدت ډاروين او د هغه تئوري وغندله او په پای کې يې هکسلي (Huxley) ته چې په جلسه کې د ډاروين د تئوري ملاتړی وه وويل: «آيا هکسلي په دې باور دی چې نيکه او آنا يې له بيزو څخه راپيدا شوي؟» هکسلي په ځواب کې وويل په دې چې د هغه نيکونه بيزوګان دي د شرم احساس نه کوي. هغه څوک بايد وشرميږي چې په داسې موضوع بحث

او نظر ښکاره کوي چې له بیخه ورسره بیګانه دی. دغه کلام اوسني حال سره ځومره مناسب ځواب دی! که څه هم ډاروین د ژوندیو موجوداتو تحول او د هغوی تر منځ پیوند او خپلولي په اثبات ورسوله او ښکاره یې کړه چې د ژوند لپاره په مبارزه کې«طبیعي انتخاب» د جوختیدلو او سازګاري عامل دی خو د انفرادي بدلونونو سببونه چې بنسټ یې«طبیعي انتخاب» دی ونه موندل. تر هغه وروسته نور دحیات پیژندنې علوم (زیستي علوم) لکه سلول پیژندنه، سلولي فیزیولوژي، ژنتیک، بیوشیمي او داسې نور چې د ژوندۍ مادی د حیاتي فعالیت تر تل (عمق) پورې نفوذ کړې او د موروثي بدلونونو سببونه یې هم ښکاره کړي او په ډاګه کړې یې ده چې د بدلون او تطبیق پدیده اړینه او داخلي حیاتي لاملونو سره تړلې ده (هغه لاملونه چې یو نسل څخه بل نسل ته انتقال کیږي) او بهرني شرطونه (یعنې د ژوند د چاپیریال شرطونه) دي. نن د سیبرنتیک پوهه چې دومره عمر پرې تیر شوی ندی د تطبیق او تکامل میتود په ښه وجه توضیح کوي، باید ووایو موږ تر اوسه د حیات پیژندنې علومو د پیل په درشل کې ځای لرو. په هر حال هغه څه چې دلته تر بحث لاندې دي هغه د ژوند پیدایښت او تکامل دی، ماوراء طبیعي یا اسرار آمیزه «حیاتي ځواک» ته کوم چې ویتالیزم (vitalisme) په هغه متکي دی اړتیا نلري، حیاتي (زیستي) پدیدې لکه د طبیعت نورې پدیدې په طبیعت باندې د حاکمو عیني قوانینو په مرسته د توضیح وړ دي.

## آیا موخه، نقص څخه د کمال په لوري تګ دی؟

مخکې وویل شول چې موخه یا هدف شعور سره نه شلیدونکې اړیکې لري. شعورد موخې ټاکلو لپاره اړین دی. د شعور دخالت ځینې پرته موخې څخه خبرې کول بې مانا دي. انسان لمړی هدف په ذهن کې روزي، وړاندې تر هغې

چې تر لاسه یې کړي هغه په خپل ذهن کې ګوري او درک کوي یې او وروسته د هغــه لاســته راوړلو لپاره ګام پورته کوي. څــوک چې د کور جوړولو هدف په مــخ کــې بردي هغه تر مخه پوهیږي چې څه غــواړي او څه ډول یې غواړي یبا د کور جوړولو لپاره د وســایلو په لټه بوخت کیږي. هغه عالم چې د آســمان په ســتورو کې د ســفر لپاره د تلســکوب جوړولو هڅه کوي، تر مخه د تلسکوب نقشــه طرح او جزیېات تر ســیموي او بیا دهغه په جوړولو بوختیږي. دا داسې يو مطلب دی چې د هرڅا ذهن ته رســیږي. خو د الهي فلاســفه په هر قیمت غواړي چې طبیعت او دهغه اجزاؤ ته هدف وتراشي، د موخي او شعور تر منځ اړیکه پریکوي او وایی «غایېت تر شعوره مقدم او د فاعل خبر له غایېت ځینې ندی» او یا «غایېت ځینې خبر غایېت ســره په تړاو کې دخالت نلري».(روش رئالیزم، ۳ټوک، ۲۴۹ او ۲۵۶ مخ)

هغــوی نه یواځې شــعور لــه اصل څخه حــذف کوي بلکې«خوشــحالي او خپــکان» هــم د هدف د اصولو په کتــار کې راولي. یعنې دا چــې که «موجود» هدف ته ورســیږي یا ونه رســیږي خوښي یا خپکان احساسوي. احتیاج هم په همدې ډول تعریفوي چې هدف ته په رســیدو ســره «موجود» خپل ځان پوره کوي. انســان یا حیوان وږي دی په دې خاطر ناقص او نیمګړی دی، کله موږ شي پوره کیږي او بشپړتیا ته رسیږي، په دې ډول د هغوی لپاره د احتیاج رفع کېدل د تکامل په مانا دی.

«هر غایېت... داسې يو شی دی چې هغه د وجودي احتیاجاتو د تامین لپاره غــواړو، وږي یــو د غذا په خوړلو مړیدل غواړو، تــږي یو د اوبو په څکلو تنده ماتول غواړو او همدا ډول.... ناقص او نیمګړي یو او د فعل په غایېت ســره، خپــل ځان تکمیل کوو. ســاده ووایو د غایېت نســبت موږ تــه چې فاعل یو په

همدې ډول د کمال نسبت نیمګړتیا ته دی»(روش ریالیزم، ۳ټوک، ۲۴۷مخ)

په دې ډول د لوږې رفع کول، د تندې او ستړیا رفع کول، د کمال په لوري حرکت دی. موږ په ورځ کې څو وارې نیمګړي کېږو او بیا کمال ته رسېږو. د شهوت غریزه موږ په ځان کې ډوبوي نیمګړي کېږو او بیا د هغه په ارضا کولو خپل کمال بیرته په لاس راوړو. آیا د کمال مانا همدا ده؟ دا کمال او تکامل څخه مضحک او ملنډیز درک دی!

خو مهمه مسئله داده چې د شعور د اصل حذفول او په هغه د خوند او کړاو د اصل زیاتول، هغوی د انسان د هدف، ارادې او اختیار مفهوم د حیوان او انسان ریفلکسونو او غرائزو سره ګډوډ وي تر څو مدعي شي چې د غاښونو هدف د خواړو ژوول، د مرۍ هدف تر معدې د مړي کښته کول او د معدې هدف د خواړو هضمول دي او داسې نور.

باید په پام کې ولرو چې هدف، ترهرڅه د مخه، یو انساني مفهوم دی. دغه کلمه له انسان څخه بهر هیڅ مفهوم نلري. دا انسان دی چې د خپل فعالیت په ټولو برخو کې پرله پسې هدف په پام کې نیسي او هغه ته د رسیدلو لپاره کوښښ کوي او همدا انسان دی چې د هدف درلودلو اندیشه د کائناتو په ګوټ ګوټ کې تعمیموي، که نه د طبیعت شیان او پدیدې د ځان لپاره هدف نه پیژني، خپل ټول حرکات د عیني قوانینو مطابق ترسره کوي. اوښ چې لمړی خواړه معدې ته کښته کوي بیا هغه خولی ته راکاږي او شخوند پرې وهي هدف، کړاو، خوند، رنجاو لذت او کمال څخه درک نلري.هغه مکروب چې انسان د (حصبه) په ناروغي اخته کوي د هدف د کلمې پکارول په غوڅه توګه بې مانا ده. آیا پتنګ چې د رڼا او شمعې په لور نږدې کېږي او د هغې په چاپیر ګرځي موخه یې د ځان سوځیدل دي؟ د الهي فلاسفه په دې باور دي چې د

غاښــونو هدف د خواړو ژوول دي. اما آيا غاښــونه د ځان لپاره دا شــان هدف پيژني؟ ممکن وويل شــي چې هدف شــته خو فاعل له هغه څخه بې خبره ده. خــو پــه واقع کې د غاښــونو، د لاړو غده، مری، معــده او د کولمو يا د هر بل غړي دنده د بهرني محرک يا عامل په وړاندې د غبرکون تر اغيزې لاندې سرته رســيږي. کله چې خواړه خولې ته داخل شي، غاښونه په کار لوېږي نشي کولی چې پکار ونه لوېږي، کله چې خواړه معدې ته ورســيږي د معدې عضلات او ترشحات خپلې دندې سرته رسوي، کله چې يو شی زموږ د سترګو په وړاندی ودريــږي د اعصابو دســتګاه په حرکت راځي او نشــي کولی چې حرکت څخه پاتې شي. دغه ټولی پدېدې فيزيولوژيکي رفلکسونه (Reflexe) دي اوهغه ته د هدف ويل غير علمي او نامعقول دی. اصولاً الهی فلاسفه نشي کولی شعور د هدف لپاره ملاک ونه ګرځوي. مګر داســې نده چې هغوی ټول کائنات د يو پوه او دانا پنځوونکې پنځونه ګڼي، هغه پنځوونکي چې نه يواځې د هر شي په تازه راتګ کې بلکې دهغه په دوام او پايښت کې خپل قدرت او پوهه اعمالوي؟

«د رئاليــزم پــه وړاندې هر هغه څه چې په غايېت کې شــامل دي انتخاب د فاعل د استکمال وسيله ده»(۳ټوک، ۲۵ مخ)

خو هغه ځای کې چې خبره د «انتخاب» يادېږي له ناچاری د شــعور خبره منځ ته راځي. «د انتخاب وسيله» په دې مانا ده چې د موجوده ممکنه وسا يلو په منځ کې، هغه وســيله چې فاعل هدف ته رســوي غوره کېږي، پرته له شــک څخه د مناسبې وسيلې تشخيص عقل او شعور ته اړتيا لري. داړونکې حيوان د لــوږې رفع کولو لپاره خپل ښــکار نه «انتخابــوي»، پتنګ چې د رڼا په لوري ځي د نور منبع نه«انتخابوي»، د واښــو تخم چې د باد په واسطه مختلفو ځايو ته وړل کېږي هغه ځمکه چې بايد هلته وټوکېږي نه «انتخابوي». د شاتو مچی

نه د کندو بڼه انتخابوي او نه د هغه د ساختمان توکي اومصالح. البته کولی شو ادعا وکړو چې داړونکې حیوان د غوښی او واښو تر منځ غوښه «انتخابوي» او حتی واښه خوړونکې حیوان خپل مطلوب واښه. خو دغه «انتخاب» هغه شان ده لکه چې وویل شـي اوبه د خپل جریان لپاره کښـته ځای «انتخابوي». دغه ټول یا ریفلکسـونه دي او یا غریزه، په هـر حال کې د «انتخاب» خبره بې مانا ده. آیا ډېره کښـته خمکې ته رالویدل ګویا دهغی «هدف» او هغه فاصله چې تر ځمکې راکښته کېږي «انتخابوي»؟«ریالیستان» د دې لپاره چې ماوراء د انسان د هدف درلودل او د هدف نیولثابت کړي عبث او بې ګټې هڅې کوي.

لـه هغـه ځایه چې په بهر کې د «انتخاب وسـیله» او د «فاعل اسـتکمال»، «یوبل څخه نه جلا کېږي» کېدای شي غایېت همدغه د «فاعل استکمال» وي.

«هغه څه چي د غایېت روح جوړوي هغه داده چې متحول او متکامل موجود په یو معین جهت کې چې تکاملي خوځښـت دی حرکت کویاو کړنې یې ټولی همدغه کمال ته د رسـیدلو مقدمه وګرځـي» په بل عبارت «د غایېت حقیقت عبـارت ده د وجود لـه کامل تر صورت څخه هغه چې د تکامل په لوري روان دی او خپـل موجوده ناقص تـر صورت په کمال تر صـورت بدلوي»(هماغه ځای)دکتاب ۱۸۸ مخ)

پـه دې ډول غایـت او هـدف یو ملاک لـري او هغه هم «اسـتکمال» دی. اسـتکمال په څه مانا دی؟ اسـتکمال یعنې د یو شـي «ناقص تر» صورت، په «کامـل تـر» صـورت بدلیدل. په دې اسـاس د هر څیز هـدف له نقص څخه د کمـال پـه لـور تلل دي، له «ناقص تـر» څخه د «کامل تر» پـه لور تلل. خو «نقـص» او «کمـال» او «ناقص تـر» او«کامل تر» څه مفهـوم لري؟ په عادي خبرو کې، موږ د «نقص» کلمه استعمالوو او په مانا یی پوهیږو. «دغه دوسیه

ناقصه ده» يعنې هغه سـند يا سـندونه چې بايد په هغې کې موجود وای نشـته يا څېړنه چې بايد هغه شـان سـرته رسيدلې وای ونشوه. «فلانی عضوي نقص لـري» يعنـې د بدن يو غړی نلري يا يې د فونکسـيون په يو غـړي کې کموالی ليدل کيږي. «رواني نقص» د عقل او شـعور نشـتوالی يا د هغه او دغه رواني فونکسـيون نشـتوالی يا هغه، دغـه اخلاقي عيب ده. خو کلـه چې د «نقص» او «کمـال» کلمـات د تکامـل ـــ د مادي نـړۍ د هر ډول حرکـت د تکامل اندازه کولو لپاره په کار واچول شـي د هغه د مانا درک کول که ناشـوني نه وي، سـتونزمن دی او په خواشـيني سره الهی فيلسـوف د «روش رئاليزم» په کتاب کې واضح کړې نده چې «ناقص تر» څه شـی دی او «کامل تر» کوم دی. کوم شی بايد ملاک ونيسو تر څو «ناقص تر» څخه «کامل تر» په ډاګه شي. څرنګه چې وويل شـول هغوی مړيـدل، خړوبيدل، بيدېدل، د جنسـي غريزې ارضاء کېـدل د حا لاتو «کامل تـر» او لوږه، تنده، بی خوبي، مخالف جنس ته هڅه کول د حالاتو «ناقص تر» په ګوته کوي. د دې توضيحاتو په څنګ کې د انسان د تکامـل لپـاره نور صفتونه په پام کې نيسـي لکه د ايـده آل درلودل، د علم او پوهې لپاره هڅه کول، د طاغوت په وړاندې پاريدل، د اخلاقي فضائلو درلودل او داسـې نور. د هغوی په وړاندې «اسـتکمال» د انسان له حدودو څخه پورته نـه ځي خـو کله چې تکامل د نړۍ په کچه مطرح کيـږي د چلند دغه طريقه د «ناقص تر» او «کامل تر» او د «تکامل»، سـپکوالی او ملنډيز ترسـترګو کيږي. دليل يې هم دا دی چې اسـلامي «فلاسـفه» سـره له دې چې علم او پوهی ته هڅه کول د کامل انسـان په صفاتو کې شـميري خو د علومو هيڅ ځانګې سره آشـنايی نلري، اساسـاً له هغه ځايه چې بشـري علم او پوهه د هغوی له فکري تحجر سـره هيڅ سـمون نلري هغه خوار او بې ارزښـته ګڼي. د نړۍ او د هغه

تکامـل د پوهـاوي لپاره تر هر څه د مخه بایـد هغه وپیژنو، دا چې د نړۍ او د هغه د تکامل په هکله شـناخت مذهبي عقایدو سـره سمون نلري ځکه هغوی مجبور دي چې علم شـاته پرېږدي تر څو د آسـماني کتاب د نصوصو په هکله د هغوی عقیده کې شـک منځ ته رانشـي. هغوی د ژوندیو موجوداتو د تکامل علم څخه مخ ګرځوي ترڅو انسـان د پنځوونکي محصول، د بویناکې ختې او د خدای د روح محصول وښایی. په دې ډول لید لوري کې د عالم او علم لپاره د تکامل خبرې څه ځای لري.

د «ناقص تر» او د«کامل تر» لید لوري له مخې، غنه چې له نورو حشـراتو څخه یوه جوړه پښې زیاتې او یو یا دوه جوړې وزرونه کم لري آیا نورو حشراتو څخه «ناقص تر» ده او که «کامل تر» ده؟ شنه واښه چې د خپل ژوند کولو لپاره بـل هیڅ ژوندي موجود ته اړتیا نلـري او خپل ژوند له نورو ژوندیو موجوداتو څخه په مستقل ډول تېروي، پداسې حال کې چې حیوان او انسان د شنو واښو په طفیل ژوند کوي. آیا شنه واښه د همدې علت له مخي حیوان او حتی انسان څخه «کامل تر» ندي او د تکامل په پړاونو کې له انسان څخه لوړ ځای نلري؟ مګر طفیلي ژوند نقص ندی؟ یو ناچېزه ویروس چې په انسـان حمله کوي ـــ او هغـه له پښـو غورځوي. آیا دغـه ویروس چې ځواک یی پر انسـان بر دی، انسان څخه«کامل تر» ندی؟ ګورئ اسلامي فلاسفه چې «ناقص تر» او «کامل تر» څخه خبرې کوي هیڅ مشخص تعریف نلري. اخلاقي فضائل په نظر کې نیسـو. دروغ ویل نقص دی، څوک چې رښـتیا وایی له دروغجن انسان څخه «کامل تر» دی. د قضاوت لپاره، دغه کوچني تاریخي واقعیت ته توجه وکړئ. یو مومن مسلمان د یو سیاسي سازمان په سر کې ځای لري چې طاغوت سره مبارزه کوي، ساواک هغه نیسي او د ګروېرنې په وخت کې د سازمان د رهبرانو

د نومونو پوښتنه کوي. مومن مسلمان چې دروغ ويل نقص بولي د سازمان د رهبرانو نومونه ساواک ته وايي چې د هغوی په نيولو تماميږي. کله چې هغه څخه د افشاء کولو د علت پوښتنه کيږي ځواب يې دا دی چې دروغ ويل د مسلمان نقص دی او دروغ د مسلمان لپاره جائز ندي. آيا دغه رښتيا ويل د کمال نښه ده؟ ګمان نه کيږي چې څوک به دغي پوښتني ته مثبت ځواب ورکړي. ممکن وويل شي چې د طاغوت په وړاندې کېدای شي او بايد نومونه پټ شي او دروغ وويل شي. خو طاغوت څوک دی؟ ډېری مومن مسلمانان او حتی د تقليد مراجع، اسلامي جمهوري او ولايت فقيه سره مخالف دي. د هغوی لپاره دغه حکومت طاغوت دی آيا مومن مسلمانان کولای شي د اسلامي جمهوري حاکمانو ته دروغ ووايي؟ البته ولايت فقيه او د هغوی اعوان او انصار دا ډول خبرې د اسلام د شرعې خلاف بولي اوهغه جائز نه ګڼي. بالاخره نه معلوميږي چې څه وخت او په کومو شرايطو کې کولی شي دروغ ووايي او دروغ په کوم وخت او په کوم حال کې د «کامل تر» انسان نښه ده. په دې ډول په اخلاقياتو کې هم «ناقص تر» او «کامل تر» يا د «ناقص تر» اوړيدلوپه «کامل تر» باندې د هدف د مفهوم پټول او نامعلومه پريښودل دي.

## که نړۍ لره هدف شته دغه هدف کوم دی؟

دا چې نړۍ او طبيعت لره هدف شتون لري او حتی د ډاکټر شريعتي په وينا نړۍ پرته له هدف څخه هيڅ و پوچ دی ډېرې خبرې کيږي خو دا چې دغه هدف څه دی خبري نه کيږي. په رښتيا د نړۍ هدف څه شی دی او تکامل څه غايت لري؟ د دې پوښتنې ځواب څخه په څنګ تيريدل په خپله دا په ډاګه کوي چې ځواب نلري او پاتې راځي. د «رياليزم چلند» دغه واقعيتونه چې انکار ترينه ناشونی دی، لکه نړۍ د انسان په خاطر پيدا شوی دی، د ژونديو

موجوداتــو جوختیــدل د موجــود او چاپیریال او د «طبیعــي انتخاب» متقابلې اغیزې څخه منشــاء اخلي، همدا راز کولی شــو داسې پدیدې په ګوته کړو چې هغوی څخه هیڅ ګټه نه ترلاســه کیږي مني (۱۲)خو ســره له دې بیاهم هماغه پخوانۍ ببولالی وایی «دغه نړۍ له خپل ځانګړي نظام سره پرله پسې د تحول پــه حــال کې ده او مخ پــه تکامــل روان دی» یا «هر موجــود د خپل ځانګړي جوړښــت او خاص وجودي ابزارو سره د خپلو مناسبو کمالاتو په لور وړاندې ځي». (۳ټوک، ۲۶مخ)

اما دا چې د تکامل غایښت څه دی او د هر موجود «مناســب کمالات» کوم کمــالات دي او کــوم ځای ته رســیږي، مطلقاً معلوم ندي. پــه هغه ځای کې چــې د هدف او غایــت خبره په منځ کې وي باید د همــدې مطلب د توضیح پــه هکلــه بحث وکړو. دا چې نړۍ تحول کــوي او د تکامل په لور روان دی د هدف درلودلو ښکارندوی ندی. دا چې د لکۍلرونکو ستورو بحث د «مناسبو کمالاتو» په هکله کوم چې فضا کې په فوق العاده سرعت د حرکت په حال کې دي یــا په دې برخه کې بحث کول چې وینې څکونکې څکالی (خفاش) په څه ډول «د خپلو مناسبو کمالاتو په لور روان دي» او دغه کمالات له کومې مقولې څخه اخیســتل شوي دومره جدي نه تر سترګو کیږي. باید ووایو چې هدف او تکامــل یــوه واحده مقوله نه بلکې دوه توپیر لرونکــې مقولې دي. تکامل یو نه انــکار منونکــې واقعیت دی حال دا چې هدف یو مجهول نړۍ دی چې یواځې کولی شو هغه د تخیل او «فلسفې» په زور په ذهن کې ځای پر ځای کړو او په مجهوله بڼه یې پریږدو.

اوس چــې خبره د تکامل منځ ته راغله د څو ټکو یادول اړین دي: لمړی دا چې تکامل هماغه بدلون او تکامل دی منتها هغه بدلون اوتحول چې د ټاکلی

جهـت او ګرایـش لرونکې وي، داسـې جهت او ګرایش چې د مادې د سـاده اشـکالو حرکـت څخه د پیچلو اشـکالو په لور حرکت کـوي. دا ډول جهت او ګرایش د ژوندۍ نړۍ، ټولني او تفکر په تکامل کې په بشپړه توګه لیدل کیږي.

دویم دا چي تکامل نه یواځې جهت لري بلکې جهت یې له کښته څخه مخ په لوړه ده په دې مانا چې د تکامل مسیر مستقیم خط ندی، مارپیچ دی په پایله کې تکاملي حرکت چې له کومې مرحلې څخه تیر شـوی وي هیڅکله بیرته نه راستیږي بلکې هر وار دنګې پوړۍ ته پورته کیږي.

دریـم داچې د تکامل سـاز و آواز د مادې په پیچلـو حرکتونو کې: د ژوند، ټولنې او تفکر له ساده ساز و آواز څخه په کراتومراتو چټک دی.

څلـورم که د مادې د پیچلـو حرکاتو لپاره، تکامل د جهت لرونکي او پرمخ تلونکـي بدلـون او تحول پـه مانا، انکار نـه منونکې واقعیـت دی د نا ژوندي طبیعت په ځانګړي توګه د آسماني اجرامو لپاره تکامل مفهوم نه پیدا کوي.

باالاخره پنځم دا چې د نشـو کولـی د تکامل مفهوم د نړۍ په هکله د یوې واحـدې مجموعـې په توګه په کار واچـوو، هغه څه چې تحـول مومي د نړۍ څیزونـه او پدیـدې دي. په بل عبارت کولی شـو په نړۍ کـې تحول او تکامل څخه خبرې وکړو نه د نړۍ تحول او تکامل ځینې.

بېځایه نده چې د تکامل مفهوم د لنین له نظره په دې ځای کې راوړو. لنین د تکامل مارکسیستي مفهوم اصلي خطوط داسې بیانوي:

«تکامل چې طی شوي پړاوونه بیا ځلي طی کوي منتها په بله طریقه، دلوړو پوړیـو په مخ (نفي په نفي)، تکامل د مسـتقیم خط په مـخ نه بلکې د مارپیچ په مسـیر مخ وړاندې ځي، انقلابي تکامل، جهش لرونکو، بنسـټیزو تحولاتو سـره مل، په تدریجي توګه نژدې کېدل، د تدریجي حرکت غوڅېدل (جهش)،

په ناڅاپي توګه د کمیت بدلون په کېفیت، داخلي تېل ما تېل او کشـــمکش کې تکامل چې د تضاد او د مختلفو ځواکمنو ګرایشـــونو تر اغیزې لاندې منځ ته راځـــي او پـــر یو جســـم اغیزه کوي او یا د یوې ټاکلی پدېـــدې په چوکاټ کې یا د یـــوې ټاکلی ټولنـــې په داخل کې عمل کوي. د هـــرې پدېدې هر اړخیزې مخ په مخ ترلتیاوې او نه شـــلیدونکې نـــژدې اړیکې، هغه اړیکې چې له هغی څخه نړۍ قانونمندانه ځانګړې پروسه تر لاسه کېږي. دا د ډیالکټیک د ځانګړتیاؤ یوه برخه ده چې د تکامل زده کړې لپاره بدایه زیرمه ده.

د دې وینا په پای کې ښایی بې ګټې نوي چې دغه ټکي ته پاملرنه وشي الهي فلاسفه په نړۍ کې د هدف وجود د پروردګارد شتون په دلیل پیژني او په خپله پروردګار د هدف د شتون په دلیل. ځکه چې نړۍ لره هدف شته نو پروردګار شته او چې پروردګار شته نو نړۍ لره هدف شته. دا هغه څه ده چې په فلسفی اصطلاح کې د تسلسل او دور په نوم یادیږی او دا په دې ډول ده چې لمړی د مطلـــب د ثبوت لپاره خبره کېـــږي او بیا هماغه مطلب د همغې خبرې د اثبات لپار پکارول کیږي. لهA څخه B نتیجه اخلي اوبیا A د B نتیجه معرفي کوي. دا ډول استدلال د منطق له مخې د منلو وړنده.

## د علیت اصل

هغـــه فلســـفي ګرایش چې د نړۍ لپاره یې هـــدف منلی دی، هغه هدف چې یـــو غښـــتلي پنځوونکي او ارادې تـــر مخه ټاکل دی، هغه فلســـفي ګرایش چې «غایې علت» پر «فاعلي علت» مقدم ګڼي او دغه د هغه بل تابع بولي، طبیعي ده چـــې هغـــوی په نړۍ کې د علیـــت په اصل باورنلري که څـــه هم د تظاهر له مخې د منلولپاره یې ډېر کوښـــښ وکړي، ډېرې پانې یی د دغه اصل د باوري کولو لپاره تور کړي او د مارکسیزم مکتب د دغه اصل په نفې کولو متهم. دلیل

یــې هم روښــانه دی. په نړۍ د اګاه او حاکمــې ارادې وجود چې نړۍ د ټاکل شوي هدف په لور پرمخ بیایی له ناچارۍ د «ړانده جبر» او د علیت قانون سره دومره په ټکر کې لویږي چې هیڅ کوښــښ او هڅه نشــي کولی هغه حل او له منځه یوســي. اسلامي «فلاسفه» د علیت اصل منل شوی بولي خو په حقیقت کې په دغې اندیشې باورلري چې په نړۍ کې هر څیز حتی د انسان اراده هم د آګاه ارادې په لاس ســرته رســیږي او دهغه په وړاندې هیڅ څواک او قدرت د مقاومت وس نلري. نړۍ او د انسان اراده له ناکامه په هغه لوري ځي چې آګاه اراده یې اراده کوي.

ډاکټر شــریعتي او د هغه لارویان چې پــه ماتریالیزم باندې د حملې لپاره ـــ البته د هغوی منظور همیشه مارکسیست ماتریالیزم دی هیڅ فرصت له لاسه نه ورکوي، د اصل علیت په برخه کې هم په مارکســیزم نیوکه کوي. په دغو نیوکو غور کول چې پرله پسې د پیغور په ژبه او سپکاوي صورت نیسي په ډاګه کوي چــې هغوی نــه په علم پوهیږي، نه په مارکســیزم او نه د فلســفې په تکامل. د هغوی فلســفه اوس هم د منځنۍ پیړۍ په پړاونو کې لاس او پښــې وهي. هغه څــه یــې چې د بورژوازي له نړۍ څخه اخیســتي هغه یې هــم په صحیح توګه موندلي او هضم کړي ندي. لاســوند یې هم د بورژوازي هغه علما او فلاســفه دي چې د پوهې یا ناپوهې له مخې د طبیعت او ټولنې عیني قوانین نفې کوي تر څو وکولای شي ټولنه د بورژوازي له نسکوریدو څخه وژغوري او د سوسیالیزم او کمونیــزم د راتــګ په مخ کې خنډ وګرځي. د علیت اصل څخه د شــریعتی ناســم درک تر یوې کچې د ډیالکټیک اړوند بحث کې توضیح شویدی سربېره پردې بیا هم د «اصول فلســفه و روش رئالیزم» اثر په لوســتلو سره څو مهم او جالب ټکي پاتې شــوي چې باید په پام کې ونیول شــي. د توضیح لپاره ـ لمړی

وګورو چې مارکسیزم د علیت اصل په څه ډول پیژني او په څه ډول یې بیانوي. مخکې تر دې چې موضوع وڅیړو د څو ټکو یادول اړین دي:

۱ـ کـه ډاکتـر شـریعتي په علـم او د هغه په ارزښـت ټینګار نلـري، د هغه «رئالیسـت» هـم غـاړي علم او پوهه د عینـي واقعیت د پیژندلو د وسـیلې او اسباب په توګه چندان ارزښتناک نه ګڼي. هغوی دعلم څخه خبرې کوي خو د یو داسې څیز په توګه چې یوازې د معمولي او عادي چارو لپاره په درد خوري ته به وایي د علم ارزښـت په دې کې دی چې د آسـپرین ګولۍ جوړې کړي تر څو د سـر درد آرام کړي! د علم دغه ارزوونه له کوم ځایه سـرچینه اخلي؟ البته هغـوی یواځې تجربي علوم تر څیړنې او ارزونې لاندې نیسـي او ریاضیات له پامه غورځوي بې خبره له دې چې ریاضیات د فوق العاده تجریداتو سره سره د انسـان له پراتیک څخه سـرچینه اخیسـتې ده او اخلي یې. نن ورځ ډېر کم تجربوي علم موندلی شـو چې ریاضیاتو سـره سـروکار ونلري. خو د اسلامي ریالیسـتانو دا ډول مقولاتـو سـره څـه کار دی. هغوی د علم دښـمنان دي او «ریالیـزم» یې هیڅکله علم سـره نه جوړیږي. خوشـې نده چې تور په سـپین لیکي:

«تجربـوي علـوم یقیني ندي او د نه یقین کولـو علت یې دا دی چې هغوی یواځې په تجربه مستند دي. کوم فرضیات چې په علومو کې جوړیږي په عمل کـې د تطبیـق او عملي نتیجې پرته بل دلیل او شـواهد نلـري او عملي نتیجه ورکول د یوې فرضیه یي د صحت او د هغې د مطابقت رښـتونی دلیل نشـي کېدای ځکه کېدای شي یوه فرضیه سل په سلو کې غلطه وي خو په عین حال کې وکولای شـو هغې څخه عملي نتیجه تر لاسـه کړو». «د تجربوي علومو د ناباوري لپاره بل دلیل هم راوړی شـو او هغه دا چې تجربوي علوم بالاخره په

محسوســاتو پای ته رسيږي او حس هم تيروتنه کوي» («اصول فلسفه و روش رياليزم»، ۱ ټوک، ۱۴۳ـ۱۴۴ مخ)

آيا حيرانوونکې نده چې علم او پوهه په دومره ســترو لاس ته راوړنو ســره سره چې تر لاسه کړي يې دي او تر لاسه کوي يې، ستر علمي او فرهنګي آثار چــې پرله پســې يو په بل اوډل کيږي، د منل شــوي حقايقو اکتشــاف ته لاس رســی پيدا کوي، هغه آزادي بخښــونکي حقايق چې انســان د هغوی تر اغيزې لانــدې قــدرت او کمال ته رســيږي، هوکې دغه پرتمين علــم او پوهې ته د يو موټي داســې عامي انســانانو له خوا ســپکاوی کيږي چې پرته پر اوږو بار شوو احاديثــو او کرغيړنو شــرمونکو روآياتو څخه بل څــه په ټوله کې نلري؟ هغوی علــم څخه خبرې کوي خو پرته له دې چې په مانا يې وپوهيږي. علم څه شــی دی؟ علم د شناخت سيستم دی، تکامل موندونکې سيستم چې ټولنيز پراتيک څخه راپورته شــوی او ماهوي خصوصيات، علــی اړيکي، د طبيعت او ټولنې قانونمنــدي او د مفاهيمو په جامه کــې تفکر، مقولات، قوانين، تئوری ګانې او فرضيه ګانې وړاندې کوي او د انسان د عملي فعاليتونو د بنسټ په بڼه، ـــ د نه پخلا کېدونکو طبقاتي تضادونو تر محوه کېدو وروسته ـــ پر ټولنيز چاپيريال او په طبيعي محيط د انسان فرمانروايی شونی کوي. علم پرته د عيني واقعيت شناخت او د حقيقت له کشف څخه بل شی ندی او همدغه شناخت دی چې انسان د طبيعت په وړون ځواک لاس بری کوي او د آزادي په لور يې لارښوونه کوي. يواځې هغه کســان چې اجتماعي ګټې يې علم او پرمختګ ســره سمون نلري علم ســره په دښمني کې لوبيږي، کوښــښ کوي هغه بی اعتباره وښايی. هغوی د خپل وچ او متحجر سوچ له مخې داسې فکر کوي چې علم هم لکه د «فلسفې» په شان بايد په يو وار ټولو مسائلوته له هغی جملی د دوی خپل سرو

مسائلو ته ځواب ووايي او که ځواب ورنکړي بی ارزښته ګڼل کېږي. هغوی نه پوهیږي او نه يې ويني چې بشر له ناپوهي او د تيتې کچې پوهې څخه د زياتې پوهې په خوا تللی دی او پر مخ ځي، هغوی نه پوهيږي او نه ويني چې د نړۍ پيژندنه هغه ډول نده چې وکولای شو په يو وار يې په جامع او بشپړه توګه تر واک لاندې ونيسو. د انسان شناخت تدريجي دی، چې د انسان پراتيک او د توليدي وسائلو تکامل سره يوځای په وړاندې ځي. آيا له هوا ډک دماغونه نه پوهيږي چې هيڅکله ممکن نده په يو وار حقيقت تر لاسه شيله ناچارې د شناخت په پروسه کې تېروتنه او اشتباه منځ ته راځي او وار په وار د څېړنې په بهير کې له منځه ځي. ښکاره ده هغه کسان چې د علم په پرتله په جهالت کې شپې، ورځې تيروي[۱۳] او ګټې يې د خلکو د پرګنو په ناپوهي او تيارو سوچونو کې پرتې وي نشي کولی علم سره په دښمني کې ښکېل نشي.

د هغوی په نظر تجربوي علوم يواځې فرضيات وړاندې کوي چې صحت يې په هيڅ ډول معلوم ندی په ځانګړې توګه که په پام کې ونيسو چې دغه علوم «په محسوساتو پای ته رسيږي او حس هم تېروتنه کوي»، په دې ډول ارزونې سره د علومو ټولې لاسته راوړنې لوګې کېږي او هوا ته ځي. آيا يو عاقل انسان، يا هغه انسان چې ګټې يې علم سره په ټکر کې نه وي امکان لري چې دا ډول انديشه په سر کې ولري؟ که هغوی د يوې ستنې د څوکې په اندازه علم سره آشنايي درلودلی او علم سره دښمني د هغوی ذهن وړون کړی نه وای پوهيدل دا د تجربې او پراتيک ګډ حکم دی چې د ورکړو قوانينو او تئوري ګانو په صحت شاهدي ورکوي. نن ورځ هر څوک پوهيږي چې نور په خلاء کې د درې سوه زره کيلومتر في ثانيه په سرعت حرکت کوي. مايکلسون د دغه سرعت اندازه په ۱۸۸۱ کال کې واخيسته او دغه رقم يې نږدې د ۳۰۰۰۰۰

کیلومتر سـرعت په یوې ثانیه کې تر لاسـه کړ. البته نه یواځې دغه تجربه زموږ په محسوسـاتو سرته رسـیږي بلکې شـونې ده تیروتنه د اندازه کولو د آلاتو او وسـائلو له لوري هم څرګند شي. څرنګه کولی شو د دې رقم په صحت ډاډمن شـو؟ دا چې تجربه څو ځله تکرار کړو. د لسـګونو کلونو په لړ کې ټول پوهان چې له مختلفو لارو د نور د سـرعت په اندازه کولو بوخت شـوی دي او شمیر یې هم کم ندی. ټول همدې یاد شوي رقم ته رسیدلي. آیا د دغی تجربې تاییډ سـره سـره بیا هم کولی شو د دغه حکم صحت چې د نور سرعت په خلاء کې دری سوه زره کیلومتر په ثانیه کې دی د تجربی والي په علت یې تر شک لاندې ونیسو او د پای خبره اسلامي «ریالیزم» ته پریږدو؟ کله چې د قند اندازه په وینه کې ډیره شي د انسولین په نوم هورمون هغه ټیټوي. دغه هورمون د لوزالمعدې لـه یوې برخې څخه ترشـح کیږي. دغه ماده لمړنی‌هورمـون دی چې کیمیایی جوړښـت یې وپیژندل شـو او پیژندنې یی لس کلونه ونیول. معلومه شوه چې دغـه هورمون ۵۱ آمینه اسـید لري، دغه آمینه اسـیدونه کـوم دي او څرنګه په منظم ترتیب یو د بل په څنک کې ځای نیولی. البته د انسولین مالیکول پیژندنه آسـان کار نه وو. په هغه کې د خطا او تیروتنی امکان شـونی وه. خو وروسـته تر هغی چې انسـولین په لابراتوارونو کې جوړ شـول بیا شـک پاتی نشـو چې جوړښت یی په رښتینی توګه پیژندل شویدی او نور دهغه په هکله تردید نلري.

اتریشـي کشـیش د مندل په نوم د وراثت پدیـدې د پیژندنی په هکله خپلې تجربې پیل کړی او پایلې یی تر لاسه کړې چې د تازه څیړنو پیل وګڼل شو. د کشیش کار د یو شمیر بوټو او وابښو په سر پیل شو او د هر د ګلانو بوټي په مخ په مصنوعي توګه سرته ورسیدل. په دې ډول شرایطو کې د خطا او تیروتنی هر امکان شتون درلود. خو کله چې دغه تجربې په مختلفو بڼو سرته ورسیدې بیا

یـــی هـــم لمړنۍ نتیجې تایید کړې، کله چې دغه تجربه په ډېرو بوټو او څارویو سرته ورسیده او ټولې ترلاسه شوې پایلې د مندل د تجربو د تایید په خوا وې. آیا بیا هم کولی شو ووایو چې د مندل په ازمایښتونو کې خطا او تېروتنې ځای لري او یقیني ندي؟ کولی شو دا ډول نور زره پورې بیلګې پیدا کړو.

یواځـې د علم دښـــمنان کولی شـــي علمي حقایق د دې لپـــاره چې تجربوي دي خطا وبولي او له ارزښـــته یې وغورځوي. اساســـاً څرنګه شـــونې ده چې د تجربې پایلې د سل په سلو کې غلطې وي او نتیجه یې عملی ثابته شې. تجربې ښوولې ده چې پنې سیلین کولی شي ډېرې باکتریاګانې له منځه یوسي. که دغه شـــناخت ســـل په سلو کې ناســـم وي آیا بیا هم دغه ماده د ناروغیو په وړاندې نتیجه ورکولای شي؟

د اســـلامي «فلاســـفه ؤ» په وړاندې د علم او «فلسفې» له منځه هغه فلسفه چې تیرو پیړیو پورې تعلق لري د فلسفې داوري کوي.

«د ټولـــو علمـــي کلي قوانینو، قانونیت او غوڅ دریځ یو سلســـله کلي اصولو پورې تړلی دی یواځې هغه فلسفه کولی شي چې د دغه اصولو صحت په غاړه ولري» (هماغه ځای، ۱ ټوک، ۴۳مخ)

پـــه دې ډول د هغـــه یا دغه علمي قانون د قطعي توب په اړه د تصمیم نیولو صلاحیت د الهي فلســـفې لارویانو ســـره دی. د همدې علت له مخې ده چې د نیوتن قانون، هغه قانون چې د علم او تخنیک دوه پیړۍ پرمختک دهغه په مخ جوړ شوي او تر اوسه د عادي سرعتونو په شرایطو کې په خپل قوت باقي پاتې دی. قانون ندی «محققانه تفکر دی چې تجربو څخه د حاصل شوو مشاهداتو سره سمون لري»(۳ټوک،۱۳۶ مخ)

د دې لپاره چې پوه شـــئ دغه «اعـــلام علما» چې د علم او پوهې د صحت

او نا سموالي داوري په انحصار کې لري او څه ډول «علمي او فلسفي قوانین» وړاندې کوي کافي ده دغه آثارو ته لکه «حلیته المتقین» او «توضیح المسائل» نظر واچوئ. «که ستاسو غاښونه درد کوي خپله ګوته په هغوی کېږدئ او ټاکلې دعــا ولولئ»!! معلومه نده چې دا تجربوي «قانون» دی، عقلاني دی، او که په ریاضیاتو ولاړ دی! خو ښــکاره خبره دا دي چې د هغوی د «ریالیزم فلســفې» سره جوړېږي که څه هم عملي نتیجه ونلري.

۲ ـ علم ســره دښــمني هرومرو ماتریالیزم ســره په ځانګړې توګه ماتریالیزم ډیالکټیک سره په دښمني پای ته رسیږي، ځکه چې علم او ماتریالیزم ډیالکټیک له یو جنس او تکم څخه دي. اسلامي «ریالیزم» یواځې هغه څه چې ماتریالیزم ځینې پوهیږي هغه دا چې ماتریالیزم مســاوي ده له مادې ســره (البته د اتم په مانــا) او د ماتریالیزم عیب هم په دې کــې ده چې ډیالکټیک راغلی او هغه یې بــې وســې کړی. وګورئ چې «ســتر علامه» پــه څه ډول د خپــل زړه بړاس په ماتریالیزم ډیالکټیک تشوي.

«د ماتریالیزم ډیالکټیک فلسفه ټاکلې مشې او طریقه نلري. یو ځای په خپل منطــق کې وایی باید د حس او تجربې په غوښــتني بــاور وکړو او بس، په دې لحاظ د حسي فلسفې سیستمونو څخه پیروي کوي او په بل ځای کې د حسي فلســفې له روشــونو څخه بهر وځي او لمړنیو! فلسفي مسائلو کې «متافیزیک» چــې د حــس قلمرو څخه بهــر دی، یواځې تعقلي او نظري جنبــه لري نفې او اثبات په پام کې نیسي، د «متافیزیزم» شکل او بڼه ځانته غوره کوي. هغه ځای کې چې وغواړي خپلو بحثونو څخه یقیني او قطعي نتیجه تر لاســه کړي خپل شــعار ته د جزم او یقین بڼــه ورکوي اوخپل روش جزمــي «دګماتیزم» معرفي کوي. په بل ځای کې چې وغواړي د معلوماتو ارزښت وټاکي د نسبي حقیقت

ښه منځ ته راکاږي او شکمن کيږي».

«کله چې د دغې زړه نا زړه او ټکنۍ فلسفي پایله په علمي مسائلو کې د نظریاتو خطا او تیروتنې برسیره شي او د حل لار ترې ورکه شي بیا د حقیقت د بدلون او د حقیقت د اجماع او تیر وتنې امکان مخې ته راکاږي نا ببره سوفسطایی شي البته ښاغلی لوستونکې توجه لري ماتریالیزم مخکې تر دې چې د کارل مارکس او انګلس په لاس کې پریوځي او ډیالکټیکي منطق پیدا کړي د یوې ټاکلی مشې طریقه یې درلوده او با لاخره هر څه چې وه، خو شکاک او سوفسطایې نه وو. دا د ډیالکټیک منطق دی چې «بیچاره» ماتریالیزم ته یې «بدبختي» په برخه کړی، مشهور متل دی وایي چې بانه یی اصلاح کول سترګې یې وړندې کړې.» (۱ ټوک، ۱۹۷ مخ)

چا چې ماتریالیزم ډیالکټیک سره د جګړې لپاره سلګونی پاڼی تورې کړینه یې په ماتریالیزم سر خلاصیږي او نه په ډیالکټیک څه پوهیږي او طبیعتاً نه له ماتریالیزم ډیالکټیک ځینې پوهاوی لري.

البته مخکې له مارکس څخه ماتریالیزم د اسلامي ایدئولوګانو لپاره دومره ناخوښه او ځورونکې نه وو. د هغه بنسټ د مکانیک په علم ولاړ وو، لدې کبله د حرکت د نورو ډولونو لکه د حیات او اجتماع د حرمت ډولونه چې د توجیه کولو لپاره یی کمزوری او بې وسې وو، په اساني سره کېدای شو ګریوان یې ټینګ ونیول شي او د مبارزې له ډګر څخه بهر وشړل شي. ماتریالیزم مخکې له مارکس څخه افکارو د تاریخ جوړوونکي پیژندل کېدل چې به نتیجه کې د ریالیستي نظریاتو په خوا روان و او داسې نور. خو مارکسیست ماتریالیزم د (مذهبي یا فلسفي) ایدآلیستانو لپاره ځای نه پریږدي او هغوی هغې نړۍ ته استوي چې د هغویافکار له ځان سره بوخت ساتلي؛ د متافیزیک نړۍ.

مکانیک ماتریالیزم او مارکسیسـت ماتریالیزم په جوهر کې یوبل سره توپیر لري. په هغه شیانو کې چې د علیت اصل پورې تړلي دي دواړه په دې باور دي چې جبر، عینیت لري، عیني قوانینو او مادي لاملونو پورې مشروط دي اوانسان کولی شـي دغه جبري تړلتیا وپیژني. چې د مکانیک ماتریالیزم او مارکسیست ماتریالیزم ورته والی په همدې ځای کې پای ته رسیږي. د علیت او جبر درک د مارکسیسـت ماتریالیزم له نظره په اساسـي ټکو کې مکانیک ماتریالیزم سره ډېر توپیر لري.

مکانیـک ماتریالیزم حرکت یوازې مکانیکـي او ځای ته د بدلون ورکولو په مانا پیژني حال دا چې د مارکسیسـت ماتریالیزم له نظره حرکت پرته له بدلون څخه بل څه ندی او حرکت په خپلو عالي شکلونو کې ځانګړی کیفیت لري.

مکانیـک ماتریالیزم کوښـښ کوي د نړۍ ټولې په دېـدی د مکانیک اصولو لـه مخې توضیح کړي خو په دې هڅې کې پاتې راځي، حال چې مارکسیسـت ماتریالیزم په دې باور دی چې د مادې د حرکت هر شکل خپل ځانګړی قانون لـري چې نشـو کولی هغه د مکانیک په تنـګ او لنډ چوکاټ کې محدود کړو، نشـو کولـی د حرکت د یو شـکل قانونمندي په بل شـکل کې پـه کار واچوو. مارکسیست ماتریالیزم د علیت اصل ته امکان په برخه کړ چې ټولنیز چاپیریال تـه لار پیداکـړي او د تاریـخ د مادي درک پر بنسـټ اجتماعي پدیدې تر غور لاندې ونیسي.

مکانیـک ماتریالیـزم یوازې مکانیکي لاملونو سـره سـروکار لري او د هغه لپاره، د علت او معلول ځنځیر تر آخره پورې د مسـتقیم خط په مخ ادامه پیدا کوي. د ځنځیر هره کړۍ د روستنۍ کړۍ علت او د خپلې مخکنۍ کړۍ معلول دی.

مکانیــک ماتریالیــزم یوازې خارجــي لاملونو ته توجه کــوي یعنې هغه نیرو چې بهر څخه په یو جسم اغیزه کوي او هغه په حرکت راولي، پداسې حال کې چې د بدلونونو لامل په خپله د شــیانو او پدېدو په داخل کې دی چې د داخلي تضادونو په بڼه عمل کوي.

مکانیک ماتریالیزم ضرورت مطلق بولي چې په نتیجه کې اتفاق او تصادف نفې کوي او کار مطلق جبر ته کاږي چې د هغه په وړاندې پرته تسلیمیدو څخه بله چاره نشته. مارکسیست ماتریالیزم د ضرورت او اتفاق مقولاتو په منځ کې د ضرورت او آزادي (اختیار) تر منځ ډیالکتیکي اړیکې ته ځای ورکوي.

مکانیــک ماتریالیزم پرتــه د اصل علیت او علی تړلتیــاؤ څخه، په نړۍ کې نورې اړیکې او تړلتیاوې نه پیژني. پداسې حال کې چې مارکسیست ماتریالیزم علــی اړیکه او تړلتیا په نړۍ کې یوازې د اړیکو او تړلتیاؤ یو شــکل پیژني. نور ډولونه هم شته چې باید پیدا او وپیژندل شي.

پــه لنډه توګه مکانیک ماتریالیــزم په اصل علیت کې ټول معلولونه مکانیکي علتونــو پورې، هــر حرکت مکانیکي حرکت پورې او هــر قانونمندي مکانیکي قانون پورې محدودوي. اتفاق او تصادف نفې کوي او په نتیجه کې د پروســې د توضیح لار د مادې د حرکتنور شــکلونه چې د کېفیت له پلوه مکانیکي شکل ســره توپیر لري په خپل مخ تړي د اجتماعي تکامل د کشــف امکان له لاســه ورکوي او د تاریخ په ایدآلیستي درک سره چې افکار د تاریخ د جریان ټاکونکي عامل ګڼي یوځای کیږي. همدغه نواقص او نیمګړتیاوې دي چې ایدآلیســتانو ته له هغې جملې ریالیستانو ته فرصت په لاس ورکوي چې بیا ځلي د ژوند په پدېــدو کــې د غایېت اصل رامنځ ته کړي او د یــو مرموز ځواک وجود څخه د «حیاتــي نیــرو» په نوم خبرې کوي، ژوند پورې اړونده پدېدو کې د علیت اصل

نفـې کوي. مارکسيســت ماترياليزم په دغه ټولو عيبونــو غلبه وکړه او د عليت اصليې د حرکت په ټولو شکلونو کې خپور کړ.

اوس وګورو چې اصل عليت څه شی دی:

عليت د شــيانو او پدېدو او د عيني واقعيت د سيســتمونو تر منځ د تړاو يو شکل دی چې د هغه په موجب هغه پدېده چې علت نوميږي تر ټاکلو شرايطو لانــدې بله پدېده چې معلول نوميږي جبراً لــه ناچاره منځ ته رالولي د علت او معلول تر منځ کولای شو لاندې خصوصيات په لنډه توګه ياد کړو:

۱ ـ په نړۍ کې هر شي لره علت شته،۲ ـ هر ټاکلی علت ټاکلی معلول منځ ته راوړي،۳ ـ د علت منځ ته راتلل (تر ټاکلو شــرايطو لاندې) له ناچارې جبراً د معلول په پيدايښــت پای ته رســيږي او نشي کولی چې پای ته ونه رسيږي ۴ ـ دمعلــول په پيدايښــت علت له منځه ځي ۵ ـ د زمان لــه پلوه علت تر معلول ړومبنــی دی که څه هم د لومړيتوب وخــت ډېر لنډ او ناچيز وي، چه يوازې د محاســبی له مخی هغــه وټاکو ۶ ـ هغه څه چې په يــوې اړيکې کې معلول دی کېدای شي په بلې اړيکې کې علت واقع شي ۷ ـ د علت او معلول اړيکه په شا نــه تلونکې ده پــه دې مانا چې معلول هيڅکله د خپل علت لپاره علت نه واقع کېږي.

دغــه ټول د انســان په تير پراتيک، په علمي تجربــو او په ورته وخت کې په تعقل متکي دي. د عليت اصل لکه د هرې فلســفي مقولې په شــان د پراتيک او تجربی د تجريد او تعميم ثمره ده. خو اســلامي «رئاليزم» د ځينو لويديځو فيلســوفانو په پيــروي تجربه د علمي حقايقو د صحــت ملاک نه ګڼي، په دې باور دي چې:

«د عليــت قانون د ســوچه فلســفي قوانينو يــوه برخه ده يوازې په فلســفي

اصول کولی شــو د هغه نفې یا اثبات ته لاس رسی ولرو. علوم نشي کولی دغه قوانین رد یا اثبات کړي»(۳ ټوک، ۲۲۵ مخ) اســلامي فلســفه دا خاصیت لري چې روښــانه، علمي او حقیقي مســائلو څخه انکار کوي کوم چې له منل شوو حکمونــو څخــه د انکار په مانا دي، د خپلو خاصو افــکارو د اچولو (القاء) په خاطر د ابهام توري پردې اچوي او ماتریالیزم چې د دغو القائناتو تر بار لاندې اوږه نه ورکوي پرې یرغل کوي. مارکسیستي فلسفه، د حرکت د عامو قوانینو، د طبیعت د جوړښــت، د ټولنې او تفکر علم دی چې د علیت قانون یو له دغو عامو قوانینو څخه دی.

هغــه ټکي چې د اصل علیت په هکله وویل شــول اســلامي فلاســفه درې لومړني ټکي مني او هغه په ترتیب ســره تر درې «قوانینو» علیت، ســنخیت او جبرعلی تر عنوان لاندې ذکر کوي، شپږم ټکې تاییدوي خو نور ټکي هغوی ته د منلــو وړ نــدي. په واقعیت کې هغوی مخکې تر هغه چې په اصل علیت باور ولري نورو اندیشــو ته پابند دي، کوښــښ کوي دغه اصل ته په هماغه اندیشو کې د ســمون ځای ورکړي، بالاخره د علیت اصل دومره منل شــوی اصل دی چې به بربنډ ډول یې نفې کول مشکل دی. خو کولی شي په تظاهر سره د دفاع په پلمه د هغی ارزښت ټیټ کړي.

زمانــي اړیکې ته توجه وکړو. د علیت اصل حکم کوي چې علت تر معلول مقدم دی ځکه که معلول پر علت مقدم یا په یو وخت «علت ســره د علت په څنــک کې وي د وجود پیدا کېدو لپــاره علت ته اړتیا نلري». د علت او معلول تر منځ د وخت فاصله د مختلفو حالاتو ســره ســم توپیر لري. په ځینو فزیکي پدېــدو کــې کله زماني فاصله دومره کوتاه وي چې انــدازه کول یې حتی د ډېرو دقیقو وســائلو پواســطه هم شــونې نده، یوازې په محاسبې سره کولی شو هغه

انــدازه کړو. خو په هر حال فاصله همیشــه صفر څخــه زیاته وي. په اجتماعي پدیدو کې کېدای شــي دغه فاصله کلونه کلونه وخت ونیســي. «اصول فلسفه و روش رئالیزم» ظاهراً دغه حکم سره موافق دي څکه چې لیکي:

«علت پر معلول مقدم او معلول تر علت وروستی دی ځکه که علت نه وي معلول به هم نه وي». خو پرته له ځنډه زیاتوي چې:

«په عین حال او عین وخت باید دواړه یو ځای راټول شوي وي، له همدې ځایه ښــکاره ده چې دغه تقدم او تاوخر زماني ندی»(۳ ټوک، ۲۱۲ مخ) (تکیه د فروتن)

دغه جمله په ډاګه کوي چې په لمړنۍ جمله کې غوښــتنه دا ده چې د علت زمانــي تقــدم په معلول ندی او په دې ترتیب د علیت اصل تر پوښــتنې لاندې راځــي. د اصل علیت پر بنســټ علــت د معلول پیدا کوونکــې دی، که چېرې علــت او معلــول دواړه په یو وخت کې یو د بل څنګ کــې یوځای وي، نور نو علــت د معلول منځ تــه راوړلو کې هیڅ نقش نلري. که خبــره د زمان د تقدم او تاوخــر نــه وي نه علت د معلول منځ تــه راوړونکې دی او نه معلول د علت زیږنده کېدای شــي. بیا نو موږ داســې «علت» سره سروکار لرو چې علت ندی او «معلــول» معلــول ندی. پــه دې صورت کې د علیت قانــون چټي او بیهوده خبره ده.

ښــکاره ده چې د علت زماني تقدم پر معلول بانــدې په دې مانا نده چې د دواړو پدیــدو منځ کې چې زماني تسلســل لري که څه هم دغه تسلســل دائمي وي، د دواړو پدیدو په منځ کې چې یوبل پسې راځي د علیت اړیکه شتون لري. د شــپې او ورځی تسلســل، د فصلونو تسلسل په هیڅ ډول د دې امر ویاندوی ندی چې شپه د ورځي علت دی او پسرلی د دوبي علت دی.

د علت زماني تقدم په معلول باندې د اصل علیت یو له اساسـي ټکو څخه دی، نشو کولی چې اصل علیت ومنو او دغه زماني تقدم نفې کړو.

«اسـلامي ریالیزم» بیـا هم په دې باور لري چې نه یـوازې د معلول منځ ته راتـګ بلکـې د هغه بقاء هم علت پورې تړلې ده. «په هماغه ډول چې دمعلول پیدایښت علت ته اړتیا لري بقاء یې هم علت پورې تړلې ده»(۳ ټوک، ۱۱۸) او دا د علیت د قانون یوه څانګه معرفي کوي. کولی شـو دغه حکم په دوه بڼو تفسیر کړو:

لمړی دا چې معلول د خپلې بقاء لپاره علت ته محتاج دی، خو پرته له هغه چې دغه علت معلول ته وجود وربخښـلی دی. دغه مورد نشي کېدای تر شک لاندې واقع شـي، په دې صورت کې د «اسـلامي ریالیـزم» دغه قضاوت چې مادیون (مارکسیسـتان) علت د معلول د بقاء لپاره اړین نه مني له بیخه ناسـم دی او د مارکسیسـت ماتریالیزم د درک نشـتوالی په ډاګه کوي. د مارکسیزم له نظره د نړۍ څیزونه او پدېدې پرله پسې د بدلون، حرکت او تکامل په حال کې دي چې بدلون، تکامل او حرکت دعلت له کبله دي. د نړۍ څیزونه او پدېدې هیڅ یو پرته علت څخه منځ ته نه راځي او پرته له علت څخه په ځای نه پاتې کېږي. هغه څه چې د څیزونو او پدېدو د بقاء موجب ګرځي دهغوی د داخلي او بهرني تضادونو مجموعه ده او ښکاره ده چې په دغه مجموعه کې ټاکونکې نقـش د داخلـي تضادونو دی. د مکان یو سـاده بدلـون د تضاد محصول دی هغه تضاد چې زنون (Zenon) هغه کشف کړاو له هغه څخه یې د حرکت د نفې لپاره مرسـته تر لاسه کړه پداسې حال کې چې دغه تضاد په درستې سره د حرکت علت دی. د حرکت علت، حتی که سـاده بدلون مکان هم وي په خپله هغه کې پټ نغښتی دی. د متضادو ځواکونو په مبارزه کې متضاد ګرایشونه او

حرکتونه وجود لري. هګل وايي:

«د تضادونو کشف چې په حرکت کې خپل ځان په ګوته کوي د پخوانيو ديالکتيسينانو مال دی خو له هغه څخه دا نتيجه نه تر لاسه کېږي چې حرکت وجود نلري، بلکې زياتره دا نتيجه ور څخه تر لاسه کېږي چې حرکت په خپله په واقعيت کې د تضاد شتون په ګوته کوي»

ښکاره ده کله چې حرکت په ساده مکانيکي شکل کې، متضاد خصلت درلودای شي، د حرکت په پيچلو شکلونو کې پرته له شک څخه دا ډول خصلت درلودی شي.

ژوند (په بيولوژيکي مفهوم) پرته له تضاد څخه بل شی ندی چې هره ګړۍ منځ ته راځي، حل کېږي کله چې تضاد له منځه لاړشي ژوند هم تم کېږي. دغه ډول ښايي کله چې شی علت پسې منځ ته راځي بقايي هم بې علته ندی. خو دغه علت هغه علت ندی کوم چې شي ته يې وجود ور په برخه کړيدی. دغه ډول دنړۍ د څيزونو او پدېدو په اړه د مارکسيستانو نظرونه دي چې تر وجود پيدا کېدو وروسته، د هغه بقاء او دوام د هغوی د داخلي او بهرني لاملونو د اغيزې نتيجه ده.

خو د «اصول فلسفه و روش رياليزم» ځينو عبارتونو څخه داسې ګټه اخيستل کېږي چې د ليکوال منظور د شي د بقاء علت هماغه علت دی کوم چې شی يې منځ ته راوړی دی. توجه وکړئ:

«د بيلګې په توګه ډبره چې حرکت کوي... محرکه علت ورسره په هر ځای کې ملګری دي همدغه ځواک دی چې جسم په يو ټاکلي مسير مخ په وړاندې بيايي» (هماغه ځای، ۱۲۸مخ)

«ناشونی ده چې حرکت پيدا شي او د فاعل د کارعامل دغه حرکت له منځه

یوسي او هغه حرکت وکولی شي خپل وجود ته دوام ورکړي» (۱۳۳مخ)

دغه ټول په دې مانا دي چې حرکت یوائې هغه وخت کولی شي خپل وجود ته ادامه ورکړي تر څو د هغه حرکت علت له منځ لاړ نشي او معلول سره ملګری پاتې شي.

«د علت بقاء د معلول په بقاء کې شرط دی» (۱۲۹مخ)

په دې ډول د «اسلامي ریالیزم» مقصد د معلول له اړتیاؤ څخه چې علت په پیدایښت او بقاء کې د قانون په توګه معرفي کویدا دی، هغه علت چې د معلول د پیدایښت موجب کرځیدلی د بقاء موجب یې هم دی.

کله چې «اصول فلسفه و روش ریالیزم» د «قانون» خبرې کوي، حتی یو ساری، نمونه، یو شاهد هم د بیلګې په توګه د هغه په تایید کې وړاندې کړی ندي. که علت د معلول په پیدایښت پای ته رسیږي او خپل موجودیت له لاسه ورکوي بیا نو علت نشته چې معلول هغه ته اړتیا ولري. د الکتریکي بار تخلیه چې تندر او بریښنا ته ژوند بخښي تر یوی لحظی زیات نه پاتی کیږي، د اکسیجن او هایدروجن ترکیب (علت) اوبه (معلول) منځ ته راوړي. ښکاره ده چې اوبه د خپلې بقاء لپاره دغه دوه عناصرو ته چې د ترکیب په حالت کې له منځه ځي اړتیا نلري. یو الکترون سره د یو پوزیترون لګیدل (علت) د دوه فوتونو (معلول) په منځ ته راتلو پای ته رسیږي. د فوتون بقاء نه الکترون ته اړتیا لري او نه پوزیترون ته چې یو یې هم وجود نلري. د ځمکې ګونجبوالی (چین خوردګي) د ځمکې د دوران پیژندنی له مخې د ځمکې د داخلي حرکاتو پواسطه منځ ته راغلي اوس چې په هغه سلګونه میلیونه کلونه تیر شوي په خپل ځای پاتې دي پداسې حال کې چې د هغوی علت (د ځمکې داخلي حرکتونه) د ځمکې د ګونجیتوب په هماغه وخت کې له منځه تللی دی. تاسې

د شـــاباز پواســـطه د تار یو مزي ته ضربه ورکوئ (علت)، غږ راپورته کېږي او انګازه(طنیـــن) خپـــروي (معلول) او ضربه یوه لحظه هم نـــه پاتې کېږي غږ او انـــګازه ســـره ملګریتوب نه کـــوي. د «اصول فلســـفه و روش ریالیزم» په کتاب کـــې د غایـــت او فعل په اړیکه کې، فعل یې علت او غایت یې معلول ښـــودلی او دا ســـمه ده ځکـــه غایت هماغه هدف دی چې تر لاســـه کولـــو لپاره یې باید هڅه وکړو. په دې ډول مواردو کې فعل (علت) هم د غایت (معلول) په منځ ته راتلو ســـره پای ته رســـیږي او معلول پرته له علت څخه خپلې بقاء ته دوام ورکوي. په اروپا کې د رونســـانس د دورې د هنرمندانو نقاشـــي تابلوګانې اوس هم د هنر مینه وال ځان ته راګاږي، په یقین سره راتلونکي کې به یې هم ځانته راجلبوي. پداســـې حال کې چې د هغوی جوړونکو ډېر کلونه پخوا ســـترګې له نـــړۍ څخـــه پټې کړیـــدي. نورې ډېرې بېلګې هم شـــته چې وویل شـــي. په دې ډول د علـــت او معلـــول اړیکه په ټولو حالاتو کې د دغـــه وضاحت له مخې په روښـــانه توګه تر سترګو کېږي او ځینې وخت داسې بریښي چې علت د معلول پـــه منځ ته راتک ســـره لـــه منځه نه ځي او د معلول په څنـــګ کې خپلې بقاء ته ادامـــه ورکـــوي او ظاهراً د علت د بقاء لزوم د معلول بقـــاء پورې د «قانون» په بڼـــه راپورته کېږي. خو دا یوازې ظاهري خبـــره ده. په ځینو حالاتو کې د علت او معلول اړیکي لکه د کړیو په شان چټک یا پخ یوبل پسې راځي، د یوې کړۍ پیژندل د نورو کړیو په منځ آســـانه کار ندی. یو موټر چې د حرکت په حال کې دی په لومړي نظر کې د حرکت علت په خپله حرکت (معلول) څخه جلا ندی، علت او معلول یو د بل په څنګ کې وي خو په واقعیت کې د موټر حرکت د یو سلسله اجزاؤ مرکب دی چې د هغو هر یو د ټاکلي پستون یا پستونو د حرکت معلول دی. د پستون هر حرکت (علت) د حرکت د یوې برخې (معلول) منځ

ته راتګ سـره پای ته رسـیږي، بې له څنډه نوی علت (د پستون نوی حرکت) د هغه ځای نیســي، دغه عمل په دوامداره توګه تکراریږي. روښانه ده چې هره کړی، د حرکت په هره برخه کې، بیا علت د معلول منځ ته راتګ سره له منځه ځي که څه هم ظاهراً علت او معلول یو د بل په څنګ کې ځای لري.

د مولــده نیــرو د تکامل او د علومو د پرمختګ د اړیکــو په منځ کې بیا هم داســې بریښــي چې د مولده نیرو تکامل (علت) د بشــري پوهې په پرمختګ (معلول) پای ته رسیږي او برعکس د بشري پوهې پرمختګ او پراختیا په خپله د مولده نیرو د تکامل منشه ده، همدغه اوڅار (ظاهر) دی چې ډاکټر شریعتي یې تیروســتی دی او اړ کړی یې ده مدعي شــي، چې علت او معلول په متقابل ډول یو د بل علت او معلول دي ځکه د مولده نیرو تکامل د علومو د پرمختګ علــت دی او د علومــو پرمختــګ د مولده نیــرو د تکامل علــت دی. همدغه تېروتنه په«اصول فلسفه و روش رئالیزم» کې په بل ډول تکراریږي چې وروسته به وویل شي. خو کله چې دغه عام حکم کې د علت او معلول مشخصو اړیکو ته توجه وکړو منل شــویده چې یو مشــخص علت د معلول په پیدایښــت سره خپله له منځه ځي او معلول د هغه بقاء لپاره اړتیا نلري.

هر مشــخص علت د هر مشــخص معلول پیدایښــت ســره له منځه ځي او معلول سره نه پاتې کیږي. په دې ډول ټول هغه څه چې پراتیک، تجربه او علم انســان ته زده کوي هغه دا چې قانون د علت د بقاء پر بنســټونود معلول د بقاء ســره یو ځای منځ ته نه راځي. خو د «اصول فلســفه و روش ریالیزم» لپاره دا مهمــه نــده چې علوم په دې برخــه کې څه وایی یا پراتیــک، تجربې او حتی د انسان مشاهدات کومې نتیجې په لاس ورکوي. د هغوی لپاره یوازنی ملاک «د عقل فتوا او فلسفه» ده.

«دغه مسئله باید د سوچه فلسفي مسائلو یوه برخه ومنل شي چې هیڅ تجربي یا غیر تجربي اصل سره چې د فلسفې له حوزې څخه بهر وي اړخ نه لګوي.... دغه مسئله د هغه مسائلو یوه برخه ده چې تحقیق یې یوازې د عقل او برهان له لارې تر لاسه کېدای شي» (دریم ټوک، ۱۲۴ مخ)

هغوی ته فلسفې داسې حکم کړی او دا قانون یې په لاس ورکړی، که چېرې خارجي واقعیت دغه قانون سره په تضاد کې وي، افسوس د وي د دې واقعیت په حال! هغوی مرموز او مجهول ځواک مخې ته راکاږي او حتی جسم کې د حرکت په حال «په خپله جسم سره متحده قوه» کشفوي:

«د هر جسم د حرکت مباشر فاعل په خپله جسم کې متحده قوه ده نه خارجي قوه او حتی د حرکت نوی پیدایښت همد خارجي ځواک تر اغیزې لاندې منځ ته نشي راتللی» (هماغه ځای، ۱۳۹مخ)

اسلامي ریالیزم د مجهولاتو غوښتونکې دی، که مجهول هم نه وي هغه را پیدا کوي. دغه «جسم سره متحده مجهوله قوه» چې هغه «طبیعت» بولي د حرکت په پیښه او بقاء کې هغه سره یوځای دي. تاسو په پښه د فوټبال توپ ته ضربه ورکوئ او هغه ته په ټاکلي سرعت د ټاکلي جهت په لوري حرکت ورکوئ. د حرکت علت هغه ځواک دی چې د پښې په ضربه توپ ته ورکړل شوې. د حرکت سرعت د ضربې شدت پورې اړه لري. دا د هر ماشوم ورځنۍ تجربه ده کوم چې په توپ لوبې کوي. دا هماغه د نیوتن د درې پېړیو پخوانی قانون دی: هر جسم د تل لپاره د سکون په حالت کې پاتې کېږي تر هغه چېقوه په هغه اغیزه وکړي او اړ یې باسي د سکون حالت څخه د حرکت حالت ورشي. هغه څه چې توپ د سکون حالت څخه د حرکت حالت ته بیایی هماغه قوت دی چې په هغه یې اغیزه کړې. د پښې ضربې سره سم دغه قوه

لــه منځــه ځي خــو د توپ حرکت دوام لري او دا پــه دې مانا ده چې د حرکت علت (د پښې د ضربې قوه) حرکت سره ملګرې ندی. خو اسلامي ریالیزم دغه روښانه واقعیت سره کار نلري د هغوی لپاره د پښې ضربه چې خارجي قوه ده حتی د حرکت د منځ ته راتګ علت هم ندی، علت، «جســم سره متحده قوه» ده چې په هر ځای کې حرکت سره یوځای دی! توپ په خپل حرکت کې، خنډ ســره مخامخ کېږي جهت او ســرعت یېبدلون کــوي د دې بدلون جهت علت هغه خنډ دی چې توپ هغه ســره مخامخ شــویدی. خو داسلامي ریالیزم لپاره دبدلون جهت مسئول خنډ ندی «متحده قوه» له توپ سره ده(۱۴)!

معلومه نده دغه روښانه او عادي مسئله ولی باید مرموزځواک یا «طبیعت» مجهول جســم، چې د حرکتد درک لپاره هیڅ اړتیا نلري تورتم او اســرار آمیز جوړ کړو؟

پــه الهي فلســفه کې په هــر قیمت چې کېږي که څه هــم د انګیرنی او ډار په قیمت تمامیږي باید د علت بقاء د معلول بقاء پورې تړلی وښــایی او کله چې انګیرنه او بیره د حقیقت ځای ونیســي بیا هغه وخت د هرې انګیرنې او بیرې لپاره دروازی خلاصي پاتې کېږي کولای شي پېریانو، ښاپیریانو او ملایکو ته د عینیت او واقعیت جامه په تن کړي او نورو ته یې وړاندې کړي.

پورتنــي مطالب ټــول دا په ګوته کوي چې د بقاء د علــت «قانون» د معلول پــه بقاء کې هغه ډول چې اســلامي «فلســفه» مدعي ده واقعیــت نلري. د دې «قانون» د رد په هکله پخوا هم داسې شواهد ذکر شویدي لکه پلار چې ځوی تــه ژوند ورکوي خو ځــوی د خپل ژوند د بقاء لپاره د پلار ژوند ته اړتیا نلري یــا کلــه چې معمــار کور جــوړوي، معمار مړ کېــږي او له منځه ځــي، کور په ځای پاتې کېږي او داســې نور «زرګونه بیلګــې» معمار لمړی کور په خپل مغز

کـېـ جـوړوي چې موخه يې په هغه کور کې اوسـيدل دي. وروسـته تر هغې د ساختماني وسايلو او توکو په لاسته راوړلو سره د فعاليت له مخې خپلې موخې تـه تحقـق ورکـوي... «دا چې د علت فعل دغايت وجـود دی په دې کې هيڅ شک او ترديد نشته»(دريم ټوک، ۲۵۳ مخ).

که چېرې د اسـلامي «فلسـفی» خپل سـری کاواکه قانون سم وي د معمار فعل چې د کور په جوړولو پای ته رسيږي بايد د کور په بقاء کې هم دوام ولري حال دا چې واقعيت په ډاګه تاسـو ته وايی چې معمار د کور په جوړولو سـره خپل فعل ته پای ورکوي او د کور بقاء د خپلې بقاء لپاره چې د معمار په فعل سـره پای ته رسـيدلی معمار ته نوره اړتيا نلري. د «قانون» د اثبات په هکله د «اصول فلسـفه و روش رئاليزم» د حاشيه ليکونکي استدلال په واقعيت کې په خپله په رد کولو پای ته رسيږي چې حيرانوونکې دی. توجه وکړئ:

«معمار د حرکاتو علت دی کوم چې تر سـره کوي يی نه د تعمير علت چې د ټاکلو موادو د خصوصياتو مجموعه ده (په دې ځای کې د تعمير وسـائل د تعمير د علت په ځای ګڼل اشتباه شويده. ف.) د تعمير د بقاء ضامن هغه مواد دي چې خپلو ځانګړو خصوصياتو سره په تعمير کې کارول شويدي...»(هماغه ځای، ۱۲۹ مخ)

«دا چـې فعـل د غايت د وجود علت دی په دې کې شـک او ترديد نشـته» ځکـه دا د معمـار فعـل دی کوم چې د کور د تعمير علـت دی او که چېرې «د تعمير د بقاء ضامن» د معمار فعل ندی بلکې «هغه مواد دي چې خپلو ځانګړو خصوصياتو سـره په تعمير کې کارول شـويدي» روښـانه ده چې د کور د بقاء علـت هماغه د کور وجود علت نـدی. لکه چې ليدل کېږي دغه «دليل» چې د علت د بقاء «قانون» د معلول په بقاء کې اقامه شوی په خپله د «قانون» رد کولو

سره سمون لري چې په خپله اقامه کوونکي هغه ته توجه نده کړې.

اوس دغه پوښتنه منځ ته راځي: چې د علت بقاء د معلول بقاء سره په ټړلو ټینګار کول له کوم ځایه سرچینه اخلي؟ د دې خپل سري «قانون» ریشه چې ټول شیان د هغه په مخالفت کې شاهدي ورکوي له کوم ځایه اوبه چښي؟ کله چې په نړیواله کچه د معلول په بقاء کې د علت په بقاء باور ونشي، په دې مانا ده چې پنځوونکي په هماغه لمړۍ ورځ هغه ورځ چې «نړۍ نه وو او بیا پیدا شه»، نړۍ ته یې وجود ډالۍ کړ او هغه ته یې د تکامل په لور حرکت ورکړ او تر هغه وروسته ټول شیان د جبر او ضرورت له مخې په وړاندې ځي. د معلول په بقاء کې د علت په بقاء باور نه درلودل په دې مانا ده چې پنځوونکې د نړۍ اود شیانو د پیدایښت علت دی خو د هغه د بقاء علت ندی، پنځوونکي نړۍ پیدا کړ خو هغه بدلونونو او تحولات چې د نړۍ تر پیدایښت وروسته په هغه کې منځ ته راځي نور په هغه کې نقش نلري. دغه نظر که څه هم پنځوونکي ته د الوهیت په مقام کې ځای ورکوي خو د مذهب بنسټونه او مذهبي انګېرنې ویجاړوي او هغه وخت چې پنځوونکې یواځې د نړۍ د پیدایښت علت وپیژندل شي، کولی شو هغه د شیانو، پدېدو، پروسو او سیستمونو په بررسي کې ګوښه کړو او حتي هیر یې کړو په ځانګړې توګه د ازل ورځې ځینې را په دې خوا د نړۍ پیژندنې (کیهان شناسی) د علم پرله پسی پرمختګ څخه ورځ تر بلې شا ته اچول کیږي او زیاتره د زمان له لایتناهیتوب څخه حکایت کوي. ښکاره ده کله چې د پنځوونکي نقش یواځې د نړۍ او په هغه کې د شیانو پیدایښت پورې محدود شي (هغه هم کله چې د علم پرمختګ یې تر بې نهایت پورې له مور. څخه لیرې کوي) په کراره کراره له ذهنونو څخه محوه کیږي او د هیر او نیسان په کنده کې لویږي، هغه څه چې ریالیزم یې لکه د نورو ادیانو په شان

نه غواړي د هغې شــاهد اوسي. ســربیره پر دې، دا یوه منل شوې خبره ده چې متحول، مبدلون او متکامل نړۍ په خپلې بقاء کې د نوو پیښو او د نوي شیانو د پیدایښــت پرته بل څه ندی، د نړۍ بقاء د نوو پیښــو له پیدایښت څخه جلا ندی. نو که چیرې د پنځوونکي په لاس له ســره جوړ شــوی وي، نوې پېښــې او نوي شــیان هم باید د پنځوونکي له خوا ســرته ورسیږي. نوې پیښې او نوي پیدایښتونه هم پنځوونکي ته اړتیا لري که څه هم پخواني وي یا تازه او اوسني.

د دې ټولو پایله دا چې اسلامي «فلسفه» ناچاره ده د دې بې بنسټې اندیشې لپــاره چې «د علــت بقاء د معلولبقاء پــورې تړلې ده» د «قانــون» بڼه ورکړي. څــه ډول امــکان لري هغه څه چې په دې نړۍ کې پیښــیږي او منځ ته راځي له پنځوونکي څخه یې لیرې وســاتي؟ پنځوونکې نــه یواځې د نړۍ پیداکوونکې دی بلکــې د ټولو حوادثو واقعــي علت همدی کوم چې نړۍ کې منځ ته راځي. پنځوونکــي یواځــې «لمړنــی علت» ندی «علــت العلــل» دی او دا په دې مانا ده هرهغــه څــه چې پــه دې نړۍ کې تیریــږي د هغه پــه واک او اراده کې دي. پنځوونکې د «علت العلل» په توګه پیژندل، د هغه ذات او مشیت د ټولو کړنو او پیښــو مســئول ګڼل په واقعیت کې د علت او معلول د اصل نفې کول دي، د دې ښکارندویی کوي چې علت یواځې په ظاهر کې، معلول ته وجود ورکوي. د هر معلول اصلي علت د پنځوونکي اراده ده چې «علت العلل» د ټولو علتونو علت دی. ډاکټر شــریعتي او د هغه همغبږي له یوې خوا «جبر» او اصل علیت څخه انکار نشــي کولی ځکه چې دا یو منل شــوی اصل دی او له بلې خوا نشي کولــی آګاه اراده د طبیعــت لــه صحنې څخه حذف کړي، هغــه اراده چې ټول شــیان د هغه په لاس او دهغه په اراده سرته رسیږي، هغه اراده چې لمړنۍ ده، «علت العلل» ده، «داسې علت چې د هیڅ مخکني علت معلول ندی».(ډاکټر

شریعتي، «فلسفه و انسان»، ۹۸مخ)

په «علت العلل»، او د داسې علت په وجود باور درلودل چې د ټولو علتونو علت دي او له ټولو څخه ځواکمن دی، داسې علت چې د هیڅ مخکني علت معلـول نـدی نه یواځې د اصل علیت نفې ده بلکې په فاتالیزم کې ډوبیدل دي، فاتالیزم په برخه لیک باور کول دي، په دې خبرې باور چې انسان، طبیعت، او په ټولنې کې د هرې پیښی منځ ته راتلل د قضا او قدر محصول دی او انسان د هغه په وړاندې بیچاره او بې وسـې دی. په تیرو وختو کې روحانیونو خلکو ته داسـې ښــوونه کوله چې د هر چا برخه لیک ګویا د هغه په تندي لیکل شوی او انســان په هغه لار درومي چې اګاه ارادې مخکې تر مخکې د هغه لپاره ټاکلی دی او له هغه څخه د تیښــتې لار هم وجود نلري. تاســو ته یې د آسمانې کتاب له مخې نکل کاوه چې: تعزمن تشاء و تذل من تشاء، انک علی کل شیئ قدیر، خو دغې کړنلارې څخه ګټه اخیســتل انســان د خپلو اعمالــو په وړاندې له هر ډول مســوولیت څخه پاک ســاتي، د مکافاتو او مجازاتو کیسـې په اوبو لاهو کیږي، هرډول بیعدالتي توجیه کوي. که پاچا د نیاوران په قصر کې ژوند کوي او «ملائـک» یې د هر ډول زلل او ډار په وړاندې امنیت او مصوونیت په غاړه لــري او یــو بینوا چې په تیــارې او یخې کوډله کې ژوند تیــروي، دا ټول د آګاه ارادې غوښتنه ده چې باید قبول او زغم شي. له همدې ځایه ده چې اګاه اراده د ماهیو خاوندانو په مرسته را پورته کیږي، محرومان او وږي د آخرت او جنت په وعده له سرکشــي او عصیان څخه لیرې ســاتي. دغه اندیشه د فلسفې په ژبه داسې ښوول کیږي:

«د حقیقي ذات اراده په ټولو حوادثو کې شــامله ده. هره حادثه چې فرض شــي مســتقیماً د باري ذات له خوا صادریږي او بل هیڅ شــی د دغې پیښې په

راتــګ کــې دخالت نلري. که وینئ چې هغه یا دغه درمل زهر دفع کوي... دا د هغه درمل اغیزه نده بلکې د خدای اراده ده چې وروسته د داروګانو له استعمال څخه شــفا او بهبود ور په برخه کوي. اساساً اسباب او مسببات په واقعیت کې مانا نلري او دا د حق جاري شــوی عادت دی دا چې موږ یې مســببات ګڼو تر شا یې هغه شیان دي چې موږ اسباب نومولي دي، په دې ډول د نړۍ په پیښو کې د علت او معلول، شــرط او مشــروط، سببیت او مســببیتر منځ هیڅ اړیکه وجود نلري او ټول حوادث مستقیماً بلا واسطه د باري ذات ارادې پورې تړلي دي. د انسانانو کړه وړه هم چې په نړۍ کې د حوادثو یوه برخه ده همدغه حکم لري یعنې د انسان عقل او پوهه په کې هیڅ دخالت نلري او دغه فعل مستقیماً له آګاه ارادې څخه ســرچینه اخیستې ده» (له «اصول فلسفه و روش رئالیزم»، دریم ټوک، ۱۶۸ مخ څخه نکل شویده)

کله چې په نړۍ کې هره پیښــه له هغه جملې د انســان اراده مســتقیماً آګاه ارادې څخه سرچینه اخلي نور د اصل علیت لپاره ځای نه پاتې کیږي.

که وکولی شــو د پورتنۍ نظرې پلویان «جبري» ونوموو بیا نشــو کولی دغه عنــوان د مادیونــو په هکله اســتعمال کړو ځکه چې مادیــون حتی د ۱۷ ــــ ۱۸ زیږدیــزی پیړیو د مکانیک ماتریالیزم پیروان هم ټول شــیان د عادي قوانینو او اصل علیت تابع شمیرل نه د ماوراء طبیعي ځواک یا د آګاه ارادې تابع. په دې ځای کې «جبر» فاتالیزم ســره مترادف دی، یعني قضا او قدر، د الهي غوښتنه، ځکه په دې دواړو حالاتو کې ټولې پیښــې حتی د انســان کړنې مستقیماً د حق له ارادې څخه سرچینه اخلي.

اصــول فلســفه و روش ریالیزم«د اشــاعره نظریه (هغه څــه چې پورته ذکر شول) په غیر مستقیم توګه «مغالطه» بولي، ناخبره له دې چې همدا اوس د هغه

«علماؤ» له خوا چې اسلام څخه يې په وفاداري کې هيڅ شک نشته څرګنديږي او څرګندوي يې. «شهيد محراب» دست غيب چې د اسلامي جمهوري د ټولو رهبرانو د احترام وړ دی، مسلمانانو ته داسې ارشاد کوي:

«بشر خپلو ګټو ته د رسيدلو په خاطر يا له تاوان څخه د خلاصون په خاطر اسـبابونو ته پناه وړي خو کله چې مقصد ته ورسـيږي بيا هغه له هماغه سبب څينې ګڼي پداسـې حال کې چې ګټه رسوونکې او نجات ورکوونکې خدای دی د اسباب په وسيله، بيا وروسته له دقت او ځير څخه پوهيږي چې ټول سببونه پنځول شوي او د نړۍ د پنځوونکي جوړښتونه دي د هغوی اغيزه له هغه څخه ده او د هغوی د ظهور اغيزه هم د هغه غوښتنې او امر پورې متوقف ده. قل لا املک لنفسی نفعاً و لا ضراً الاما شاء الله(سوره اعراف، آيه ۱۸۸)

«د الهی سنت د دې لپاره جاري شويدی چې د بندګانو تربيت او د هغوی د کارونو اصلاح د اسبابونو له لارې جاري کړي. بيا چې عاقل هر سبب ته لاس وړاندې کوي بايد د هغه سـبب جوړوونکې او پنځوونکې په پام کې ونيسـي او وپوهيږي چې که چيرې هغه يې ونه غواړي هيڅ اثر به يې پيدانشي. همدا ډول که هغه وغواړي د هغه سبب يا بل سبب چې ګمان يې نه کيږي يا پرته له «هيڅ سببه منظور عملي کوي»

(د «قلب سليم» کتاب، د کيهان ورځپاڼې څخه نکل شوی) (تکيه د ـ ف)

دا هماغــه د «اشــاعره» نظر دی چې د ايت الله له خــوا په نورو کلماتو کې څرګنديږي. «پرته له هيڅ ســببه» کلمات پاکې اوبه دي چې د «اصول فلســفه و روش رياليزم» په لاســونو تويږي چې په بربنډه توګه او صراحت ســره اصل عليــت نفــې کوي ځکه چې «منظــور» (معلول) «پرته له هيڅ ســبب» (علت) څخه عملي کيږي

د «حجت الاسلام والمسلمین» رفسنجاني دغه دور شیندنې ته توجه وکړئ:

«د مخلوقاتــو او موجوداتو مالک هغه خدای دی که ونه غواړي هیڅ نشــته او که وغواړي هر څه شته، مخلوقات او موجودات دومره په خپل ماهیت کې هیڅ دي چې پرته له خدای او پرته له خدای سره په اړیکه کې د تحقق او تصور وړ هم ندي» (د اقتصادي خطبې، یوولســمه برخه، اطلاعات، ۵- ۱۰ - ۶۱)

د اصــل علیت نفــې کول په همدې ځای کې پای نه مومــي. که په نړۍ کې هر شــي لره علت شــته په دې ډول، هیڅ موجود او هیڅ حادثه پرته له علت څخه نشته او کېدای نشي. دغه اصل په هر ځای کې، په طبیعت کې، په ټولنه کې، په تفکر کې حاکم دی او دا دغه شان موضوع نده چې انکار ورڅخه وکړای شو. «اصول فلســفه» هم دا هغه شــان اصل ګڼي چې نفې کول یې هر څه له منځه وړي. په دې ډول اســلامي ریالیزم ناچاره دی چې اصل علیت نفې کړي او په ورته وخت کې د هغه د اثبات لپاره ګریوان څیرې کړي. دلیل یې هم روښــانه ده. اصــل علیــت پرته له علت څخه وجود نه منــي او په پایله کې د پنځوونکي وجود چې موجود او حادث ندی تر پوښتنې لاندې راولي نو له دې کبله یا باید اصل علیت ومني او په ټینګه له هغه څخه دفاع وشــي چې په دې صورت کې د پنځوونکي لپاره ځای نه پاتې کېږي او یا اصل علیت له پام څخه وغورځوي او پرته له علت څخه د وجود په لټه کې شي که چېرې پرته له علت څخه وجود شــتون ولــري نو د دې لپاره هیڅ دلیل نشــته چې نور موجــودات یا حتی ټول موجــودات پرته لــه علت څخه د وجود ډګر ته ندي راغلــي. بې ګټې نده چې آیت الله دستغیب «پرته له سبب څخه د منظور» عملي کېدلو خبرې کوي.

خو د اســلامي فلســفې له عجایبو څخه دا دی چې ریالیزم هم اصل علیت منــي او هــم پرته لــه علت څخه وجود مني، او کوښــښ کوي چــې دغه بربنډ

تناقض په هغه چارو کې چې پرته له سفسطې یی بل څه نومولی نشو توجیه کوي.

هغه په لومړي ځل د لوستونکو او اوریدونکود سربدال او ګیج کولو لپاره عربي ژبي ته مخ کوي او دوه اصطلاحات «ضرورت بالغیر» او «ضرورت بالذات» اختراع کوي او د اسلامي فلسفی عاشقانو ته یې ډالۍ کوي.

«ضرورت بالغیر یعنې دا چې موجود پخپل وجود کې په بل شي متکي وي او د شي دغه تکیه ځای چې د هغه د وجود علت دی وجود او د وجود ضرورت تر لاسه» کړي او«ضرورت بالذات یعنې دا چې موجود پرته له دې چې موجود په کوم علت تکیه وکړي پخپل ذات ولاړ وي».(«اصول فلسفه»، ۳ټوک، ۹۰مخ)

په ساده عبارت «ضرورت بالغیر» یعنې هغه شی چې علت غواړي او «ضرورت بالذات» یعنې هغه شی چې علت نه غواړي. خو که چیرې د اصل علیت مطابق «هره پدیده چې منځ ته راځي علت لري که چیرې دغه علت نه وي فرض شوی پدیده به هم نه وي.» (هماغه ځای، ۱۱۷مخ، (تکیه--ف)

یا په بل عبارت «که هر څه علت ته اړتیا لري» شی پرته له علت څخه د منلو وړ نه وي او «موجود پرته له تکیه کولو په علت باندې وجود» پیدا کولی نشي. نشو کولی چې هم د علیت په قانون باور ولرو (هر شی علت لري) او هم شی پرته له علت څخه ومنو. د «ضرورت بالغیر» او «ضرورت بالذات» تر منځ تناقض په کلماتو لوبې کولو سره یا دهغوی په وینا «با تلاعب با لفاظ» نه حل کیږي. کله چې څو لسیزې د دریم ټوک تر انتشار او د اصل علیت څخه د «دفاع» وروسته دغه «مثنوي د څو مودې لپاره وتړل شوه» اسلامي ریالیزم په ۱۳۵۰ کال د پورته یاد شوي تناقض د حل لپاره بل ډهول او سورنی غږوي:

«د نومـوړي قانون مضمون د (عليـت قانون) دا ندی چې هر موجود علت غواړي، بلکې دا ده چې هره حادثه علت لري يعنې کوم شــی «نه وو او بيا پيدا شو» د هغه د پيدايښت لپاره علت ضروري دی .(۵ ټوک، ۶۴ مخ)

اســلامي رياليزم په دې ډول خپل تيرشــوي حکمونه هيروي. مخکې تر دې اصــل عليــت په دې مانا وو چې «هره پدېده چــې څرګنديږي علت لري او که دغه علت نه وي فرض شــوې پدېده به هم نه وي» او اوس په دې مانا ده چې «د عليــت قانــون په دې مانا ندی چــې هر موجود علت غواړي». نشــو کولی چې تر دې زيات د عليت قانون په بربنډه توګه نفې کړو. که چېرې هر موجود د پيدايښــت لپاره علت تــه اړتيا ونلري څرګنديږي چــې د عليت قانون قانون نــدی ځکــه چې فراګير او رانغاړی ندی. ســربيره پر دې د «اصول فلســفه» په دريــم ټــوک کې چې هلته د اصل عليت څخه خبرې کيـږي په هغه د «حادثې» او «موجــود» تــر منځ توپير نه کيږي. ځکه چې هره حادثه په پيدايښــت پای ته رســيږي او موجود منــځ ته راځي که څه هم دغه موجــود د زيات وخت لپاره پاتې نشي. کوم داسې موجود ښودلی شو چې خپل «شتون» له «نشتون» څخه تــر لاســه نکړي. هر موجــود حــدوث دی، د حادثې او موجود تــر منځ توپير نشــته او نشــو کولی يواځې د حادثې او موجود تر منځ يواځې په توپير ابښودلو ســره د فلســفې لپاره د عليت قانون درک څخه پرته بل علمي درک د منلو وړ وګرځي. د «اصول فلســفه» د دريم ټوک په هر ځای کې د حادثې او موجود تر منځ مســاويتوب برقرار دی: «.... هغه موجودات چې همدا اوس د حادثې په بڼه په نړۍ کې وجود لري...» (۱۴۳ مخ). «د نړۍ د موجوداتو نظام جبري او ضــروري نظــام دی» (۹۰ ــ ۸۹ مخ)«په نړۍ کې چې د هرې حادثې او پدېدې پــه مخ ګوته کيــږدو بايد ووايو دا يو موجود دی چــې وجود يې ضروري دی»

(۱۹۲مخ) خو وروسته تر هغې چې «سرې وېنې شودې» کېږي په ناڅاپه توګه یو وار د موجود او حادثې تر منځ دومر واټن منځ ته راځي چې یو یې (موجود) علــت نه غــواړي او بل یې (حادثه) علت ته اړتیا لــري. وایی به چې «حادثه» د «موجــود» پر ځای کېښــینول،«د نړۍ دموجوداتو ضــروري نظام» د«حوادثو ضروري نظام» پر ځای کېښــینول یا بالاخــره د «ضرورت بالغیر» او «ضرورت بالــذات» الفــاظ د اصل علیت او د هغه د نفې پر ځای کېښــینول، د دې خبرې ماهیت ته بدلون ورکوي او معجزه منځ ته راځي چې د هغه په مرسته کولی شي د اصل علیت په نفې کولو ســره اصل علیت جوړجاړي ته اړباسي. واقعیت دا دی چې اصل علیت له موجود یا وجود سره له علت پرته جوړجاړی نلري، یا باید اصل علیت ومنو چې په دې صورت کې وجود پرته له علت څخه ناشونی دی یا پرته له علت څخه وجود ومنو او له ناچارې په اصل علیت سترګې پټې کړو. د دغو دوه متضادو حکمونو پخلا کول خوشې عبث کوښښ دي چې په هیڅ سفسطې سره نشو کولی هغه توجیه کړو.

دا وروســتۍ خبرې ندی. که هر موجود خپل علت د بل موجود له ناحیی څخــه تر لاســه کــوي، د نړۍ د موجوداتــو نظام چې جبري او ضــروري ده له ناچارې یوه څېره یا یو ځنځیر جوړوي چې هره کړۍ د معلول مخکنۍ کړۍ او د علت وروستنۍ کړۍدی. هغه ډول چې دغه مطلب د «اصول فلسفې» څخه راوځي د اسلامي ریالیزم لپاره هم د منلو وړ ده. خو ایا دغه سلسله، نا متناهي ده یــا متناهــي، په دې هکله د ماتریالیزم او اســلامي ریالیــزم تر منځ اختلاف منځ ته راځي او دا هم طبیعي خبره ده چې ماتریالیزم، دغه د علل او معلولاتو ځنځیر او سلسله لایتناهي پیژني په دې ډول د اصل علیت څخه دفاع په خپل ځای ولاړه ده او اسلامي ریالیزم دغه سلسله د وجود قائم بالذات یعنې وجود

پرتــه له علت څخه پای ته رســوي چې په پایله کې اصل علیت څخه ســترګې پټول دي. د موضوع سلسله، علل او معلول چې «مستقل او قائم بالذات» پای ته رســیږي هماغــه د اصل علیت د موضوع نفې کــول دي چې بله بڼه ځان ته غوره کوي.

د اصل علیت وروســتۍ خبره، د علت او معلول د اړیکو بیرته په شــا د تللو د ناشــونیتوب خبــره ده په دې مانا چې معلول نشــي کولــی د خپل علت لپاره علت وګرځي، په بل عبارت که الف د ب علت وي، ب معلول په متقابله توګه ناشــونې ده چې د الف علت وګرځي. پرته له دې څخه دوران او تسلســل منځ ته راځي چې ناشونې ده. د بیلګې په توګه په کوټه کې د حرارت د درجې لوړیدل د ترمامیتر د درجې د لوړیدو علت دی خو د ترمامیتر د درجې لوړیدل د کوټې د حرارت د لوړیدو علت ندی، د فلزاتو د پړســیدلو (انبســاط) علت حرارت دی، خو د حرارت علت د فلزاتو پړســیدل ندي، د اور ســوزونې علت اور دی خو د اور علت اور ســوزي نده او داســې نور. هر څوک کولی شــي په لږ سوچ ســره دغه روڼ حقیقت تر لاســه کړي. موږ مخکې ولیدل چې ډاکټر شــریعتي څــه ډول د علت او معلول نه ګرځیدونکی (برګشــت ناپذیر) اصل څخه انکار کوي. «اصول فلســفه» هم د ډاکټر شریعتي دغه نظر سره ملګری دی او هم په هغه ځای کې چې غایت او غایې علت مطرح کوي داسې لیکي:

«فعل او غایت یو د بل په نسبت متقابل علیت لري یعنې هم فعل د غایت علــت دی او هــم غایت د فعل علت دی، خو د دغه متقابل علیت د تسلســل دوره له هغه ډلې نده چې ناشونې دی»

او توضیح ورکوي:

«د غایــت دخالــت د فعل په وجود کــې په دې ډول نــده،د خارجي غایت

وجــود چې د فعل د وجود تر شــا دی، د فعل د وجــود علت د وګرځي، ځکه دا ناشــونې او ناشونکې دی. بلکې په دې ډول ده چې د غایت وجود د فاعل د وجود په اډانه کې، د فعل د وجود علت دی، په بل عبارت د فاعل توجه غایت تــه، د فعــل د وجود علت دی کــه چیري غایت ته دغه توجــه او میل په فاعل کــې نــه وي فعل هیڅکله خارجي وجود پیدا کولی نشــو» (دریم ټوک، ۲۵۳ـ ۲۵۴ مخ)

هغه سفســطه چې په دغه اســتدلال کې کارول شــوې دا ده چې لیکونکي د غایت خارجي وجود چې معلول دی، غایت د فاعل په ذهن کې داســې انځور شــوی چې لا تر اوســه یې وجود پیدا کړی نده هغه ســره یی یوشان پیژندلي. هــدف د یــو فکري انځور په بڼه له هغه هدف ســره چې تحقــق یی موندلی او خارجي وجود یې پیداکړی یو شــان نــدي. لومړني د فعل علت دی او دویمي د فعــل معلول، هغه فعل چې پای ته رســیدلی او موخې ته یې تحقق ورکړی. موږ د غایت په لفظ کې دوه محتواؤ سره سروکار لرو: یوه ایده یی او بله مادي کــه دغــه دواړه ونه وینو پــه غلطه لار تللي یو. د «اســلامي ریالیزم» تیروتنه له همدې ځای څخه سرچینه اخلي چې په واقعیت کې د «غایت» لفظ سره لوبې کول دي. «غایت» (هدف) ته توجه کول انسان هڅوي چې په خپل فعل سره غایــت ته وجود ورکړي. نو بیافعل دغایــت د وجود د تحقق علت دی. خو د غایت خارجي وجود چې «د فعل له وجود څخه مووخر دی» نشي کېدای چې د فعل د وجود علت وګرځي. «دا ناشــونی او ناشــونکې دی». خو دا چې ګویا په اســلامي ریالیزم لازمیږي چې «فعل او غایت نسبت یوبل ته متقابل علت» وښــایی، باید ټکي او درغلي څخه کار واخلي تر څو «ناشــونی او ناشــونکې» ممکن شي. په پایله کې د «فاعل توجه غایت ته» موضوع وروسته تر هغه چې

غايت خارجي وجود پيدا کړي مطرح کوي.

ښکاره ده چې د غايت د وجود پيدا کېدو وروسته، نه يوازې فعل بلکې «غايت ته توجه کول» هم له منځه ځي طبيعي ده کوم شی چې خارجي وجود نلري نشي کولی علت واقع شي. تاسو مخکې له هغه څخه چې مجسمه جوړه کړئ، تابلو نقاشي کړئ، يا د غاړی شال جوړ کړئ تاسو کې د «غايت لپاره توجه» وجود لري او همدغه توجه ده چې تاسو فعل ته هڅوي. خو کله چې مجسمه مو جوړه کړه، تابلو مو نقاشي کړه او د غاړی شال مو جوړ کړ، هدف «غايت» ته تحقق ورکولو سره سم بيا «غايت ته د توجه» خبره بې مانا او بې محتوا ده، په دې اساس دغه تصديق چې «غايت ته توجه د فعل د وجود علت دی» باطله خبره ده ځکه اساساً توجه نده چې د فعل علت واقع شي. په دې ډول د غايت د وجود تر پيدا کېدو وروسته د فعل وجود څخه خبره (هغه فعل چې غايت ته يې تحقق ورکړی او پای يې موندلی) چټي او بې ګټې خبره ده ځکه چې فعل د غايت علت دی او د معلول تر پيدايښت وروسته پای مومي او خپل ضرورت هم له لاسه ورکوي.

اسلامي رياليزم چټي کوښښ کوي چې اصل عليت په ځان کې ځای په ځای کړي او له هغه څخه د ځان په ګټه کار واخلي. خو اصول د علم پر بنسټ له هغې ټولګې اصل عليت، د رياليزم لپاره د منلو وړ نده او کېدای هم نشي. ځکه چې د اسلامي معتقداتو سره په تضاد کې ده. د نن ورځی علم او پوهه داسې شی ندی چې په اساني سره له هغوی سترګې پټې شي په ځانګړې توګه کله چې د اسلامې رياليزم په وړاندې د مارکسيزم فلسفه چې علوم او د هغوی تکامل يې بنسټ جوړوي راپورته کېږي. آيا کولی شو د نن ورځی علم او پوهه د مذهب په خدمت کې کېږدو؟ ډېره موده کېږي چې مسيحيت په دې کوښښ

لاس پــورې کړې خو بــرى يې نده موندلــى. اوس اســلامي ریالیزمپه دې لار ګامونه پورته کوي چې تر مسيحي ریالیزم به غوره برخه لیک ونه لري.

همدغه اســلامي فيلســوفان چې په خپله اصل علیت ته غاړه ايښــودونکي ندي، مارکســیزم ملامتوي چې ګويا د تناقض په لومه کې نښــتي دي څکه چې: «له يوې خوا ځانونه په معلولي او علی نظام باورمن ښايی له بلې خوا جبرعلی او معلول د مبداء کل اوصانع کل د نفې کولو لپاره دليل وړاندې کوي او دعوه کــوي چــې د موجوداتو پیدايښــت د نظام علی او جبــري معلوله مخې بل څه کېداي نشــي نو د مبــداء کل او د صانع کل د وجود فرضــول مانا نلري، ځکه چــې د هــر موجود وجود د ضــرورت او جبر له مخــې ده او هر موجود پخپل وار د ځان رب (واجب الوجود) دی نو بيا د واجب الوجود فرض کول چې د ټولو موجوداتو خالق وي څه لزوميت لري... ماديیون نعل سرچپه ټکوي ځکه د ماديت بنســټ او له مبداء کل څخه انکار کول د نظام علی او معلول د نفې کولــو د ټکر اســاس جوړوي نــه د هغه د اثبات، خو ماديیــون چې د عليت او معلولیــت منلــو څخه پرته بله چاره نه ويني د پوهــي او ناپوهي له مخې د جبر غیر او جبر ذاتي ترمنځ اشتباه کوي» (۳ټوک، ۹۱مخ)

دا په واقعيت کې «اسلامي ریالیزم» دی چې بېځايه اصل علیت پورې نښلي پداســې حال کې چې عقيده پرې نلري. ماتریالیزم وايی «د هســتي په نړۍ کې هر څه علت لري» په پای کې دا په لاس راکوي چې وجود پرته له علت څخه د اصــل علیــت ځینی مغايرت لري. دغه دوه حکمونه يو د بل مکمل دي او په بشــپړه توګه د اصل علیت پــه چوکاټ کې ځايیږي. د ریالیــزم لمړنی تصديق يعنې «هر شــی علت لري» مني خو له هغه څخه چپه اومعکوســه نتيجه اخلي اومدعي کېږي چې وجود پرته له علت څخه «قائم باالذات» هم دی چې دا «جړ

پـړ کول دي»، اصل علیت ته بې اعتنايی ده حتی د هغوی خپل صوري منطق سره هم اړخ نه لګوي.دا دې ته ورته کېږي چې ووايو: انسان په دوه پښو په لار ځي خو د څلورو پښو انسان هم منلی شو او يا له دې تصديق څخه «هره ډېره چې فضا ته ګوزار شـي ځمکې ته راپريوځي» داسـې نتيجه واخلو چې «داسـې ډېره هم شـتون لري چې فضا ته وروسـته له ګوزارولو په ځمکه نه پريوځي» د وجود منل پرته علت څخه د اصل علیت رټل دي. که د مارکسيست ماترياليزم او «اسـلامي رياليزم» تر منځ يوله هغو څخه نعل چپه ټکوي،مسلماً يو له هغو څخه مارکسيست ماترياليزم ندی، هغه اسلامي رياليزم دی.

## جبر او اختيار

د جبـر او اختيار مسـئله له ډېرو پيړيو راهيسـې د مختلفـو مذاهبو لارويان ځان سره بوخت ساتلي او هغوی يې سختې جګړې او لانجو ته راکښلي دي. پـه منځنيـو پيړيو کې د مطلق او قادر پروردګار (مطلـق علم، علت العلل) او د انسـان د آزادي د اړيکو په هکله د کليسـا د مشـرانو تر منځ پرله پسـې کلک بحثونه پيل کړل. په ورته وخت کې يو به د تضاد د حل لپاره، د انسـان آزادي او اراده غوره او برجسته ښووله او د پروردګار نقش به يې تر ډېرې ټيټې کچې کښته په ګوته کاوه، او بل به برعکس د خدای مطلق قدرت څخه خبرې کولې چې د انسـان اراده يې ترمخه د يو ټاکلي مسـير په لور سـيخه کړيده، په پايله کې د انسـان آزادي او اختيار بی محتوا کلمات شـميرل کېدل. په دې کار کې لانجه تر هغه ځايه ورسـيده چې با الاخره پاپ دې ته اړ شو ترڅو د وروستنی تصميـم له مخې دغې مسـولې ته د پای ټکې کېږدي. خـو د پاپ دغه تصميم هيڅکله د «صدور شـرف» تر لاسـه نه کړ ځکه چې د دې تضاد حل د مذهب په چوکاټ ناشـونی دی. د اسـلام په نړۍ کې هم دغه نه حل کېدونکي تضاد،

دوه مختلفې فرقې منځ ته راوړې. اشاعره چې د پنځوونکي اراده د نړۍ په ټولو پیښــو او حوادثو کې شــامل ګڼي په دې ډول د انسان ټولې کړنې او اعمال چې د عالــم د حوادثو په شــمیره کې راځي هم د خــدای د ارادې په دائره کې ځای درلود او منشاء یې د پروردګار له ارادې څخه ګڼل کېده. معتزله برعکس په دې باور درلود چې د پروردګار اراده د نړۍ په چارو او پیښــو کې ذیدخل ندی. د پــروردګار نقش یواځې دا دی چې نــړۍ یې پیدا کړی او هغه یې په حرکت او جریان چې اچولی، د انســان اعمال او افعال هم په خپله انســان څخه سر وهي او مسئولیت یې هم د انسان په غاړه دی. که توجه وکړو د مذهبې معتقداتو له مخې انسان د هغه اعمالو په خاطر چې سر ته یې رسوي مکافات تر لاسه کوي یا مجازات کېږي، هغه وخت دغه پوښتنه منځ ته راځي: که چېرې په نړۍ کې ټول حوادث له هغه ټولګې د انسان افعال او اعمال د مطلق پروردګار له ارادې پرتــه منځ ته نه راځي، یعنې انســان په خپلو اعمالو کــې آزادي او اختیار څخه برخه ور ندی، نو د مکافاتو او مجازاتو لپاره څه ځای پاتې کېږي؟ له یوې خوا غښتلې اراده تاسو ته حکم کوي او تاسې اړ باسي هغه څه چې غواړي سر ته یې رســوئ او له بلې خوا هغه څه چې ســر ته رسوي مکافات یا مجازات درکوي. همدا ډول هغه څه چې تاســو ته وایی په خپل عمل کې آزاد او مختار یاســت: له یوې خوا قدر، قســمت او د الهي مشــیت، له بلې خوا د انســان په آزادي او اختیــار اعتقــاد. د همدې تضاد د حل لپاره ده چــې معتزله د پنځوونکي نقش هماغه لومړني حرکت پورې محدودوي. وروسته تر هغه خدای هر څه په خپل حال پریښــوولي دي او انســان یې هم په خپلو اعمالو او افعالو کې آزاد خوشې کړیدی، کوم چې په خپل وار یې نورې ستونزې او مشکلات منځ ته راوړي.

لــه پورتــه مطالبو څخه په ډاګه ده کله چې د جبر څخه (د اختیار په مقابل)

کې خبرې کیږي جبر ته د الهي قدر او مشــیت په ســترګه کتل کیږي نه د علمي مفهوم په توګه، په هغه مفهوم چې ماتریالیزم ته د قبول وړ ده. جبر په علمي معنا او همدا ډول د مارکسیســتي مفهوم پر بنسټ دا دی چې د نړۍ نظام(طبیعت، ټولنه او شعور) یو ضروري نظام دی او اړتیا یې د علیت اصل او علمي قوانینو څخه سرچینه اخلي. جبر مني او غواړي چې په ټولو عیني واقعیتونو کې د علی او قانونمندانه اړیکو په اســاس څیړنه په مخ یوړله شــي او د دغو واقعیتونو په هــر ډول توضیــح کې د ماوراءطبیعي ځواک او د غیر مادي اصولو له مرســتې اخیستلو ډډه وشي. هغه څه چې د هر ډول علمي څیړنې متدولوژي او د بهرنۍ نړۍ پیژندګلوي سره بشپړ سمون لري.

اسلامي ریالیزم چې په ټینګار سره د علیت اصل څخه دفاع کوي لیکي: «د ضرورت اصل او د هســتي نظام د لزومیت مطابق په دې نړۍ کې هیڅ حادثه له ضرورت او لزومیت پرته وجود نه مومي.... که چېرې د پیښو څخه د هرې پیښې تامه علت حقیقت پیدا کړي جبرا او ضرورتا تحقق پیدا کوي او ناشونې ده چې تحقق پیدا نکړي». «دغه قانون استثنا نلري یعنې داسې نده چې د نړۍ د ځینــو پیښــو په هکله د عمومي علیت د قانــون او د عمومي ضرورت مطابق منــځ تــه راځي او له منځه ځي او پــه ځینو نورو برخو کې لــه دې قانون څخه پیروي نه کوي».(«اصول فلسفه و روش رئالیزم»، ۳ ټوک، ۱۴۹ مخ)

څو پاڼې وروسته شعور او اراده د علیت له قانون او عمومي ضرورت څخه مســتثنی کیږي او د انســان افعال: «په عین وخت کې چې په خپله انسان پورې اړه لري بیا هم د باري ذات ارادې سره یواځې په طول کې یوبل سرهتړاو لري نه په عرض کې د شرکت په توګه» (هماغه ځای، ۱۷۴ مخ)

اسلامي ریالیزم په دې باور دی چې د جبر او تفویض دواړه نظریې (اشاعره

او معتزله) یو تربله تېرویستل دي هیڅ یو حقیقت سره اړخ نه لګوي:

«د جبـر نظریــه د (تفویض په وړاندې) سـل په سـلو کې پــه اصطلاح یوه ایدآلیســتي نظریه ده ځکه چې په نړۍ کې د پیښــو تر منځ د علوی او معلول او سببي او مسببي اړیکو څخه انکار کول دي. ټولې پیښې مستقیماً د باري ذات د ارادې زیږنده بولي» (هماغه ځای، ۱۷۷۹مخ)

خو له هغه ځایه چې ریالیزم خپل ځان د الفاظو او کلماتو په قالب رانغاړي محتــوا یې په واقعیت کــې د نړۍ په ټولو چارو او حوادثو کې له هغه ټولګې د انسان په افعالو او اعمالو کې د قادر متعال له نقش پرته بل څه ندي. کله چې اســلامي ریالیزم پنځوونکې «علت العلل» پیژنــي یعنې د ټولو علتونو علت، د علتونو په سر کې مافوق علت، نه د نورو علتونو سره په عرض کې علت (یعنې د معلول پیدایښــت پرته له شــریک څخه) بلکې هغه ســره په طول کې، په دې صورت کې ښکاره ده چې د نړۍ د حوادثو واقعي علت هماغه علت العلل دی او تــول علتونــه خپله اغېزه له هغه څخه تر لاســه کوي او د هغه له نقش څخه پرتــه د علت نقش نشــي لوبولی. علت العلل یعنــې هغه علت چې پرته له هغه څخه، بل هیڅ علت قادر ندی چې مســتقلاً او پرته له هغه څخه خپل معلول ته وجود وبخښــي. که درمل ناروغ ته شفا ورکوي هماغه علت العلل دی چې د درمل د اغیزې ســبب ګرځي. د معلول د وجود پیدایښــت د علت په اســتناد ندی (ځکه چې علت پرته علت العلل څخه معلول ته وجود نه ورکوي) بلکې د علــت العلل په اســتناد دی. ښــکاره ده که چېرې په نړۍ کې هیڅ شــی پرته لــه علــت العلل څخه وجود نه پیدا کوي له ناچــارې هغه چې واقعي علت دی هماغــه علــت العلل دی. په بل عبارت هیڅ علت علت ندی مګر دا چې علت العلــل هغــه ته د علت خاصیت تفویض کړي او دا په دې مانا دی چې په نړۍ

کې ټول شـيان د علت العلل معلول دي او ټولې پيښې او موجودات او پدېدې د علـت العلل په پياوړي لاس منځ ته راځي او دا هماغه د اشـاعرې نظريه ده چې د علت العلل مفهوم څخه راټوکيږي. دغه مسـئله د جبر او اصل عليت او دهغه د علمي مفهوم رټل دي.

د اختيار په هکله هم وضع په همدې ډول ده ځکه چې: «د انسـانانو افعال هم لکه چې ترمخه وويل شـول د هغه د ارادې په اسـتناد او هم د بل علت په استناد منځ ته راځي خو يو بل سره په طول کې نه يوبل سره په عرض کې يعنې تر انسان ځينې مافوق علت، د انسان فعل د انسان د ارادې له لارې اراده کوي» (هماغه ځای، ۱۷۰ ـ ۱۷۱ مخ)

توجـه وکړئ: انسـان ځينې مافوقـه اراده، هغه اراده چې انسـان د هغې په وړاندې بې وسـې دی هغه اراده کوي چې انسـان فعل سرته ورسوي او انسان هم هغه فعل ته اراده کوي او سرته يې رسوي. آيا کولای شو ووايو چې د انسان ارادې پـه آزادانـه ډول د خپل اختيار له مخې دغه فعل چې سـرته يې رسـولی تعلق نيولی؟ پرته له شک څخه نشو ويلای. يو سرتيري ته فرمان ورکول کيږي چـې د خلکـو په مخ مرمۍ وچلوي (د سـرتيري د ارادې په طول کې اراده نه د هغـې پـه عرض کې) که سـرتيری ونه غواړي او اراده يې هم هغی سـره تعلق ونه نيسي بيا هم مجبور دی چې فرمان سرته ورسوي. آيا په دغه مرمۍ چلولو او ډزو کې، سـرتيري د خلکو وژنه په آزادانه توګه اختيار کړيده؟ البته وبه وايو چې سـرتيري کولای شـي د فرمان په وړاندې ودريږي او حتی د خپل ځان په بيـه د فرمـان ليږدوونکي د ارادې پـه وړاندې خپله اراده تحميـل کړي خو آيا کولی شـو د الهی فرمان او ارادې په وړاندې ودريږو؟ نتيجه بيا هم هماغه ده چې پورته وويل شول: د انسان افعال او اعمال د «انسان څخه د مافوق علت»

نتیجه ده. چې«د انسـان فعل د انسـان د ارادې له لارې اراده کوي». د هر عمل سرته رسیدل، انسان څخه د فوق ارادې په استناد ده په هغه کې د انسان آزادي او اختیـار نقـش نلري. په ټولو حالاتو کې خدای، مطلـق قادر او مطلق عالـم، د خپلـې پیـاوړې ارادې له مخې د نړۍ ټولو پیښـو ته له هغی ټولکې د انسـان افعالـو او اعمالـو ته تحقق ورکـوي د آزادي او اختیار لپاره ځـای نه پرېږدي اوهغـه څه چې حکم چلوي هماغه د خدای اراده ده. آیا دا هماغه د اشـاعرهؤ نظریـه د جبـر او د علیت د اصل نفې کول نـدي؟ جبر څخه همدغه درک دی چې مارکسیسـتي فلسـفه یې په غوڅه توګه ردوي. ځکه جبر د قضا او قدر او مشیت الهي په مفهوم کې نه یواځې د انسان علمي معرفت او خارجي واقعیت سـره سمون نلري بلکې انسان تسـلیم کېدو او رضایت ته اړباسي. د خوږ ژبي شاعر په خبره:

رضا بداده بده و زجبین گره گشای
که بر من و تو در اختیار نگشاده است
یا د یو عرفاني شاعر په وینا:
هر حکم که او خواست براند به سر ما
ما را اگر از آن حکم رضا هست و رضا نیست

دا چې کله کله د ادب او فلسـفې لویانو «جبر» مطلق ګرځولی او کله اختیار دلیل یې دادی چې هغوی هم بې وسـي شـویتر څو د «جبر» او اختیار تر منځ تضاد په صحیح توګه حل کړي.

اسلامي ریالیزم له یوې خوا غواړي ځان علمي اصولو او قوانینو سره تطبیق کړي خو علمي اصول او قوانین په ټولو حالاتو کې د هغوی په وړاندې دریږي

او هغوی له ځان څخه شـړي. په تیـر بحث کې مو ولیدل چې هغوی څه ډول د علیت اصل په لاسـونو وړاندې کوي او په پښـو یې شاته وهي او له بلې خوا د اشـاعره ؤ جبـر نه مني ځکه چې د مکافاتو او مجازاتـو پایله له همدې ځایه مرتـب کیږي خو خپـل مطالب د الفاظو او تعبیرونو په قالب کې ځای پر ځای کوي چې له هغوی څخه پرته له قدر او مشیت الهی څخه بله نتیجه نه تر لاسه کیږي له ناچاری د اشاعره ؤ په څنګ کې دریږي.

اختیار او مسـئولیت او په دې اړوند د انسانانو مجازات او مکافات غواړې که نه غواړې قضا او قدر او مشـیت الهی سـره په تضاد کې لویږي، د مجازاتو او مکافاتو اصل ایجابوي چې انسان د خپلو افعالو او اعمالو سرته رسولو کې د اختیار خاوند دی چې کولای شي آزادانه تصمیم ونیسي او عمل وکړي یواځې په دغه ډول حالت کې کېدای شي انسان د خپلو نیکو اعمالو په خاطر مکافات او د ناوړه اعمالو په خاطر مجازات شـي او یا د پروردګار اراده د ټولو حوادثو له هغې ټولګې د انسـان د افعالو او اعمالو علت العلل دی چې په دې صورت کـې مکافات او مجازات څرګند ځای نلري. د دې تضاد د حل لپاره اسـلامي ریالیزم خپله موضع او نظریات د «آمرینو تر منځ د امر» تر عنوان لاندې بیانوي «اصول فلسفه و روش ریالیزم» هغه په دې ډول توضیح کوي:

«نه داسـې ده چې د انسـان افعال یواځې د باري ذات ارادې پورې مسـتند دی او انسان د هغه له اغیزې څخه ګوښه دی او نه داسې ده چې یواځې انسان پورې مسـتند دی او د فعل په اړه له باري ذات څخه جلا پرې شـوی، بلکې د امرینو تر منځ امر دی، په عین وخت کې چې فعل خپله انسان پورې مستند دی باري ذات پورې هم مستند دی منتها یوبل سره په طول کې (نه په عرض کې د شریک په توګه)» (۳ټوک،۱۷۴مخ)

له دې عبارت څخه داسې تر لاسه کېږي چې د انسان په هر فعل کې هم د انسـان خپله اراده شـامله ده او هم د باري ذات اراده او د دې لپاره چې انسـان څخه یو ځانګړی فعل سـرته ورسیږي بنایی دواړه ارادې دغه فعل اراده کړي. خو له هغه ځایه چې د خدای اراده د انسـان ارادې سـره په عرض کې نده هغه سره په طول کې ده او باري ذات «د انسان فعل د انسان د ارادې له لارې اراده کوي» له ناچاره دا د خدای اراده ده چې د فعل سـرته رسـولو سـره تعلق لري او د انسـان اراده پرته له تسلیمیدو څخه بله چاره نلري، په دې اساس د انسان لپـاره د آزادي او اختیـار ځای نه پاتې کېږي. دغه نظریه په هغه بڼه چې «اصول فلسـفه و روش ریالیزم» یې بیانوي هماغه د اشـاعره ؤ نظریه ده چې په نورو کلماتو بیان شوی ده.

د «اصول فلسـفه و روش ریالیزم» دریم ټوک نږدې څلویښـت کاله مخکې لیکل شوی ده. نورو چې په وروستیو کلونو کې «د امرینو تر منځ امر» د نظریی په هکله تشریحات کړیدي هغه یې په بله بڼه وړاندې کړي.

«اسـتاد» سبحاني په خپلو فلسفي درسونو کې د اشاعرې د تفسیر تر نیوکې وروسـته چې د دې تفسـیر له مخې «ټول حوادث او پدېدې له هغې ټولګې د انسـان خپل افعال په مسـتقیم ډول په خپله د خدای معلول دي او هغه د ټولو کائناتو مباشـر فاعل شـمیرل کېږي»، بل تفسیر وړاندې کوي چې دا «د امرینو تر منځ امر» د نظریی بل بیان دی:

«د هسـتي په پراخه لمن کې له یومسـتقل علت څخه پرته بل علت نلرواو دنوروعلتونـو او اسـبابونو د اغیـزې علیـت دهغه پـه فرمان او اجازې سـرته رسـیږي...هیڅ اغیزنـاک علـت په وجود او هسـتي کې په فعـل او اغیزه کې اسـتقلال نلـري او د خـدای له پراخه قـدرت څخه بې نیازه نـدي»(د کیهان

ورځپاڼه، ۶۱کال، ۲۲ درس)

د انسان د اختيار په هکله هم د هغه توضيح په دې ډول ده: «د انسان هستي د خدای له جانبه ده د هر کار د سرته رسولو وس او واک هم د خدای له جانبه ده. خو دغه انسان مختار او آزاد دی چې کولی شي دغه قدرت په هر ځای کې چې وغواړي په کار واچوي او خپل کار په هر ډول رنګ آميزي کړي، د خدای په ورکړي وس او واک سـره د يو يتيم له ښـپې اغزی وباسـي او يا د هغه په سترکو کې اغزی ورومنډي»(هماغه ځای)

«اسـتاد» له يوې خوا وايی «انسـان مختار او آزاد دی» چې د خدای ورکړي ځواک او پياوړتيا له مخي اراده وکړي او کار سـرته ورسـوي، خو له بلې خوا پـه دې بـاور دی چې «هيڅ اغيزنـاک د يو کار په اغيزه کې له ځانه اسـتقلال نلـري» او اغيزه يې د خدای اجازې پورې تړلې ده. په ياد يې لرم چې آيت الله دسـت غيب همد همدې نظر پيروي کوي. د دې تفسير په اساس، انسان د يو اغيزنـاک او يو علت په توګه، هـم مختار او آزاد دی او هم د يو کار په اغيزې کې اسـتقلال څخه بې برخې دی. څرنګه کولی شو تصور وکړو چې مختار او آزاد انسـان د اسـتقلال څخه برخه ور نه وي؟ اختيار او استقلال دواړه د يوې مقولې له جنس څخه دي. ځوک چې اسـتقلال څخه برخه ور ندی اختيار هم نلري. نشـي کېدای چې اسـتقلال ونلري او اختيار څخـه برخه ور وي. په دې توګه که چېرې انسان «په کار او اغيزې کې له ځانه استقلال ونلري» دغه انسان اختيـار هم نلري. سـربېره پر دې د اختيار خاوند د بـل چا فرمان او اجازې ته اړتيا نلري او کله چې انسـان د يو فعل سـرته رسـولو لپاره د بل چا فرمان او اجازې ته اړتيا ولري نور نو د اختيار کلمه بې محتوا او تشـه ده. خدای انسـان ته هستي وربخښلې او ځواک يې ورکړی د بيلکې په توګه د يتيم له پښی اغزی

باسي خو په دې کار کې د خدای فرمان او اجازې ته اړتيا ده. آيا کولی شو ووايو چې انسان په دې کار کې اختيار لري؟

په دې تفسير کې هم د انسان اعمال او افعال په آخرين تحليل کې د خدای په فرمان او اجازې سرته رسيږي او بيا ستونزه مخې ته راځي چې انسان په خپل عمل کې مسئول ندی، مسئول ځکه ندی چې استقلال نلري، ځکه چې د خدای له فرمان او اجازې پرته د هغه څخه عمل نه تر سره کيږي او نه تر سره کېدای شي. په دې ډول دغه «امر د امرينو ترمنځ» دتفسير توپير له هغه ځايه چې تر مخه راغلي په دې کې پروت دی چې په يو کې خدای د انسان فعل د انسان د ارادې له لارې اراده کوي او په بل کې انسان د ارادې خاوند دی کولی شي اراده وکړي منتها د هغه د فعل صدور د الهي فرمان او اجازې پوري تړلی دی او شريکه وجه يې داده چې دواړه د انسان اختيار مني ليکن په خپلو بيانونو او توضيحاتو کې يې نفې کوي.

استاد محمد تقي جعفري د «جبر او اختيار» تر عنوان لاندې خپلې رسالې کې اختيار ته زيات درنښت ورکوي. د استاد د آند له مخې د خدای اراده په دوه ډوله ده، تکويني اراده په دې مانا چې خدای د هستي نړۍ پيداکړی او په هغه کې يې په ميلياردونو عوامل په لاره اچولي او تشريعي اراده په دې مانا چې هغه د انسانانو د تلپاتې نېکمرغۍ لپاره پيغمبران استولي او لار ښوونې ورکړي. او په عين حال کې يې انسان هم مختار ګرځولی چې د هستي نړۍ د اسبابونو او عواملو څخه په ګټې اخيستو او له دغه لارښوونو څخه په پيروي خپل ځان ابدي سعادت ته ورسوي. اوس که څوک دغه لارښووني په پام کې ونه نيسي او پـه غلطې لار روانيږي، د خدای د لارښوونو برخلاف عمل کوي ګنهکار دی او د جزاء وړ ګرځي. په دې ډول انسان په خپله د خپلو اعمالو او افعالو

مسئول دی او خدای په هغې کې مداخله نلري. دغه نظريه پرته له شک څخه که د معتزله ؤ تفسير نه وي لږ تر لږه هغوی ته نږدې ده ځکه د معتزله ؤ نظريه د استاد پر بنا دا ده چې «کار يا په خپله د انسان له خوا يا د هغه د قدرت له اغيزې صادريږي او د خدايي قدرت د انسان په کار کې دخالت نلري»(«جبر او اختيار»، ۲۱۱مخ) استاد د «امر د امرينو تر منځ» د توضيح لپاره د آيت الله خويي مثال د شاهد په توګه راوړي او هغه غوره تشبيه ګڼي کوم چې په دې هکله ليدل شويدي.

«فرض کړو يو انسان په فلج اخته دی چې د حرکت کولو وس نلري. موږ کولی شو د بريښنا د لين په تړلو سره هغه په حرکت راولو. د دغه حرکت په وخت کې د بريښنا سوچ زموږ په لاس کې ده پداسې حال کې چې هره ګړۍ کولای شو د دغه کس له حرکت څخه مخنيوی وکړو. اوس که دغه کس حرکت وکړي او کارونه ترسره کړي دغه کارونه ښه دي او که بد د هغه په اختيار سرته رسيږي. هغه څه چې دې کار څخه موږ ته مستند دی هغه ځواک او قدرت دی چې موږ د بريښنا په واسطه هغه کې ايښودی دی... له دې ځواک څخه د ګټې اخيستلو طريقه چې موږ هغه ته ورکړی دهغه اختيار پورې اړه لري او موږ پورې تعلق نلري. همدا ډول موږ څخه صادر شوي کارونه د خدای له ځواک څخه دي... خو له دې ځواک څخه ګټه پورته کول په بشپړه توګه زموږ په اختيار کې دی» (هماغه ځای، ۲۱۴ — ۲۱۵مخ)

دغه مثال د معتزله ؤ تاييدول دي ځکه چې په هغه کې د «جبر» نښې نه وينې برعکس ټول تفويض او بل ته د کار سپارل دي. مګر تفويض پرته له دې بل څه ندی، چې انسان يې د نړۍ له موجوداتو د يو موجود په توګه وروسته له پيدايښت او تکوين ځينې په خپل سر پريښودلی او افعال يې په بشپړه

توکه د خدای له رســالت او ارادې څخه آزاد دي.»(«اسلامي ریالیزم»، ۳ټوک، ۱۶۹مخ)

په دې مثال کې انســان د حرکت وس یوائې خدای څخه ترلاســه کوي او بس، او په دې افعالو کې مطلقاً د خدای له ارادې څخه هیڅ خبر نشته. بنایی دغه امر ته په پاملرنې ســره چې اســتاد په دې چوکاټ کې نه تم کېږي او د دې رســالی «جبر او اختیار» په بل ځای کې دغه نظر وړاندې کوي چې «انســان د فقر او احتیاج له مخې چې لري یی نشي کولی د هغه (خدای) د مشیت خلاف چلنــد وکړي»(۲۱۶مخ)، مګر د خدای مشــیت د خدای له غوښــتې او ارادې څخه بل شــی دی؟ که چېرې انســان نشي کولی د خدای د ارادې خلاف عمل وکړي نور نو د اختیار لپاره څه ځای پاتې کېږي. خدای انســان د ښــه کار او بد کار تر منځ مختار ګرځوي خو منل شــوې دا ده چې د هغه اراده په نیکو کارو کې ده او بیا هم «که انســان نشــي کولی د خدای د مشیت خلاف چلند وکړي» د هغه (انســان) اراده نشــي کولی له نیکو کارو پرته بل شــي سره تړاو ولري په دې اســاس بیا هم اختیار نلري. سربیره پر دې بیا هم انسان زیاتره د پروردګار د ارادې خــلاف عمــل کوي، په بــدو او بدرنګه اعمالو لاس پــورې کوي او دا خپله په ډاګه کوي چې کېدای شــي د خدای د ارادې خلاف چلند ترســره شــي او «فقــر واحتیاج» انســان لــه بدو کارو نه منع کوي. بې ګټــې نده چې د ډاکټر شــریعتي نظر پــه دې هکله راوړو. هغه په دې باور دی چــې یو مالیار یا دبوټو پیژندونکې(ګیاه شناس):

«مجبور دی د خپلو ونو د اصلاح او د ګلانو د روزنې لپاره د بوټو پیژندنی قوانینو ته پشــپړه پاملرنه وکړي خو اختیار لري هر ډول چې وغواړي خپل بڼ ســینګارولی شــي او هر بوټی چې وغواړي په هغه ځای کې کرلی شي.... وینو

چــې مالیــار یا د بوټو پیژندونکې دغه اختیار لري خــو په عین حال کې مجبور دی د بوټو شــته قوانینو ته غاړه کېږدي په دې توګه له یوې خوا انســان په ټولنه کــې مختــار دی او له بلې خواد ټولنې قوانینو ته په غاړه ایښــودلو مجبور دی» («فلســفهء انســان»، ۳ دفتر، ۸۱مخ) اختیار چې ګویا یواځې د انســان ارادې پــورې تــړاو لري په دې ځــای کې نه تر ســترګو کېږي. ځکه که چېــرې د ګیاه شناسي قوانین د انسان په ارادې حکم چلوي او انسان د هغوی په اطاعت کولو مجبور دی، نور نو اختیار څه مانا لري. مالیار یا ګیاه شــناس نشــي کولی «هر بوټی چې وغواړي په هغه ځای کې وکري» ځکه هر بوټی د خپل ژوند او رشد لپاره مساعدې ځمکې او آب وهوا ته اړتیا لري. هغه بڼ چې په ساړو سیمو کې موقعیت لري نشــو کولی هلته د حاره او تودو سیمو بوټي وروزو، په مازندران کې د خرما ونی کرلی نشو، شونې نده چې د وچ اقلیم کاکتوس په ساړو سیمو کــې زرغــون کړو. له دې کبله هــر بوټي ته چې مالیــار اراده وکړي په خپل بڼ کې کرلی نشــي. د انســان اراده هم نشــي کولی د اصل علیت له کرښو حدودو څخه تیر شــي او په خپل ســر هر څه چې وغواړي ســرته ورســوي. تیر له دې خبرې په مجموع کې د ډاکټر شریعتي نظر د آزادي په هکله هماغه د ماتریالیزم مارکسیست لید لوری دی. مالیار د بڼ د خاورې، آب و هوا او اقلیم په پیژندلو سره کولی شي د کرهنې لپاره بوټي وټاکي او هر څومره چې د دغه دوه عواملو (خاوره او هوا) په هکله حتی د کرنیزو بوټو د طبیعت په هکله معلومات پراخ او ژور وي د بوټــو پــه غوراوي کې د هغه انتخاب آزاد او د پوهاوې جوګه دی. دا هغه ضرورت او د طبیعت قوانین دي چې ځان د انســان په اراده تحمیلوي یعنــې دا هغــه عاملونــه دی چې له دوی پرته نــور څه کېدای نشــي که مو دغه ضرورتونه وپیژندل د بڼ روزنې په کار کې به آزادي او اختیار څخه برخمن یو.

البته مالیار کولی شــي د ونو او بوټوپه غوراوي کې کوم چې د هغه په بڼ کې د رشد او زرغونیدو امکان لري انتخاب کړي. د بیلګې په توګه کولی شي تصمیم ونیسي په بڼ کې میوه لرونکې ونې وکري یا ښایسته ګلان د میوه لرونکو ونو د انتخاب په صورت کې هغه یا دغه میوه انتخاب کړي، که په بڼ کې ګلان کري هغه یا دغه ګل څخه کار واخلي. ښکاره ده چې د مالیار دغه انتخاب هم نشي کېــدای بــې علته وي، په ټولیزه توګه په هیڅ برخه کې ویلی نشــو چې اختیار د اصــل علیت له دایرې څخه بهر دی. مهــم ټکي دا دی چې دغه مثال په مطلق ډول «امر د امرینو ترمنځ» ســره اړخ نه لګوي ځکه چې په هغه کې نه له «جبر» یعنې د خدای ارادې څخه چې د نړۍ ټولې پیښې له هغه ټولګې د انسان اعمال او افعال د هغه په فرمان کې دي خبر شــته او نه له تفویض څخه چې انســان ته بشپړ اختیار ورکوي او د خدای ارادې ته ارزښت نه ورکوي. هغه څه چې پورته وویل شول په ډاګه معلومیږي چې د اسلامي ریالیزم ټول لوړ پوړي مشران «امر د امرینو تر منځ» مني خو په تفسیر کې یوبل سره د نظر اختلاف لري که چېرې دغه تفســیرونه وســپړو په ډاګه کوي چې یو یې د اشــاعره ؤ د «جبر» نظرې ته رسیږي، بل یې د معتزله تفویض ته او دریم یې له علمي نظره توضیح کوي.

هغه ډول چې په ادیانو او الهي فلسفه کې د «جبر او اختیار» په هکله خبري کیــږي یــو بل ســره اړخ نه لګوي، یا د خــدای اراده د نړۍ په ټولــو اموراتو او حوادثــو کــې لاس لري لــه هغې ټولګې د انســان افعال او اعمــال هم، په دې صورت کې باید د اختیار فاتحه ولوســتل شــي او یا انســان په خپلو افعالو او اعمالــو کــې د خپل اختیار خاوند دی نو په دې صــورت کې د خدای د ارادې هیــڅ اثر وجود نه لري. «امــر د امرینو تر منځ» موضع نیول تضاد نه حل کوي او جوړجاړی هم منځ ته نه راوړي، د هغه مفســرین یا د «جبر» په موضع کې

لویږي او یا د تفویض په موضع کې. یواځې مارکسیستي فلسفه وسمنه ده چې دغه ستر «معضل» حل کړي.

## اړتیا او آزادي

له تیرو یاد شـوو مطالبو څخه ښکاره بریښـي چې اختیار، یوه فردي آزادي ده، د انسـاني افـرادو تر منځ یوبل څخه جلا جـلا آزادي، آزادي یواځې د دې لپاره چې له ناوړو کارو پرهیز وکړي په ښایسـته او نیکو اعمالو او افعالو لاس پورې کړي تر څو اوخروي نعمتونو څخه برخه ور شـي! هغه سـتر هدف چې انسـان یـې د اختیار له مخې پـه لټه کې دی خدای ته نږدېوالـی دی. اختیار او فـردي آزادي د اخلاقیاتـو او معنویاتو په دایره کـې ده، د وچ او متحجر «باید او نه باید» سپارښـتنه ده، چې پرته له زماني او مکاني شـرایطو، پرته د ټولنې له تکامـل څخـه وړاندې کېږي. چې دا په خپله پرتـه د آزادي نفې کولو څخه نور څه ندي. ارسـطو که څه هم آزادي ته له پوهې او دانایی سـره تړاؤ ورکاوه خو ټینګار یې په اختیار وو. د ارسطو دغه سبک تر منځنیو پیړیو ورسید او کلیسا هغـه د مذهـب لپاره په کار کړه، «جبر» او اختیار یونان څخه اسـلام ته رانکل شـو اوس هـم هماغه ډول په اسـلامي ریالیـزم کې مطرح کېـږي. د «جبر» او اختیار مسئله لرغونې نړۍ پورې تړاو لري چې د هغې کرغیړن او وروست بوی انقلابي فلسـفی ته ازار ورکوي. د «جبر» او اختیار مسـئله پداسې ډول مطرح کېږي چې وایی به نړۍ له حرکت، فلسفه او علم له پرمختک څخه پاتې شوي. خو له دې پرته د اسـلامي ریالیزم لپاره بله چاره نشـته ترڅو «جبر» او اختیار پورې ونښلي، آزادي د اختیار په محبس کې بندي وساتي ځکه هغه مفهوم چې مارکسیست ماتریالیزم یې آزادي ته ورکوي د هغوی د مرګ په مانا ده. اسلامي ریالیزم په کوم ډول چې علم سره دښمني کوي په هیڅ برخه کې آزادي سره هم

سر نه لګوي. مګر د ايران اسلامي حکومت د دغې خبرې ښکاره بېلګه نده؟

د پـام وړ خبـره دا ده چې اســتاد محمــد تقي جعفري په خپلې درې ســوه (۳۰۰)مخيزه رســاله کــې د «جبر او اختيار» په هکلــه د ليکنې په يوې څنډې کې ارســطو ته تللی آزادي يې پوهې او دانايی ســره تړلې ده البته په اســلامي ســبک يې بيان کړی: «لوی خدای د هستي په پراخې دستګاه کې په ميلياردونو لاملونــه او پدېــدې په لار اچولي. دغه عوامل او پدېدې ځينې وخت د انســان لپاره ښکاره او ځينې وخت تر محاسبې لاندې نه راځي». دغه واقعيت «انسان اړ باســي چــې د خپلو معلوماتو د زياتولو لپاره کوښــښ وکــړي تر څو وکولی شــي هغه تر محاســبې لاندې راولي تر څو په خپل ژوند کې ډېرو برياوو ســره مخامخ شي او هر څومره چې بی وسې او عاجز دي په هماغه کچه مجبور دی او کوچنی مسئوليت به ونلري» (۲۵۵مخ)

دا په خپله د حقيقت او د مارکسيســت فلســفې د درک لپاره يو ګام دی که څه هم کوچنی دی ځکه چې ټول حقايق په مارکســيزم پای ته رسيږي. انسان په طبيعت کې د ړندو ځواکونو لاسلوبه دی، داسې ځواک چې هغه يې په خپل اســارت کې ســاتلی او کله ناکله کم چېنه په لاس په هغه وردانګي او بې وســه کــوي يــی او له منځه يې وړي، تندر له آســمان څخه رالويږي، هغه او دهغه د کار حاصل او کړاونه ټول په اور سوزوي، زلزله پيښيږي، هغه ته ويجاړ تيا او مرګ راوړي، ســيلاب راځي، د هغه ټول شــيان له ځان سره وړي، د ځمکې د جاذبې قوه هغه اړباسي چې د ځمکې په مخ باقي پاتې شي، ډول ډول ناروغي هغه کمزوری کوي او ناروغ کوي يی چې پايله يې مړينه ده، کسوف او خسوف پيښيږي، هغه په ويره او وحشت کې اچوي او داسې نور.

ښــايی وضع په ټولنه کې تر دې ښــه ده؟ خو نه داســې نده. په دې ځای کې

هم وضع زړه پورې غوښــتنه نده؛ غــلام د بادار تر کمچينې لاندې مجبور دی تر وس پورته کارونه ســرته ورســوي او تر همدې کمچينې لاندې ســا ورکوي، بزګر سرف د فيودال تر واکمنۍ لاندې لاس او پښې وهي او ارباب چې هرڅه وغواړي په هغه يې ســرته رســوي، «آزاد» کارګــر آزاد دی د خپل کار نيرو هر څــوک يې چې له واقعي قيمت څخه ارزانه اخلي وپلوري او زبيښــاک ته غاړه کيــږدي تــر څو په خپله او کورنۍ يې له لوږې تلف نشــي. په ټولنه کې لږګکي بډآيان د توليد وسائل په واک کې لري او د زيات مال او پرتمين ژوند د لاسته راوړلو لپاره د ګڼ شمير زيارکښانو ژوند تباه کوي.

کارګران دنګې او ښکلې ماڼۍ جوړوي خو خپله په تيارو او زيمناکو څمڅو کې ژوند تيروي، ټول شيان د زيارکښې پرګڼې په خپلو پياوړو لاسونو توليديږي خــو هغه نعمتونه چې دوی يې توليدوي ترينه بې برخې او محروم دي. تصور ونشــي چــې دغه ړونــد ځواک يواځــې د اکثريت زيارکښــانو ګريوان نيســي. بورژوازي هم کله چې منځ ته راغله رشــد يې وکړاو پراخه شــوه هيڅکله يې نه غوښــتل چې په خپل لاس ځانته قبرايستونکي وروزي چې قبر ورله وکينې، پانګــه لرونکي هيڅکله نه غواړي چې سياســي او اقتصــادي بحرانونه په ټولنه کې سراســري شياو هغه ماتې او ورکاوي ســره مخامخ کړي، فيودال هيڅکله نه غوښــتل چې بورژوازي پــه ټولنه کې راوټوکيــږي او دوی د قدرت له پوړۍ راکښــته کړي او کليسا هم هيڅکله په داوطلبانه توګه د منځنيو پيړيو قدرت له لاسه نه ورکاوه... په دې ډول اوس هم په ټولنه کې داسې ځواکونه لاس په کار د ي چې د انســانانو د غوښــتنې او ارادې په خلاف عمل کوي او انسان د هغې په وړاندې بی وسې دی. ښکاره ده چې انسان د ټولنې او طبيعت د ړانده ځواک پــه وړانــدې آزادي څخــه برخمن نــدی او د هغه په منګولو کې لاس او پښــې

وهي، خو د دغه ځواکونو واکمنۍ تر هغه وخت پاينښت لري تر څو انسان هغه پېژندلــی نه وي، د هغه ماهيــت او د عمل څرنګوالي ونه پېژني. د دغه ځواک پېژندل او هغه څخه دانسان د موخو لپاره ګټه تر لاسه کول، انسان د هغه له قيد څخه خلاصوي. د انســاني ټولنې د تکامل تاريخ د دغې تدريجي آزادي شاهد دی او د مارکسيســت فلسفې دغه حکم چې «آزادي د ضرورت په شناخت کې نغښــتې ده»، دغه ژور اومانا لرونکې حکم، آزادي د ضرورت په شــناخت کې نغښــتې ده. حقيقت او واقعيت سره په بشــپړه توګه سمون لري. ضرورت څه شی دی؟.ضرورت همدغه ړوند او لاشعوره ځواک دی چې اغيزه يې د قوانينو پــه بڼه تجلي کوي، د انســان له غوښــتنې او ارادې مســتقل قوانين دي چې په ټولنې او طبيعت حکم چلوي. ضرورت هغه پدېده يا پيښه ده چې بايد منځ ته راشي او حتماً واقع کېدونکې ده. د انسان طبيعي مرګ يو ضرورت دی، د شپې او ورځې يا د ژمي او دوبي يوبل پســې راتګ ضرورت دی، اجســام چې هوا ته ارتاول کېږي ســقوط يې ضرورت دی، په ځانګړو شــرايطو کې د ناژوندې مادې بدلون په ژوندۍ مادې چې ډېر وړاندې يې د ځمکې په مخ شتون درلود ضرورت دی، کسوف او خسوف ضرورت دی او داسې نور.

آزادي څه شــی دی؟ آزادي د انســان اړيکه ړندو ضرورتونو ســره د طبيعت او ټولنــې قانونمنــدي بيانوي او په عين حال کې د دغو ضرورتونو د شــناخت د درجــې او پــه دغــه ضرورتونــو د انســان د واکمني ښــکارندوی دی. په دې اســاس مارکسيســت ماترياليزم آزادي په فردي اختيار او هغه هم د اخلاقياتو او معنوياتــو په دايره کې چې غالباً انتزاعي اړخ لري نه محدودوي بلکې د هغه لمن نوره هم پراخوي.

انسان تر هغه وخت پورې د ړندو ځواکونو، د طبيعت او ټولنې د قانونمندي

په وړاندې سترې ستومانه او بې وسې دی تر هغه مقهور او اسير دی تر څو يې هغه پيژندلي نوي. کله چې ضرورتونه وپيژندل شول، کله چې انسان د شناخت قوانين تر لاسه کړل بيا همدغه انسان دی چې په ضرورتونو واک پيدا کوي، ځان دهغه له قيد څخه خلاصوي او هغه د خپلو موخو لپاره په کار اچوي. په دې ډول انسان له قيد څخه بهر وځي او ضرورت په آزادۍ بدليږي پرته له دې چې له منځه ولاړ شي او لرې (زائل) شي.

آزادي هيڅکله په ټولنې او طبيعت کې د عيني قوانينو تر شناخت پرته نه تر لاسه کيږي. آزادي د همدې قوانينو په پيژندنې او په هغه امکاناتو کې چې د همدې پيژندنې له مخې تر لاسه کيږي نغښتې ده. په صنعتي توليداتو د ماشيني تکنيک تکامل، د اوبو او اتمي بريښنا د تاسيساتو جوړول، اتمي انرژي څخه ګټه اخيستل، په فضا کې سفر کول، د زياترو وژونکو ناروغيو له منځه وړل، د ټولنې د تکامل لپاره دعيني قوانينو پيژندنې څخه د انسانانو ګټه اخيستل، دغه ټول په ګوته کوي چې انسانان څرنګه د شناخت له مخې ړانده ضرورتونه او عيني قوانين په نښه کوي او کولی شي ځان د طبيعت او ټولنې له سلطې او واکمنې څخه آزاد کړی او په خپله په طبيعت او ټولنې حاکميت وکړي. دا ټول د دې څرګندويی کوي چې آزادي د ضرورتونو د پيژندنې په ګرو کې ده، هغه ډول چې اسلامي رياليزم آزادي راپيژني جاودان تلپاتې او هميشه ناک نعمت ندی چې په يو وار د تل لپاره انسان ته ډالۍ شوی دی. دا د ټولنې تکامل دی چې په خپل بهير کې يې انسان د طبيعت او ټولنې قهر څخه آزاد کړی او په راتلونکې کې به هم د آزادي لمن په ټولو خواؤ خوروي. حتی لومړني انسان چې کله يې وکولای شول ځان له حيواناتو څخه جلا کړي په هماغه کچه د طبيعت مقهور وه لکه نور حيوانات. خو کله يې چې هر ګام د طبيعت د

شناخت په لور اخیست په هماغه کچه یې ځان د طبیعت له قهر څخه ژغوره. آیا روښـانه نده چېآزادي یوه پروسـه ده یو بهیر او روند دی او په دې اسـاس یوه تاریخي مقوله ده؟ د شناخت تکامل پرله پسې آزادي ته ارتوالی او پراختیا ورکـوي. هره ورځ له زیات څخه زیات په ژوره توګه انسـان د ړندو ځواکونو له سـلطې او واکمنۍ څخه خلاصوي او په طبیعت او ټولنې د هغه (انسـان) د حاکمیـت لمنې ته پراختیا په برخه کـوي دضرورت نړۍ په آزادي نړۍ بدلول یوازې هغه وخت منځ ته راځي چې انسـانان د طبیعت او ټولنې عیني قوانین وپیژني او تربنه ګټه واخلي.

د اختیار مسئله دیو ځانګړي مارکسیستي مفهوم له مخې د آزادي تر څنګ ځای لري. مارکسیسـتي فلسفه د اسلامي ریالیزم برخلاف هیڅکله یوه پدېده، حتی د انسان د شعور په ګډون د نړیوال (نړۍشمول) جبر څخه نه جلا کوي. هرشـی، پدېـده، د مـادي نړۍ بهیر (روند) له هغې ټولګې د انسـان شـعور د ضرورت او جبر له اغېزې بچ ندي. د انسان اراده هم د شعور د پدېدې په توګه د ضرورت او جبر تر سلطې لاندې ځای لري. د دغې توضیح په بنسټ اختیار د یوې مسئولې په هکله پرته له آګاهانه تصمیم نیولو بل څه ندی.هرڅومرهچې د انسـان د شناخت لمن د یوې مسولې په هکله دقیقه، ژوره او هر اړخیزه وي په هماغه کچه انسـان آزاد تصمیم نیسـي او عمل کوي او په دې ډول حالاتو کې عمل یې غوښـتنې سره سـمون لري. په ټاکنو کې هر ډول شک او تردید، متفـاوت او متضـاد تصمیم نیول د امکاناتو د نه پیژندنې او یا ناکافي پیژندنې نښه ده او په عین حال کې د آزادي او اختیار د نشتوالي نښه هم ده.

آزادي پـه طبیعت او ټولنې کې ضرورت او عیني قانونمندي سـره د انسـان اړیکه ده، داسې اړیکه چې د دغو دواړو مقولو تر منځ ډیالکتیکي اړیکې په ګوته

کوي، آزادي د ضرورت او قانونمندي په پيژندنې کې او له دغې پيژندنې څخه په ټولنيز پراتيک کې په ګټې اخيستنې کېويني. ضرورت له آزادي او آزادي له ضرورت څخه جلا ندي او هيڅکله يو بل څخه مستقل وجود نلري او له دغه دواړو څخه کوم يو چې عمده دی هغه ضرورت دی چې د ټولنې د تکامل په جريان کې پرله پسې په آزادي بدليږي.

په پای کې که چېرې د آزادي او انسان تر منځ اړيکه د بحث وړ دی په دې اساس آزادي يوه ټولنيزه او اجتماعي مقوله ده او يوائې په ټولنه کې مصداق پيدا کوي. له ټولنې څخه طبيعت ته د آزادي د مفهوم راڅکول چې په هغه کې ړوند جبر فرمان چلوي ناسم او نا صحيح دی.

## اړتيا او اتفاق

په ټولنې او طبيعت کې د عيني ضرورت منل د مادي فلسفې يو خاصيت دی. وايو عيني ضرورت يعنې هغه ضرورت چې له ذهن څخه بهر او مستقل په طبيعت او ټولنه فرمان چلوي. په تفکر کې د ضرورت مقوله، په واقعيت کې په نسبي ډول د انسان په ذهن کې دعيني ضرورت صحيح انعکاس دی. ضرورت لکه د عليت او قانونمندي په شان د عيني اړيکو په شمير کې راځي چې شيان او پدېدې او د طبيعت او ټولنې بهير يو بل سره نښلوي. مارکسيستي فلسفه نشي کولی په دې سترګې پټې کړي او له څنګ څخه يې تير شي. دا حقيقت د هغه کسانو له نظره چې مارکسيست فلسفې سره اشنايی لري پټ ندی. سره له دې بيا هم ځنی کسان پيدا کيږي پرته له دې چي په مارکسيزم پوه شي په مارکسيزم «نيوکه» کوي، «اصول فلسفه و روش رياليزم» په دې باور دی چې:

«د ډيالکټيک د منطق پلويانو ضرورت مبحث په منطق کې زائد بولي د

ضرورت په اړه باور درلودل د ذهن د پخوالي مظاهر او په اصطلاح «استاتیک» شمیري.»(۳ ټوک،۹۶ مخ)

آیا دغه نظر د مارکسیست فلسفې سره د نا اشنایی له مخې حساب کړو یا د غرض او مرض په حساب، چې غواړي له هرې ممکنه لارې د مارکسیزم د بې اعتباره کولو لپاره مرسته تر لاسه کړي. یا له دواړو لارو؟ د حیرانتیا خبره خو دا ده چې په مخامخ پاڼه کې د پورتني مطلب په مقابل کې، چې د ضرورت په هکله مختلفو عقایدو څخه بحث کوي لیکي:

«د نوي مادیینود خبرو په اساس د موجوداتو نظام ضروري او لازمي دی ځکه چې د علیت قانون عمومي او جبري علی او معلولي قانون معتبر دی»(هماغه ځای،۹۸ـ ۹۷مخ)

که مارکسیست ماتریالیزم (نوي مادیون) د موجوداتو نظام ضروري شمیري څرنګه کولی شي د ضرورت د مقولې په اړه سکوت او چوپتیا غوره کړي او واضح نکړي چې ضروري او ضرورت څه شی دي. مارکسیزم هیڅکله هغه مفاهیم او مقولات چې کاروي یې پرته له تعریفاو توضیح څخه نه پریږدي. اسلامي ریالیزم یو ځانګړی مبحث د ضرورت په هکله پرانیزي خو هیڅکله ضرورت نه مانا کوي، ځکه چې د دې مقولې تعریف څخه بې وسې ده. هغه په «اصول فلسفه» کې د ضرورت د مانا په توضیح کې داسې لیکي: «ضرورت او امکان د هغه مفاهیمو له ټولګې څخه دي چې تعریف او توضیح ته اړتیا نلري. که چیري یو مفهوم ګونګ او پټ (مبهم) وي یا لنډ او کوتا (مجمل) وي باید د توضیح لپاره تعریف شي که ګونګ او لنډ نه وي تعریف او توضیح ته اړتیا نلري»

څرنګه کیدای شي د ضرورت په شان یوه فلسفي مقوله تعریف ته اړتیا

ونلري؟ په منطق او فلسفې کې ډېر لږ مفاهیم ـ یا بهتره وویل شي هیڅ مفهوم که ګونګ هم نوي په ګوته کولی نشو چې خپل تعریف ونلري او داسې مفاهیم لکـه رنګ، میوه، فلز، حیوان، ګیاه، ژوندی، ژونـدون، مرګ، تکامل او... که داسې تعریف ونلري چې حد او برید ورله وټاکي، اساساً مفهوم او مانا نه پیدا کوي. خو «اصول فلسفه و روش ریالیزم» حتی د دغه منطق خیال هم نه ساتي او تاسـو ته وایی: «د دغه دوه مفاهیمو (امکان او ضرورت) د اسـتغنا لپاره د تعریف احتیاج نشـته. هر څوک چې خپـل ضمیر او وجدان ته مراجعه وکړي دغه دوه مفاهیمو څخه ډېر روښـانه او واضح تصور تر لاسـه کولی شـي» (۳ ټوک، ۷۹ او ۸۰ مخ)

څرنګه کېدای شـي په یو جدي بحث حتي په شـوخي کې هم، که مخاطب د بحث په جریان کې د هغې کلمې مقصد چې تاسو په کار وړې د مانا پوښتنه وکړي بیا تاسـې هغه ضمیر او وجدان ته لیږدوئ؟ که چېرې د هغه په وجدان او ضمیر کې د کلمې روښـانه مانا وجود ولري له تاسـو څخه د پوښـتنې لپاره نـه راپورتـه کېږي. د ضـرورت او همدارنګه د نورو «عامو فلسـفي مفاهیمو» (۸۰.مخ) د تعریف نشتوالی د دې موجب ګرځي چې د ضرورت او علیت، د ضرورت او قانون تر منځ توپیر په تیاروکې پټ پاتې شـي. د ضرورت فلسفي مقولات، قانونمندي او علیت ټول یو تکم ځینې دي له دې کبله نشـو کولی د هغوی په منځ کې د مساوي علامه کېږدو.

له یوې خوا د ضرورت اوعلیت په هکله باید ووایو چې علیت تر ضرورت ډېـر عـام دی دا په دې مانـا چې په مادي نړۍ کې هیڅ شـی پرته علیت څخه وجود نلري خو کېدای شـي حادثه پرته له دې چې د ضرورت په اسـاس وي منځ ته راشي. د انسان طبیعي مرګ، او د حادثې له مخې د انسان مړینه دواړه د

علیت اصل څخه پیروي کوي خو لمړنی حالت چې د انسـان د ژوند له جوهر او ماهیـت څخـه راټوکېږي یو ضرورت دی چې اجبـاراً منځ ته راځي او دویم حالت ضرورت ندی، تصادف او اتفاق دی یعنې کېدای شـي پیښـه وشـي یا ونشي. له بلې خوا هره علی اړیکه د علت او معلول تر منځ ضروري اړیکې دي خو هره ضروري اړیکه علی ندی. د شـپې او ورځې یوبل پسـې راتلل،د دوبي او ژمي یوبل پسې راتلل ضروري دي خو ددوی تر منځ علی اړیکه ځای نلري، په یو متساوی الساقین مثلث کې د دوه مساوي ضلعو او دوه مجاورو زاویو تر منـځ اړیکه ضروري ده خو علی اړیکه نده، د همدې مانا له مخې نشـو ویلای چې ضرورت تر علیت ډېر عام دی.

د ضرورت او قانون په هکله هم خبرهپه همدې ډول ده. هر قانون ضرورت دی خـو هـر ضرورت قانون ندی. قانون د شـیانو او پدېدو تـر منځ اړیکه ده. یوه ضروري اړیکه خو په عین حال کې عامه او ټینګه. له دې کبله عامه ده چې د ټول طبیعت لپاره رښـتینې ده لکه د جاذبـې عمومي قانون او د مادې د بقاء قانـون،او یا لږ تر لږه د شـیانو او پدېدو یوه ټولګـه چې په کې ځای لري لکه د بویل ـ ماریوت قانون د اوبلنو ګازونو لپاره. خو ضرورت په حتمي توګه عامه جنبه نلري کولی شـي منفردو او جلا پدېدو سـره تعلق ولري (د ځمکې په مخ له نا ژوندیو څخه د ژوندیو راوتل).

ضرورت لکه د علیت او قانونمندي په شان د مادي نړۍ د شیانو او پدېدو د بهیر تر منځ عیني اړیکه ده چې تر ځانګړو شرایطو لاندې د تل لپاره په یوې ځانګړې بڼه رامنځ ته کېږي نه په بله بڼه. د اوبو او بخار اړیکه په ټاکلو شرایطو او د حـرارت سـل (۱۰۰) درجو کې اړینه اړیکـه ده. په دې حالت کې اوبه په بخار بدلیږي او نشي کولی په بله بڼه تغیر وکړي. کله چې ډېره هوا ته ګوزار شي

بیرته ځمکې ته پرېوځي ځکه چې ځمکه د خپلې سترې کتلې پواسطه د ډېرې کوچنۍ کتله ځانته راکاږي او دغه سقوط داجسامو د سقوط قانون مطابق صورت نیسي. د ضرورت له مخې پانګوال نظام څخه سوسیالیستی نظام منځ ته راځي نشي کېدای چې منځ ته رانشي.دا چې ویل کیږي سوسیالیستي نظام ضروري دی یا په متعارفه شرایطو او د حرارت په سل درجو کې اوبه په بخار بدلیږي ضروري دی یا کله چې یو جسم هوا ته ګوزار شي او بیرته ځمکې ته راپرېوځي ضروري دی دا ټول د هغی اړیکې په استناد دي چې د اجسامو او پدېدو تر منځ ضروري دي چې له ناچارۍ په یوې ټاکلې بڼې راڅرګندیږي.
«اصول فلسفه و روش ریالیزم» تاسو ته وایی:

«هیڅکه نشو کولی چې یو شي څخه خپل واقعیت سلب کړو... هیڅکله نشو ویلای چې نن ونه شته او نن نشته ۴...»، «موږ دغی ځانګړتیاو ته په خپلو بحثونو کې «ضرورت» وایو(۲ټوک، ۱۱۴مخ)

په دې مفهوم چې هر شی د یو علت له مخې وجود لري او تر هغه وخت پورې چې وجود لري ضرورت دی. ضرورت هغه شی دی چې وجود لري، واقعیت لري. له دې څخه دا نتیجه په لاس راځي چې په مادي نړۍ کې پرته له ضرورت څخه بل شی نشته. که د نن ورځې انسان په واټ کې یوې پیښې سره مخامخ کیږي ضرورت دی ګویا پرته له دې بل څه کېدای نشي، که په پسرلي کې سخته ږلۍ وشوه ونې او فصلونه یی ووهل پرته له دې بل څه کېدای نشي، که یو ناقص الخلقه ماشوم نړۍ ته سترګې پرانیزي ضرورت دی... په لنډه توګه هر هغه څه چې شته او واقعیت لري یا واقعیت مومي ضرورت دی حال دا چې داشان نده د همدې عبارتونو لیکونکې په یو بل ځای کې اتفاق ته اشاره کوي اتفاق یعنې د ضرورت نفې کول. په دې تیارو لاروکې د سربېاله پاتې

کېدلو علت دادی چې د اســلامي ریالیزم لپاره د ضرورت مقوله دټولو ویناوو سره سره چې په لاره اچولي، او رازونه یې د هغه لپاره جلا جلا شمیرلي بیا هم د هغــوی لپاره (ضرورت بالذات، ضرورت بالغیر، د فلســفي ذاتي ضرورت، منطقي ذاتي ضرورت او داســې نور) روښــانه ندي. او دغه ښاغلي خیال کوي هــر څوک چې خپل وجــدان او ضمیر ته مراجعه وکړي د ضرورت مقوله پیدا کولی شي خو په خپله یې خپل وجدان او ضمیر کې ضرورت درک کړی ندی.

ضــرورت د مــادي نــړۍ د ټولو اړیکو په شــان عیني حقیقــت دی یعنې د انســان له شعور څخه مســتقل وجود لري، د انســان په ذهن کې انعکاس پیدا کوي. اسلامي ریالیزم په دې باور دی چې ضرورت حسي ندی، معقول ندی، ضــرورت لیدلــی، بوی کولی او لمس کولی نشــو. دا یو حقیقت دی چې انکار تــرې کېدای نشــي. اصولاً هیڅ مفهوم د لیدلو، لمــس کولو او بویولو وړ ندی. ساده مفاهیم لکه رنګ، میوه، حیوان، ګیاه او داسې نور هم د همدې خاصیت لرونکــي دي خــو دا پــه دې مانا ندی چې دغه مفاهیم د ذهــن زېږنده ده او په بهرني واقعیت کې ریشــه نلري. البته ذهن څخه بهر، حیوان وجود نلري، میوه وجود نلري، هغه څه چې شــته او مشــخص دي، زردالو دي، انګور دي، سپی دی، پیشــو دی او داســې نور. د انسان ذهن د میوې مفهوم د تعقل او تفکر او تعمیم په مرسته هغه څه چې په ځانګړو میوو کې مشترک او ماهوي دي ټاکي. مفاهیم ټول په همدې ډول جوړېږي. مفهوم د بهرنۍ نړۍ د پېژندنې په اړه تر حسي شناخت لوړ ګام دی، مفهوم، د خارجي واقعیت په هکله هراړخیز او ژور شناخت په لاس راکوي. د هر انسان په وړاندې د میوې یا حیوان کلمه د نارنج یا د موږک تر کلمې په ژوره او پراخه توګه پېژندل شــوی کلمه ده، باید ووایم چې شــناخت د دوه مرحلو لرونکې دی: حســي شــناخت او تعقلي شــناخت.

مفهوم، د تعقلي شـناخت د بنسـټ ډبره ده. ضرورت هم له همدغه مفاهيمو څخـه دی منتهـا ډير زيات عام او پراخ. مفاهيـم او مقولات که علمي وي که فلسفي ټول حسي شناخت څخه سرچېنه اخلي. کومې بيلګې چې د ضرورت په هکله وويل شوې، ضروري اړيکه په هر ځای کې محسوسه ده: ډبره له ناچارۍ ځمکې ته راپريوځي، اوبه له ناچارۍ په بخار بدليږي، سرمايه داري له ناچارۍ په سوسـياليزم پای ته رسيږي او.... انسـان د دغو ناچاره واقعيتونو او د دوی په شان د نورو ميليونونو واقعيتونو په ليدو سره د تجريد (د ناچارو اړيکو او د ناچارو تخلفي اړيکو جلا کول په هر مشخص مورد کې) او د تعميم (په ټولو مواردو کې هغه ته د عموميت ورکول) په مرسـته، د ضرورت مفهوم يا مقوله جوړوي. په دې ډول د ضرورت فلسـفي مقولهسـره له دې چې ليدل کېدای، بوی کېدای او لمس کېدای نشـي مګر حسـي شـناخت څخه رامنځ ته کيږي. اسـلامي رياليزم چې د شناخت تئوري څخه روښانه او هر اړخيزه درک نلري، له ناچارۍ دا نتيجه تر لاسـه کوي چـې «عقل» دغه حقيقت (ضرورت) ته له بلې لارې رسـيدلی او «مفاهيم يواځې د ذهن د تجريد او تعميم قوه نده بلکې د دغو عامه فلسفي مفاهيمو پاتندوی دی» (۸۱،مخ) او دا په دې مانا دی چې «عامه فلسـفي مفاهيم» ذهني دي او عينيت نلـري. علمي قانون هغه وخت د علمـي قانون بڼه نيسـي چې «ذهن هغه قطعي او د هغـه بڼه خلاف نه منونکې ومنـي». علمي قانون هغـه قانون ندی چې خپله په قطعي واقعيت او خلاف نه منونکـي حالت کې قـرار ولري، علمي قانون هغه دی چې «ذهن هغه قطعي او خلاف نه منونکي ومني». د علمي قانون خلاف نا پذيري د انسـان په مغز کې د عيني واقعيت د انعکاس نتيجه نده بلکې د ذهن د منلو او تلقي نتيجه ده. له همدې ځايه ده چې د مفاهيمو او مقولاتو او حتی د قوانينو خصلت نفې کيږي

او د اسلامي ريالیزم اید آلیستي خصلت په ډاګه کیږي.

د ضـــرورت د کلمــې عنوان کولــو پر ځای د تصادف او اتفــاق مقوله ځای نیســي. ضرورت مني چې شــی یا یوه ځانګړې پدېده تر ټاکلو شــرایطو لاندې حتمــاً او ضرورتــاً منځ ته راځي او تر دې پرته بل څه کېدای نشــي، د تصادف او اتفــاق پــه حالت کې ممکنه ده چې شــي یــا پدېده منځ ته راشــي یا منځ ته رانشــي، ممکنه ده په دغه بڼه اتفاق ومومي یا په بله بڼه. د مڼې ونه په پســرلي کې تر مســاعدو شــرایطو لاندې غوټۍ کوي او بیا میوه نیســي. غوټۍ کول او وروســې میوه نیول د ونې ضرورت، د ارګانونو تر منځ یې اړیکه، بهرني محیط ســرهد اړیکو له لارې منځ ته راځي. ضرورت د پدېدې له سرشــت او ماهیت څخه راټوکیږي. خو په ناڅاپي توګه پرله پســې ږلۍ د ونې غوټۍ رژوي او ونه میوه نه نیسي. د ږلۍ اورښت ضروري ندی، اتفاقي دی، ممکن اورښت وشي یا ونشــي. لکه چې وینو له میوې د ونې پاتې کېدل د ونې له سرشــت څخه نه راپورتــه کیــږي بلکې بهرني اړیکو پــورې اړه لري. سوسیالیســتي انقلاب باید هرومرو په سوســیالیزم او کمونیزم پای ته ورســیږي، دغه ضرورت په خپله د هغې ټولنې له منځ څخه په کومې کې چې سوسیالیستي انقلاب منځ ته راغلی، د سوسیالیســتي تولیدي اړیکو څخه سرچینه اخلي. خو امپریالیستي بورژوازي کولی شــي په سوسیالیســتي هیواد حمله وکــړي او د پرولتاریایی دیکتاتوري پــه ځای بــورژوازي دیکتاتوري ځای په ځای کړي یا حتی پــه هیواد کې د ننه د بورژوازي او خرده بورژوازي پاتې شــوني په مســاعدو شــرایطو کې واک په لاس کې ونیســي او ټولنه د سوســیالیزم او کمونیزم د جوړښت څخه بل لوري ته منحرف کړي او ســرمایه داري اړیکي له ســره ځای په ځای کړي چې دا یو تصادفي امر دی. د انسان (یا بل هر ژوي) حیات د داخلي او بهرني لاملونو تر

اغیزې لاندې په مرګ پای ته رسېږي (داخلي لامل ټاکونکې نقش لري) چې دا ضـــرورت دی خـــو د حادثې له کبله مرګ د داخلـــي لامل نتیجه نده د بهرني لامـــل نتیجـــه ده او.... لکه چې لیدل کېږي پـــه طبیعت او ټولنې کې تصادف او اتفاق شتون لري انکار کول ترې ناشونی دی. تصادف په واقع کې د ضرورت یو څرګند شکل او د هغه بشپړتیا ده. دغه مطلب په څو بیلګو سره په ډاګه کوو:

«فرض کوو په یو پانګوال هیواد کې یو کوچنی مالک د بیلګې په توګه د یو شـــیریني پلورونکې کار دیوالي کېږي او په پرولتر بدلیږي. ډېری دا ډول پیښـــې منځ ته راځي. شـــیریني پلورونکي ګمان کوي چې دا صرفاً یوه اتفاقي پیښـــه ده او ضرورت پورې هیڅ اړه نلري. په رښـــتیا تصادفي هم ده چې دغه شـــیریني پلورونکـــې دیوالـــي کېږي او هغه بل نه دیوالي کېـــږي، ځکه چې په یو بل ځای کې، په بیلو شـــرایطو کې، یو بل شـــیریني پلورونکې کولې شي د ژوند تر پایه د شـــیریني پلورو څښتن پاتې شي. کېدای شـــي یو شمیر اتفاقي لاملونه پیدا کړو چې د دغه شیریني پلورونکي د دیوالي کېدو لامل شوی وي، مثلاً د هغه څنګ کې د بل ستر شیریني پلورونکي موجودیت چې په ارزانه بیه شیریني پلوري او زموږ دغه شـــیرینی پلورونکي خپل مشتریان له لاسه ورکړي وي او داسې نور. خو د دغې حادثې تر شا، لکه د هر بل تصادف په شان یو ضرورت پټ پروت دی. په پانګوالې ټولنې کې د صنعت تکامل سره سم د کوچنیو پانګوالو (کسب ګر، دهقانان او پیشـــه وران) دیوالي کېـــدل یوه ضروري او نه ژغورل کېدونکې پروسه ده او دا د سرمایه داري قانون دی. دغه ضرورت د ګڼ شمیر تصادفاتو (د منفردو کوچنیو مالکېنو له ماتې څخه) منځ ته راځي. د دغه منفردو اتفاقي پدېدو له موجودیت پرته چې په خپله د سرمایه داري د تکامل د عمومي جریان نتیجه ده، اقتصادي ضرورت نشـــي کولی ځان څرګند کړي» («د مارکسیســـتي

فلسفې درسي» کتاب ځينې نکل شوی)

په سـرمایه داري تولید کې د توکو قیمت د عرضې او تقاضا له مخې توپیر کوي کله د تصادف له مخې د خپل واقعي ارزښت په پرتله کښته او کله پورته پلـورل کیـږي. خو د دې تصادفي نوسـاناتو له منځ څخه دغه قانون تر لاسـه کېږي چې د وخت په اوږدو کې دغه توکي پرته له دې چې د قیمتونو نوسانات په پام کې ونیول شي، په بازار کې د خپل واقعي ارزښت له مخې پلورل کېږي. رادیواکتیـوي مـواد تجزیه کېږي پـه دې مانا چې پرله پسـې ذرات په بهر کې خپـروي. دغه تجزیه په ثابت انداز سـر ته رسـیږي چې کېدای شـي په دقیقه توګه اندازه شـي. دغه اندازه اخیسـتنه وړاندوینه کوي چې په ټاکلي دوران کې رادیواکتیـو عنصر څومره او په کومه پیمانه تجزیه شـویدی. خو دا چې په دې دوره کې کوم اتم له تجزیی سره مخامخ شویدی معلومول یې ناشونی کار دی ځکه چې دا تصادف سره تړاو لري.

هغه فشـار چې د ګازاتو له خوا د لوښـي په دېوال راځي د ګاز د مالیکولونو د ټکر نتیجه ده. په هره لحظه کې بې شـمیره مالیکولونه د لوښـي دیوال سـره لګیـږي خو دا چې کوم مالیکول په کومې لحظه کې د دیوال کومې نقطې سـره ټکر کوي د تصادف محصول دی خو د دغو تصادفاتو له منځ څخه دغه قانون تر لاسـه کېږي چې د ګازاتو د حجم او فشـار تر منځ یوه بشـپړه ټاکلې اړیکه وجود لري.

دا ټکي هم په ګوته کووم چې اتفاق د اصل علیت له دایرې څخه بهر ندی. هـر تصادف لره علت شـته منتها هغه علت یـا علل چې د اتفاق په څرګندیدو کې پای ته رسـیږي د پدیدې له منځ څخه نه راپورته کېږي. بلکې بهرنی علت یا علل دي. دا چې زه وروسته تر څو کلونو د تصادف له مخی خپل دوست د

واټ په څنډه کې وینم په دې مانا نده چې علت نلري. دغه ملاقات دې پورې تړاو لري چې زه څه وخت له کور څخه وتلی وم او له کومې لارې روان شـوی وم څو ځایه ودریدلی وم تر څو د ملاقات ځای ته رسیدلی یم. همدغه پورتني ټکي د مقابل لوري په اړه هم صدق کوي. دغه ملاقات زما او یا زما د دوست له ذات څخه سرچینه نه اخلي. بلکې بهرني علت یا علل پورې تړاو لري. اتفاق د تقاطـع پـه نقطه کې هغه پدیده ده چې هـر یو یی ځانته علت یا علل لري. د دغو پدیدو یو ځای کېدل په دغه ټاکلی نقطه کې د ګڼ شمېر شرایطو پایله ده، کـه چېرې یو له دغه شـرایطو وجـود ونلري نو بیا اړینه نـده چې دغه تلاقي د صورت نه نیسـي. اسـلامي ریالیزم اتفاق له بیخ او ریښې څخه نفې کوي که د فلسـفي مقولاتو او مفاهیمو د تعریف او توضیح لپاره انسان باید خپل ضمیر او وجدان ته مراجعه وکړي د تصادف مقوله هغه مفاهیمو څخه ده چې درک یی د ضرورت په پرتله ډېر اسـان دی ځکه چې هر کس ورسـره په خپل عادي ژوند کې سـروکارلري، لـه همدې کبله په اتفاق او تصـادف باور لري او مني یـی، که څه هـم د روحانیت د تلقیناتو تر اغېزې لانـدې هغه ته د «بخت» او «قسمت» او «برخه لیک» نسبت ورکوي. همدغه فلسفي مقوله هم چې څوک یی د خپلې شـخصي تجربې له مخې احساسـوي په «اصول فلسـفه و روش ریالیزم» کې ځای نه پیداکوي.

«د علیت او معلولیت قانون د فرض صدفه او اتفاق په مقابله کې ده. صدفه له دې څخه عبارت دی که فرض کړو چې یوه حادثه پرته له دې چې کوم شـی پـه هغـه کې لاسـوهنه او دخالت وکړي پـه خپله منځ ته راځـي. دا د عقل له ضرورتونـو څخـه یو ضرورت دی چې په صدفه او اتفاق سـترګې پټوي» (۳ ټوک، ۸۶مخ)۲۴۵

«صدفـه او اتفـاق چې درک کول یې د هر چا لپاره ناشـونی دی هغه دا دی کله چې یو شـی نه وي او بیا منځ ته راشـي او پرته له کوم علت څخه منځ ته راشي»(هماغه ځای، ۱۹۸ مخ)

اسلامي ریالیزم د سلیم عقل په درلودلو سره سره او د هرې ورځې واقعیتونو سـره سـره د هغه درک کول «ناشـونی» بلل «په صدفه او اتفاق سترګې پټول» د «عقل له اړتیاو» څخه شـمیري او دا هم په دې دلیل چې ګواکې اتفاق پرته له علت څخه دی. د اسـلامي ریالیزم د باور له مخې اتفاق هغه شـی دی چې علت نلري او هیڅ شی له اشیاو د هغه په څرګندیدو کې دخالت نلري. ښکاره ده په دې تعریف کې اتفاق په خپله نفې کیږي. څکه کوم شی چې علت ونلري وجود نه پیدا کوي. معلومه نده چې اسـلامي ریالیزم دغه اندیشـه د کوم عطار له قطۍ څخه تر لاسـه کړې. ځینې وخت د غنمو کښت تر یرغل لاندې راځي او حاصـلات یې له منځه ځي. د ملخانو یرغل ضروري ندی، اتفاق دی ځکه شونې ده چې د ملخانو یرغل پیښ شي یا پیښ نشي خو په هر حال کې د غنمو د حاصلاتو د له منځه تللو علت دی. آیا په نړۍ کې داسـې کس پیداکولی شئ چې د غنمو د محصولاتو ویجاړیدل پرته له علت څخه وګڼي؟ ښایی کله چې عقـل او پوهـه د واقعیتونو نړۍ څخه مخ ګرځوي او په یوې بلې نړۍ کې چکر وهي له ناچارۍ دا ډول اپلتو ته مخ اړوي.

د حیرانتیا خبره دا ده چې د «اصول فلسفه و روش ریالیزم» اصلي لیکونکي د دې ادعا له بیانولو وروسـته چې «د هسـتي په نړۍ کې اتفاق وجود نلري» د اتفاق تر عنوان لاندې مطالب په دې ډول تشریح کوي:

«مـوږ وایو چـې تېرکال د ونو بار ښـه و او زموږ د هیواد اقتصاد سـره یې په زړه پورې مرسـته وکړه خو اتفاقاً د پسـرلي وروسـتۍ یخې هوا او د دوبي

لمړنۍ بڼلۍ د ونو محصولات له منځه یوړل او د اقتصاد پرمختګ ته یې تاوان ورساوه. همدا ډول وایو نن سهار د کور د اړتیاؤ پوره کولو لپاره بازار ته تللم اتفاقاً پلاني دوست سره مخامخ شوم او د پلانی خبر حال یې راته ووایه...» که په دې بیلګو او نورو سلکونو بیلګو کې ځیړنه وکړو وبه وینو هغه حوادثو ته چې موږ ورله د اتفاق او اتفاقي پیښې نوم ورکړی لکه په (لومړي مثال کې ساړه او د هغو اغېزه، په دویم مثال کې دوست سره لیدل او خبر اخیستنه...) نه غواړو ووایو چې علت فاعل نه درلود او فعل پرته فاعل څخه وجود پیدا کړی ځکه د هرې حادثې فاعلي علت په تېرو مثالونو کې په خپله د حادثې په څنګ کې ځرګند دی. بلکې غواړم ووایم چې اتفاقي حادثه په یاد شوو مثالونو کې علل او عواملو پورې تړاو نلري او دهغوی د بهیر او پیښېدو وړاندوینه نشوه کېدای د بېلګې په توګه حاصلات او سړه هوا، د میوه لرونکو ونو طبیعت او د غوټیو غوړیدل د سرې او داروګانو په واسطه د دانو او میوو غټول په پای کې د دغې مجموعې (ساړه او د میوو له منځه تلل) تر شا دغه غایت نه درلود او وړاندوینه نشوه کېدای. اتفاقي حادثه، هغه غایت دی چې فاعل سره له اړیکې پرته او د فاعل له غوښتنې پرته د کار په لټه راشي «...» دغه ویناګانو ته په غور کتلو سره د هغوی لاسونه تړل کېږي چې د اتفاق په هکله باید د علتونو یوه سلسله خپل معلول منځ ته راوړي او یو شمېر نور علتونه هم نور معلولونه منځ ته راوړي او د هغه ټکر پواسطه چې ترمنځ یې پیښیږي دویمه سلسله د لمړۍ سلسلې په ځای کې موافق یا مخالف اغیز لوبوي داسې چې لمړنۍ سلسلې سره هیڅ تړاو ونلري.» (۳ ټوک، ۲۵۷ ــ ۲۵۸ ،مخ)(تکېه ــ ف)

د ویناګانو دغه ټولګه را په ګوته کوي چې په خپله لیکونکې هم په اتفاق باورمن دی او هم د هغه وجود پرته له علت څخه نه مني. له دې ټولو توضیحاتو

سره سره بیا هم د دې مخنیوی نه کوي چې په وروستۍ پایله کې، «کوم مسائل چې په دې مقاله کې په اثبات رسیدلې» بیا تور په سپین لیکي چې «اتفاق وجود نلري». آیا پورتنۍ ویناګانې د اتفاق په نفې کولو دلالت کوي؟

د «اسلامي ریالیستانو» اساسي ستونزې په دې ځای کې دي چې د دوه فلسفي مقولو «علیت» او «ضرورت» په منځ کې توپیر نه کوي چې دا د دغه دوه فلسفي مقولو د درک نشتوالی په ګوته کوي. هغوی نه پوهیږي چې هره ضروري اړیکه علي دی خو هره علي اړیکه ضروري نده. د هغوی له نظره اتفاق وجود نلري ځکه چې هر شي لره علت شته او دا چې هر شي لره علت شته نو باید اتفاق او تصادف د فلسفې له قاموس څخه یوې څنډې ته ګوښه کړو. د مسولې صحیح راز په دې کې پروت دی چې د هرې حادثې لره علت شته، اتفاق او تصادف هم له دې اصل څخه جلا ندي. بیا هم اتفاق شته ځکه هره حادثه ضروري نده. د هغوی د باور له مخې اتفاق او تصادف وجود نلري ځکه چې علي اړیکه په هر ځای او هر حال کې رښتینې ده، د دې برعکس، تصادف او اتفاق شته ځکه چې هرڅه ضروري ندي.

ښکاره ده کله چې صدفه او اتفاق له نړۍ څخه تېر تړل کړي هره حادثه ځانته د ضرورت رنګ غوره کوي، کله چې اتفاق له طبیعت او ټولنې څخه بهر لاړ شي. بیا نو هغه څه چې په نړۍ فرمان چلوي ضرورت دی او بس. هرهغه څه چې تر سترګو کېږي ضروري دي او شونې نده هغه څه چې شتون لري هغه د بل څه وي. په دې ځای کې ده چې نه یواځې تصادف او اتفاق د ضرورت تر کچې لوړیږي بلکې ضرورت هم د تصادف او اتفاق تر کچې کښته کېږي. اسلامي ریالیزم د اتفاق او تصادف په نفې کولو سره دا رنګه موضع کې ځای نیسي. «اصول فلسفه و روش ریالیزم» په دې باور ده چې «هره معلولي پدېده

تر څو ضرورت ونلري منځ ته نه راځي»(هماغه ځای، ۱۴۶ مخ). یو څوک په واټ کې موټر سره د تصادف په نتیجه کې ژوند له لاسه ورکوي د هغه مړینې ضرورت درلود! آیا پرته له دې بل څه کېدای شي چې اتفاق د ضرورت کچې ته او ضرورت د اتفاق کچې ته را ټیټ شویدی؟

په طبیعت او ټولنې کې د بلا شریک او واکمن مقام په توګه دضرورت مطرح کول د مذهب په وړاندې مبارزه کې د ۱۸ پیړۍ د ماتریالیزم له ځانګړتیاو څخه وو. د میکانیکي ماتریالیزم لپاره اتفاق او تصادف څخه خبرې کول د قوانینو د نفې کولو په مانا ده کوم چې په طبیعت کې عمل کوي. یو له دغو ماتریالیستانو څخه هولباک، په دې باور دی:

«ټول هغه شیان چې موږ یې وینو ضرورت دی او نشي کېدای پرته له هغه چې شتون لري بل شی د اوسي»... «کېدای شي موږ ډاډه اوسو داسې هیڅ ناڅیز او لرې پروت علت نشته چې ځینې وخت زموږ لپاره ډېرې سترې او مستقیمې اغیزې له ځان سره ونلري. بنایی د لیبیا په وچه صحرا کې د یوې داسې سیلۍ (طوفان) عناصر برابر شي چې د باد جریان یې تر موږ راورسي او یو داسې خپه کوونکې اتمسفیر جوړ کړي چې د یو انسان احساسات تر اغیزې لاندې راولي، دغه انسان چې اړیکې یې ورله د دې امکان ورکوي تر څو په نورو بې شمیره انسانانو اغیزه وکړي او د خپلې ارادې له مخې د ډېرو انسانانو د برخه لیک په هکله تصمیم ونیسي» (سیستم طبیعت)[۲۴۷]

ګورو چې یوه تصادفي پیښه په یوې لرې سیمې کې کولی شي د ملتونو د حرکت لوري ته بدلون ورکړي او هغوی په بلا ګانو او مصیبتونو اخته کړي. د فرانسې د ۱۸ پیړۍ ماتریالیستانو چې ضرورت یې مطلقاو اتفاق یې نفې کاوه په واقعیت کې یې د ټولنې خطرناکې او برخه لیک ټاکونکو کوچنیو پیښو څخه

نتیجه اخیسته.

## پېژندګلوي (شناخت)

شــناخت د انســان په مغزو کــې د عیني واقعیت د انعــکاس یون او په ورته وخت کې د هغه پایله ده. د شــناخت له کلمې څخه دوه ګټې اخیســتل کېږي: پــه عام او ټولیزه مانا د عیني واقعیت پیژندنه ده چې د بشــر د تاریخ په اوږدو یــی تکامــل موندلی او تر دې وروســته به هم تر بې‌نهایتــه تکامل وکړي او په ځانګړې او محدود شــوې مانا د هغه یا دغه شــي یا پدیدې پیژندګلوۍ ته ویل کېږي.

د شــناخت بنســټیز اصل چې د تکامل ټول تاریخ په ځانګړې توګه د علومو تکامل یی په لاس کې ټینګ نیســي هغه دا ده چې د انســان شــعور کولی شــي عیني واقعیت په ســمه توګه منعکس کړي او ویي پیژني. مارکسیســتي فلســفه نــړۍ پیژندنه نه ردوي او په دې هکله هیڅ شــک او بــې باوري روا نه مني. په دې هکله د کانت نظر چې «شــی یې بنفســه» یعنې د شــي حقیقت (ماهیت) هیڅکله پیژندل کېدای نشــي او انســان یواځې «شی زما لپاره» ښکلتیا (نمود) پیژندلی شــي، چې دا د انســان د ټول تاریخي پراتیک لاسته راوړنو او د علومو د پرمختــګ خــلاف نظــر دی. هیــڅ ډول ژوره کنده ماهیت او ښــکلتیا یوبل څخه نه جلا کوي. انســان پر دې برلاســی دی چې د شیانو او پدیدو له ښکلتیا (نمود) څخه دهغه ماهیت وپیژني او«شــی زما لپاره» شناخت څخه د «د شي حقیقي» شــناخت ته ورسېږي. کانت د شي د «شي یې بنفسه» او«شي یې زما لپــاره» د ویــش له مخې په واقعیت کې د مــادي نړۍ پیژندل نفې کوي. هغوی په دې باور دي هغه څه چې موږ یی پیژنو زموږ لپاره «شــی» دی دا چې د دې شناخت تر شا څه دي موږ پرې نه پوهیږو. آګنوستیسیزم(Agnosticisme)

هغه فلسفي مکتب دی چې انسان د عيني واقعيت په پيژندلو کې په تړليزه توګه بې وسې ويني، سربېره په دې د کانت لارويانو چې د «شی يې بنفسه» او «شی يې زما لپاره» تر منځ د ژورې کندې په کېندلو سره د علومو واقعيتونو سره د ټکر او تضاد په بهير کې خپل مکتب ته په بله بڼه دوام ورکړ، دا چې په هر حال علم د خپلې پياوړتيا سره سره د واقعيتونو په پيژندنه کې نيمګړتياوې لري او کېدای شي انسان يواځې د مادي نړۍ د يوې برخې په پيژندلو بريالی شي. «انسان هيڅکله نشي کولی د آسماني اجرامو او د هغوی د تحولاتو په پيژندنه کې لاسبری شي.» د نوي علومو لاسته راوړنو هم په دې نظر د بطلان کرښه وکښله: سپوږمکېو وکولی شول د سپوږمۍ کره له نږدې وپيژني او د هغې په مخ انسان پلی کړي، ويې کولی شول له نورو سيارو څخه دقيق مالومات تر لاسه کړي. طيفي تجزيو په نجومي راديو کې د آسماني اجرامو په هکله د انسان پوهاوي ته پراختيا او ژورتيا ورکړه. د اتم پيژندنې اتمي انرژي شونې کړه هغه داخلي تحولات چې د ډېرو آسماني اجرامو په منځ کې پيښيږي په ډاګه کړي او داسې نور. تر دې د مخه دغه وسايل د انسان په لاس کې نه وو، علم او تخنيک دغه وسايل د انسان په واک کې ورکړل او په يقين سره راتلونکې به نور تازه او نوي وسايل د انسان په واک کې کښيږدي.

په دې ډول کومه بڼه چې کانت اګنوسيتسيزم ته ورکړه دوه هڅونې يې منځ ته راوړې: هغه هڅه چې په مطلق ډول د نړۍ پيژندنه ردوي او نه يې مني او بله هڅه چې د نړۍ پيژندنې لپاره حدود په پام کې نيسي. اسلامي رياليزم د دې خبرې په بنسټ چې کانت وايي «حقايقو ته د بشر لاسرسی په تړليزه توګه لنډ دی» د ځان او کانت تر منځ د توپير کرښه کاږي. په دې ډول د اګنوستي سيستانو په لښکر کې وروسته پاتې کيږي، په دې هکله د هغوی استدلال دادی

چې:

«که څه هم انسان د سم فکر په کولو سره کولی شي د حقایقو په کشف بریالی شي، خو له بلې خوا د نړۍ حقایق بې پایه دي او د انسان استعداد محدود دی، بیا نو انسان نشي کولی د ځینو حقایقو په کشف بریالی شي. علم کل به د هیڅا په برخه نشي» (تکېه ـ ف) («اصول فلسفه و روش رئالیزم»، ۳ ټوک، ۱۶۱ــ ۱۶۲ مخ)

په دې ډول د اسلامي ریالیزم لپاره «د نړۍ د ځینو حقایقو کشف» د انسان د شناخت له لاسرسي څخه لرې پاتې کېږي. دغه «ځینې حقایق» کوم دي؟ هغه کومې ځانګړتیاوې لري چې پیژندل یې تر لاسه کېدای نشي؟ انسان ولې نشي کولی چې د دغو «ځینو حقایقو» په کشف لاس بری شي او د نورو حقایقو په کشفولو برلاسی دی؟ دغه «ځینې حقایق» چې انسان یې کشفولی نشي او هغه زیات شمیر نور حقایق چې انسان یې په کشف برلاسی دی څه توپیر وجود لري؟ دا هغه پوښتنې دي چې «اصول فلسفه» هغوی ته ځواب نه ورکوي او اصلاً دا ډول پوښتنې یې په خیال او سوچ کې ځای نه پیدا کوي. جالبه خو دا ده چې «ستر علامه» په وروستۍ پاڼه کې حتی خپله خبره هم له یاده باسي. همدغه «ځینې حقایق» هم د شناخت له لاسرسي څخه نا شونی نه بولي او تر یو کلي فرمول لاندې دا ډول لیکي: «که څه هم موږ د بهر شیانو په ماهیت نه پوهوي خو څه نا څه مو دهغوی په شتون خبروي» (هماغه ځای، ۱۶۳ مخ) او د شیانو ماهیت هماغه دی کوم چې کانت یې «شی یې بنفسه» نوموي او باور لري چې انسان د هغه په پیژندلو بریالی کېدای نشي. اسلامي ریالیزم د کانت په شان په دې باور دی چې زموږ مالومات، موږ ته د بهرني شیانو د ماهیت په هکله پوهاوی نه راکوي یواځې موږ ته ښکاره کوي چې له

موږ څخه بهر شيان وجود لري او بس. آيا دا د کانت له نظر څخه کوم بل شی دی؟ آيا دا نظر اسلامي رياليزم په غوڅه توګه د اګنوستيسيزم په موضع کې نه ځای په ځای کوي؟ د حيرانتيا ځای دا ده چې په ډاکټر اراني د يو بريد په ترڅ کې ليکي:

«په رښتيا بايد ومنو چې مادي يون اصلاً خبر نلري چې په علم او فلسفه کې څه تيريږي» (هماغه ځای). رښتيا وايی. مادي يونو نه له «حلية المتقين» څخه توښه اخيستنه له «توضيح المسائل» څخه!

اسلامي رياليزم د خپل نظر د توجيه کولو لپاره «د نړۍ د بې پايه حقايقو په شتون» باندې ډډه لګوي. دا چې د نړۍ حقايق بې پايه دي په دې کې هيڅ شک نشته خو د «بشر محدود استعداد» د توجيه کولو لپاره په کوم بنسټ ډډه لګوي؟ کوم شيان د دې ښکارندويې کوي چې د بشر استعداد محدود دی؟ البته که بشر څخه منظور يو واحد فرد وي يا حتی که بشر ټول انسانان د يوې ټولګې په توګه د تاريخ په اوږدو کې يو پړاو يا زمان د يوې برخې په مانا وي دا يو سم اصل دی چې د بشر استعداد محدود دی. خو کله چې د بشردايره ټول انسانان، ټول پخواني او راتلونکي انسانان په لمن کې رانغاړي بيا نو په دې مقطع کې د انسان د استعداد لپاره حد او حدود وجود نلري. د انسان د شناخت حرکت د تاريخ په اوږدو کې چې تر دوه ميليونو زيات کلونه د انسان له پيدايښت څخه تيريږي جريان لري، کوم چې د دې حکم صحت په اثبات رسوي او په دې هکله هيڅ دليل په لاس کې نشته چې په راتلونکي کې به د انسان استعداد مړاوی کيږي او محدوديت به منځ ته راځي، برعکس د شناخت پخوانی او اوسنی حرکت په ګوته کوي چې په راتلونکي کې به د انسان شناخت له زيات څخه زيات چټک او هر اړخيز اوچت ګامونه پورته کوي.

شــناخت په خپل تاریخي- اجتماعي خوځښــت کې د ژورتیا او پراختیا له پلوه پرله پسې تکامل کړی او پرله پسې د مادي نړۍ شیان او د هغوی اړیکې پیژني. د شــناخت په لړۍ کې څنډه د منلو وړ ندی او تر بې نهایته دوام لري او «عقل کل» چې اســلامي ریالیــزم د هغه بحث کوي چټي او تشــې خبرې دي. «علم کل» یعنې د شــناخت د حرکت تم کول، یعنې د شــناخت په پروسه کې چوپتیا او وقفه راوستل. د شناخت بهیر تم کېدونکې او غوڅېدونکې ندی.

څرنګــه چې د شــناخت د مقولــې له تعریف څخه څرګندېږي، شــناخت د روپې په ډول دوه مخونه لري؛ یو عېني مخ او بل ذهني مخ، د شــناخت عېني مخ، مادي نړۍ دی چې د شــناخت ســرچېنه ده، له ذهن څخه بهر او له هغه څخه مســتقل وجود لري. مخکې له هغه چې انســان د ځمکې په مخ پیداشــي او شــناخت رامنځ شي مادي نړۍ وجود درلود. د شناخت ذهني مخ، د انسان استعدادد مادي نړۍ په پیژندنه کې دی، د انسان د مغز په خاصیت او کېفیت کې د شــناخت وســیله ده. د مادي نړۍ د شــیانو او پدېدو اغیزې کومې چې د انسان په حسي غړو د احساس، ادراک او تصور په بڼه څرګندېږي، د تعمیم او انتزاع د بنسټ ډبره جوړوي او انسان ته د شیانو او پدېدو د ماهیت په پیژندنه کې لار ښود ګرځي.

د شــناخت دوه مخونــو ته په کتو ســره لمړی دا نتیجه پــه لاس راځي چې شــناخت د عیني محتوی له کبله ده، که څه هم په خپله ذهني پدېده ده، له دې پلــوه ذهني پدېده ده چې شــناخت پرته له انســان څخه پــه مطلق ډول مفهوم نــه پیداکوي. وروســته دغه نتیجه چــې د مادي نړۍ پیژندنه حتی د یو شــي، یــوې پدېدې یا یو سیســتم پیژنــدل په یو ځل لاس ته نه راځي. شــناخت، که هر څېز دی یوه پروســه ده او له همدې کبله نســبي دی، نســبي په دې مانا چې

د ټولنيــزو محدوديتونو تابع دی. دغه محدوديتونه په لومړي ســر کې د علمي څېړنيــزو الاتو او وســايلو محدوديتونو پورې تړاو پيداکــوي کوم چې توليدي پراتيک يی بايد د انســان په واک کې ورکړي او دا يو منل شــوی حقيقت دی، په هره کچه چې توليد زيات تکامل وکړي په هماغه کچه د علمي څېړنو دقيق او پرمختللي وســايل د انســان په واک کې ورکوي چې د شــناخت د کچې په لوړوالي کې مرســته رســوي. دويم «د بشر د پوهاوي» ســطحه بايد وار په وار ارته او هراړخيزه شي تر څو ژور شناخت او تازه علمي تيوري ګانو ته لاسرسی شونی شي. لکه د ډاروين تيوري کله چې د پوهاوي سطح د ژونديو موجوداتو د بدلــون او تحــول په هکله يوې معينې درجې ته رســيدلې نــه وه د څرګنديدو امکان يی هم نه درلود. د انشتين د نسبيت تيوري د راز راز علمي لاسته راوړنو پر بنسټ ودانه شوه. مارکسيزم له يو لړ علمي، فلسفي او اجتماعي تيوري ګانو او معلوماتو پرته شونی نه وه او داسې نور. هيڅ تيوري يا فرضيه يا علمي قانون په چوپتيا کې نابېره له آســمان څخه نه رالويږي. علم په بنسټيزه توګه له آسمان څخه د حقايقو په نزول باورمن ندی او هره علمي تيوري يا فرضيه له ناچارې پخواني معلومات سره تړل شوی سابقه لري. نوې تيوري چې د موجوده علمي معلوماتو پر بنسټ جوړيږي د لارې په سر ميندل شوې ندي، د تيرشوو خلکو د جبري معلوماتو ټولګه نده. مارکسيزم هم په همدې ډول ده. مارکس د مادي نړۍ (طبيعت او ټولنه) د تکامل او تحولاتو د عامو قوانينو د کشف او د پانګه والې نړۍ د قوانينو د کشف پر بنسټ د داسې سترې ودانۍ بنسټ کېښود چې هيڅ څپان ســيلاو که هرڅومره ويجاړوونکي او زوروړ هم وي تاوان رســولی نشي. د مارکسيزم د پيدايښت له وخت څخه تر نن پورې ډېرې تاريخي پيښې منــځ ته راغلي چې د ټولنې بڼه يی په بشــپړه توګــه بدله کړيده، په دې پړاو کې

ډول ډول فلسفي مکاتب او تيوري ګانې منځ ته راغلې چې پوښنا شوي او د هيرغالي کندې ته لويدلي دي. خو پرمختک او د مادي نړۍ د تکامل شناخت پرله پسې د مارکس په ښوونې ټينګار کوي او تکامل ورکوي. د مارکس حياتي ځواک دهغه په حقيقت کې ده او حقيقت د ختې په اخير پټيدای نشي.

په لنډه توګه نسبي والی په دې مانا ده چې د شناخت لپاره ټولنيز شرايط، حدود او بريدونه ټاکي او تر هغو وړاندې تيريدای نشو، په ټوله کې موږ هغه شناخت ته نسبي شناخت وايو چې ځانګړو شرايطو سره تړاو ولري او خپل اعتبار له دغه شرايطو سره په اړيکه کې وساتي. د نيوټن دغه قانون چې «د جسم کتله دحرکت د سرعت تابع» نده نسبي ده يعنې يواځې د ټيټو سرعتونو په اړه رښتينی دی کله چې سرعت صفر وي د تيوري له مخې په بشپړه توګه صحيح ده. خو د لوړو سرعتونو په اړه ناسم حکم تر لاسه کيږي. کله چې وايو اوبه OH2 د ۷۶ سانتيمتر تر فشار لاندې او د تودوخې په ۱۰۰ درجې سانتيګراد کې خوټيږي يو نسبي حقيقت مو بيان کړی دی ځکه که چيرې فشار بدلون کوي يا د معمولي اوبو په ځای درنې اوبه ۱۵ (D2 O) په پام کې ونيسو نو بيا د اوبو د خوټيدلو درجه ۱۰۰ نده. د سپوږمۍ په کره کې چې د اوبو پته نه لګيږي دغه قانون په مطلقه توګه مفهوم نه پيداکوي. اخلاقي موازين د ټولنی د طبقاتو په منځ کې يوتربله توپير لري له همدې کبله نسبي خصلت لري؛ د بورژوازي له نظره زيبښاک د ارزښتونو ضد او غندل شوی عمل ندی، د پرولتاريا له نظره انساني ضد عمل دی چې بايد نسکور شي.

نسبي او مطلق د علمي واقعيت دوه اړخونه دي او په پايله کې د شناخت د واقعيت دوه متضاد اړخونه دي چې يوبل څخه جلاکيدونکي ندي او په ورته وخت کې يوبل نفې کوي. په پورتنۍ بيلګې کې، «د جسم کتله دحرکت

د سرعت تابع ندی» یو نسبي حکم دی خو د صفر سرعت لپاره مطلق دی. همدا چې دغه حکم د صفر په سرعت کې مطلق دی، د نسبیت زړی په هغې کې پروت دی، ځکه که چېرې سرعت صفر نه وي د جسم کتله د حرکت د سرعت په نسبت بدلون دی. «تر عادي فشار لاندې اوبه د حرارت په سل درجو کې خوټېږي» یو نسبي حکم دی ځکه چې د فشار په بدلون یا د اوبو په بدلون سره دغه حکم سم سر نه لګوي. خو د عادي اوبو او عادي فشار لپاره مطلقاً سم حکم دی. په هغه ځای کې چې اوبه نشته حکم هم نشته تر څو وکولی شو قضاوت وکړو. په دې ډول مطلق تل له نسبي ځینې راڅرګندېږي او نسبي تل د مطلق درلودونکې دی له دې کبله د مارکسیست فلسفې لپاره نسبي والی «نسبیت» د مطلق والي د نفې په مانا نه (ښودل) کېږي.

د مارکسیست په فلسفه کې د شناخت نسبیت د نسبي مکتب Relativ-isme سره له بیخه توپیر لري او دا هغه څیز دی چې «اصول فلسفه و روش ریالیزم» یی له درک کولو څخه پاتې راغلی او درک کولی یی هم نشي. څوک چې د «امتناع ضدین» اصل خپل لارښود وپیژني په رښتیا سره عیني واقعیت نه پیژني. د تضاد خصلت په خپله عیني واقعیت کې پروت دی. «اصول فلسفه» د مارکسیست فلسفې دغه حکم چې شناخت نسبي دی اخلي او هغه بل اړخ چې په نسبي والي کې مطلق وجود لري له پامه لرې کوي او هم ښایی چې هیڅکله یی د مارکسیست فلسفې څخه توښه اخیستې نه وي او بیا دې پایلې ته رسیږي چې مارکسیستي فلسفه هماغه د نسبي مکتب دی. د نسبي مکتب (رلاتیویزم) څه وایی؟ نسبي مکتب، نسبي شناخت مطلق کوي او له نسبي پرته بل څه نهویني. نسبي مکتب په دې واقعیت تکیه کوي چې د بشر پوهه پرله پسې د بدلون په حال کې ده او ځینې وخت حتی بنسټیز بدلون په هغه کې

منځ ته راځي. ځینې وختونه چې یو علمي حقیقت سم بلل کېده غلط او ناسم ثرګند شــول او برعکس هغه حکم چې اشتباه او تېروتنه بلل کېده سمه وخته. بیا نتیجه اخلي چې شــناخت په زمان او مکان کې انســان پورې تړلی دی او دا پــه خپلــه د دې ثرګندویی کوي چې یا واقعیت او حقیقت د شــناخت تر شــا وجود نلري او یا که هغه هم وجود ولري د شناخت له لاسرسي څخه بهر دی. کــه واقعیت وجود ولري او پیژندل کېدای شــي، انســان باید هغه په هغه ډول وپیژني چې شــته او نه هغه ډول چې کله ناکله د هغه په اړه تازه او نوې نغمې پیل کړي. نسبیون په دې ډول یا له عیني واقعیت څخه انکار کوي او یا د هغه پیژندل ناشونی بولي، یعنې یا په ذهني ایدآلیزم کې غوټه کېږي یا اګنوستیسیزم سره یو ځای کېږي.

لمړی: د نسبي مکتب (رلاتیویزم) تېروتنه دا ده چې تصور کوي انسان باید په اول وار ســم دلاســه واقعیت په بشپړه توګه وپیژني له سطحې څخه تر عمق پورې شناخت تر لاسه کړي، پداسې حال کې چې داسې نده. انسان د ازمایښتي او څېړنیزو مناسبو وسائلو د نه شتون له کبله او له بل پلوه د زمان په یوې برخه کې د بشر د پوهاوي محدوده کچه په دې برلاسی ندی چې په ټوله کې واقعیت له ظاهر څخه تر باطنه پورې په بشپړه توګه وپیژني. د واقعیت پیژندل چې یوه ټولنیزه پدېده ده وار په وار د وخت په لړ کې ســرته رســیږي او انسان د پدېدو ســطحي واقعیت څخه چې په هماغه لومړي ځل محســوس کېږي د واقعیت عمق او ماهیت ته نفوذ کوي. شناخت د ټولنې تکامل سره نه شلیدونکې اړیکه لري هغه سره یوځای ځنګ په ځنګ تکامل مومي.

د نســبي مکتب تېروتنه بیا په دې کې دی چې د شــناخت لار پاکه او اواره انګېري چې کولی شي هغه پرته له تېروتنې او انحراف په یو وار سرته ورسوي،

حال دا چې داسې نده. د شـناخت لار کږکه وګه او پيچلې ده، ډېرې وخت انسان له هغه مسير څخه منحرف کېږي او په بلې لار روانيږي. په دې ستونزمنې لارکې نشـو کولې له تېروتنې او ختا څخه ژغورلی پاتې شـو. خو له سمې لار څخه کږيدل يا تېروتنه او ختا په دې مانا نده چې واقعيت وجود نلري يا د هغه پيژندل ناشـونی دی. انسـان د شـناخت په لار کې پرله پسې انحرافي مسير په صحيح مسـير اړوي، ختا او تېروتنه اصلاح کوي او شـناخت ته لازياته ژورتيا ورکوي.

د شناخت نسبیتوب داسې شی ندی چې له پامه لرې پاتې شي. مارکسيستي فلسفه د رلاتيويزم برخلاف د شناخت په نسبي والي کې محدود نه پاتې کيږي. که چېرې شـناخت، په صحيح توګه واقعيت منعکس کړي، بيا هم په هغه کې د مطلـق حقيقت يـوه ذره وجود لري چې تلپاتـې او جاوداني ده. په هره کچه چې شناخت پراختيا او تکامل کوي د مطلق حقيقت نوي او تازه ذرات په هغه کې زياتيږي او په دې توګه د شـناخت تکامل د مطلق حقيقت په لور روانيږي پرته له دې چي په بشـپړ ډول هغه تر لاسـه کړي، پرته له دې چې «علم کل» د انسان په برخه شي. د رلاتيويزم برخلاف کوم چې نسبي شناخت يوائې نسبي انګېري، مارکسيسـتي فلسـفه شـناخت له دوه توکو (اجزاء) څخه جوړ شوی پيژني: نسـبي توکې چې د شـناخت تکامل سـره يوځای بدلون کوي او مطلق توکې چې هيڅکله بدلون سـره نه مخامخ کيږي. نسبي توکي د شناخت يو مخ دی او بل مخ يی مطلق توکې دی. لکه چې پورته وويل شـول نسـبي او مطلق يوبل څخه بيليدونکي ندي.

څرنګه چې ترمخه وويل شول احساس، ادراک او تصور د حسي شناخت د پړاو درې ګامونه دي. لکه چې وينو تصور حسـي شـناخت سره نږدې اړيکي

لــري او نشــو کولې هغه د شــناخت له (حســي او تعقلــي) مراحلو څخه جلا مرحله وشميرو.

احســاس هغــه ګام دی چې شــناخت د هغه په بنســټ پيل کېــږي. پرته له احســاس څخه هيڅ ډول شــناخت شــونی ندی. ځکه چې تعقلي مرحلې ته د رسيدلو لپاره د حسي شناخت مرحله د مقدمې په توګه لازمي او ضروري دی، که چېرې حسي مرحله تحقق پيدا نکړي تعقلي مرحله پيل کېدای نشي يعنې په مطلقه توګه شــناخت منځ ته نه راځي. د شــناخت غنا او محتوا احساس پورې تړلی دی. په هره کچه چې احســاس جامع او هر اړخيزه وي په هماغه کچه د انسان شناخت بډای او جامع محتوا لري.

احســاس له يوې خوا دغه خصوصيت لري چې د واقعي شــيانو خواص په مستقيمه توګه نه منعکس کوي په دې مانا چې د احساس او خارجي واقعيت تر منځ منځنۍ کړۍ (حلقه) نه پيدا کېږي او له بل پلوه دغه خصوصيت هميشــه د ټاکنــده مادي شــيانو ټاکلي خاصيتونو ته انعکاس ورکــوي. د بيلګې په توګه احســاس، رنګ پيدا کولی نشــي ځکه چې رنګ په خارجي واقعيت کې وجود نلري. له ذهن څخه په بهر کې او په ټاکنده شرايطو کې رنګ هميشه، مشخص شي پورې تړلی دی: د وينې سور رنګ، د پاڼې شين رنګ، د آسمان نيلي رنګاو داســې نور. همدا د مشــخصو شــيانو ټاکلی رنګ په مشــخصو شرايطو کې د احساس په واسطه انعکاس پيدا کوي.

د عصبي دســتګاه جوړښــت لکه د نورو حياتي دســتګاو په شــان په ټولو انسانانو کې يو ډول دی، له دې کبله د هغوی عمل هم د يوکس له بل کس سره توپير نه کوي. د بيلګې په توګه شــونې نده چې يو کس د ســور رنګ په مقابل سور احساس ولري او بل کس د هغه شين يا ژړ يا نيلي وويني، هر څوک هغه

غبر چې د دوه تختو له ټکر څخه راپورته کېږي د پیانو له آواز یې توپیر پیژني، هیڅوک د مالګې مزه چې تروه ده د ترخې مزې په ځای تېروتنه نه کوي او داسې نور. البته یو سور رنګ خوښوي او بل به ترینه ناخوښه او پیزاره وي، کېدای شي یو کس له مستې سندرې خوند واخلي او بل له ارامو نغمو څخه، دا چې یو انسان یو شی، یو رنګ یا یو آواز تر نورو غوره ګڼي یو رواني پدېده ده چې د عصبي دستګاه فزیولوژي پورې تړاو لري او شناخت پورې اړه نلري. زه په پوهې سره دغه رنګ چې سور دی نه خوښوم، زه په پوهې سره دغه آواز چې تیز دی تر هغه نرم آواز غوره ګڼم. په دې ډول احساس چې د انسان په عصبي دستګاه کې د مادي عواملو له مخامخ کېدو او ټکر څخه منځ ته راځي په ټولو انسانانو کې یو شان دی، ښکاره ده چې دغه مطلب دومره روښانه دی چې یادونه یې هم اړینه نده. خو د «اصول فلسفه» حاشیه لیکونکې په مادییونو یعنې مارکسیستانوتور پورې کوي چې ګویا هغوی په دې باور لري چې عصبي دستګاه په انسانانو کې یو بل سره توپیر لري، په پایله کې د احساس پدېده هم د یو انسان له بل انسان څخه توپیر کوي، په پایله کې شناخت پېژندونکي انسان پورې تړاو لري «چتې خبره ده» ځکه چې خبره په دې ډول ده:

«مادیون د فکر د مادي والي په هکله (!؟) دا چې شناخت او هر ادراک د اعصابو تر شا (ماوراء) عمل ندی، د هر شيء د پیژندلو انځور د پیژندونکي سري د اعصابو او مغز جوړښت پورې تړي او وایی چې د سړیانو د اعصابو جوړښت یوبل سره توپیر لري نو بیا د حقیقی شناختونو ډولونه هم د سړیانو په نسبت توپیر لرونکې دی» (لمړی ټوک، ۱۷۶ مخ)

که چېرې دغه «علامه» د آسماني کتاب، احادیثو او روآیاتو له تنګې دایرې څخه لږ څه بهر راوتلای وای او خپل «کېمیا اثره» پام یې د اناتومي او بافت

شناسـي کتاب ته اړولی وای حتماً متوجه کېده چې د عصبي دسـتګاه اناتومي دغه یا هغه کس پورې تړاو نلري، انسان پورې تړلې ده. عصبي اوبدنه (بافت) او د عصبـي حجـرو شـکل او بڼـه د یوکس له بل کس سـره توپیـر نکوي، د فیزیولوژي له لحاظه هم نشـو کولی د انسـانانو د عصبي دسـتګاو د عمل تر منځ توپیر منځ ته راوړو. مارکسـیزم چې په علم اتکاء لري نشـي کولی له دغه علمي حقایقو څخه سـترګې پټې کـړي. د اخوندانو یو عیب هم په همدې کې دی چـې د هغوی علم د مذهبي مسـائلو له بریـد څخه وړاندې نه ځي. هغوی نه پوهیږي چې د شلمې پیړۍ په نیمایی کې مختلف علوم په حیرانونکي ډول لوړې کچې ته ختلي، نشـو کولی سـر په ګریوان کې کېښته کړو او هغه په پام کې ونه نیسو. که د مسیحیت نړۍ ځان مجبور شمیري چې بشري پوهې او معارف سره اشنا شي تر څو وکولی شي د ضرورت په وخت علم سره په همغږۍ کې د یوې موضوع په هکله خپل نظر ووایی، خو زموږ اخوندان تر اوسـه په منځنۍ پیړۍ کې ژوند کوي. بنـایی دلیل همدا دی چې اسـلام له هیڅ پرمختګ سره جـوړ ندی ځکه چېدغه وچ او کاګره (متحجر) حکمونه او اصول په هر زمان او مکان کې د تل لپاره اعتبار لري. ښکاره ده چې په دې ډول لید سره نور نو د علم، پرمختګ او شناخت د تکامل لپاره ځای نه پاتې کېږي.

عېني واقعیت ته د انسـان کتل، د یو سـاده نندارہ چي کتل ندي، له همدې ځایه دی چې د انسـان احسـاس د یو حیوان (هغه حیوان چې مرکزي ارګانونه یی د اعصابو په سلسـله کې ځای لري) له احسـاس څخه جلا کوي. د انسـان احسـاس تر هر څه د مخه د ټولنې د تکامل پر بنسـټ ولاړ دی. انسـان عېني واقعیـت د عملـي فعالیـت او کار په څنګ کې ـ هغه کار چـې د دې واقعیت د بدلون لپاره یی سـرته رسـوي ـ احسـاس او درک کوي. انسـان یواځې یوه

بیولوژیکـي پدیــده نده یوه اجتماعي پدیده هم ده. د هغه حسـي غړي هم چې پــه ورتــه وخت کې د بیولوژیکـي تکامل ثمره ده، د ټولنـې د تکامل محصول هــم دی. انســان طبیعت ته بدلون ورکــوي او د دې بدلون پــه څنګ کې خپل ځان، له هغې ټولګې خپلو حسي غړو ته هم تکامل ورکوي. د اوسني موسیقي پــوه د اورېدلو حس دومره وســمن دی چې د غږونو پراخ ډولونه احســاس او درک کــړي په داســې حال کې که د یو حیــوان د اورېدلو حس هر څومره دقیق او ځیــرک هم وي د دې کار وســمن ندی. یو انځورګــر د دې وس لري چې د رنګونو پراخ ډولونه حتی د یو رنګ، د بیلګې په توګه د ســور رنګ تر منځ ډېر کوچني توپیر هم بېل کړي، پداسې حال کې چې د ګربت (عقاب) ډېرې تېزې سترګې د دې کار وس نلري. په دې اساس د نني انسان حسي غړي په ټولنه کې د انسان د تاریخي تکامل نتیجه ده، د ژوند له شرایطو سره او د عملي فعالیتونو ځانګړتیاو سره د هغه د جوختیدلو پایله ده.

او ورپســې د انســان احســاس د دغه ځانګړتیاو درلودونکې دی چې کولی شــي خېړنیــز آلات او ټوکي پخپل چوپړ کې ونیســي او د هغوی په مرســته له زیات څخه زیات د شــیانو په تل کې نفوذ وکړي، د هغوی ماهیت وپیژني. په واقعیت کې کولی شــو دغه وســائل او توکي د حسي غړو ادامه وشمیرو. آلات او توکي لکه میکروســکوب، الکتروني میکروسکوب، نجومي دوربین، نجومي رادیو، رادار او داســې نور حســي غړو ته امکان ورکوي تر څو هغه څه چې نیغ په نیغه احساس او ادراک ته نه راځي، احساس او درک کړي.

د انســان احساس بیا هم د دغه ځانګړتیاو درلودونکې دی چې ژبې او بیان ســره ملګری دی. انســان خپلې حســي اوتجربه شــوې پېژندنې په ژبه بیانوي او نــورو تــه یې لیږدوي او د بهرنــۍ نړۍ فردي انعکاس پــه اجتماعي پدیدې

بدلېږي. کوم چې په حیواناتو کې یې ساری نه لیدل کېږي.

په پای کې د انسان حسي شناخت له تعقل او تفکر سره ملګری دی او دغه دواړه (حسي شناخت او تعقلي شناخت) بل هر ډول شناخت د انسان په لاس کې ورکوي.

د انســان حواس تر پنځو زیات ندي، ســربېره پر دې حواس د محدودیتونو درلودونکي دي. داسې چې انسان یواځې د نور ټاکلي موجونه په سترګو لیدلی شــي لکــه د (۴/۰ او ۸/۰ مکرون تــر منځ) یا ټاکلي غږیــز موجونه د (۱۶ او ۱۵۰۰۰ هرتز موجونو تر منځ) اوریدلی شــي. له محدودیتونو ســره ســره چې دغه حواس یې لري بیا هم وســمن دي هغه څه چې د مادي نړۍ د شــناخت لپــاره اړین دي د انســان پــه واک کې ورکــړي. د بیلګې په توګه تېر یاد شــوي محدوویتونــه هیڅکله د دې مخه نه نیسـي، انســان هغه نــوري موجونه چې د نور تر شــا د لیدلو وړ دي یعنې ماوراء بنفش او ماوراء قرمز وپیژني او حتی د هغــوی د موج اوږدوالی اندازه کړي، همدا رنګه د اوریدلو د حس محدودیت د دې خنــډ ندی چې انســان ونشــي کولې غږیز موجونه کوم چــې له ۱۶ هرتز کوچنــي او تــر ۱۵۰۰۰ هرتــز لوړ دي وپېژنــي او تر ګټې لاندې یې ونېسـي. په ټولیزه توګه د بشــري پوهې او شــناخت پرمختګ د حســي غړو شــمېر یا د هغــوی زیاتوالي پورې تړاو نلري، بلکــې د اجتماعي تفکر او پراتیک د تکامل تابــع دی. کار اوتفکر زموږ پنځه ګونو حواســو ته د شــناخت لپاره نامحدوده امکانات برابروي. اسلامي ریالیزم د مادي نړۍ له شیانو او پدېدو پرته په نورو موجوداتــو اساســاً له مادي دنیا پرتــه په بلې دنیا باورمــن دي. خو پنځه ګوني حــواس نــه د دغــه موجوداتو او نه د مادي نړۍ تر شــا له بل نــړۍ څخه خبر ورکوي. همدا دی چې باید د بشر د پوهې برخلاف نور حواس اختراع کړو تر

څو د هغوی په مرسته دغه تخيلاتو ته توضيح ورکړو. اسلامي رياليزم د دې حقيقت له اعتراف وروسته چې«حسي ادراکات» تر «عقلي ادراکاتو» مقدم او وړاندې دي يا په بل عبارت عقلي ادراک پرته له حسي ادراک څخه شونی نـدی دغـه اعتراف، د بلې دنيا ټول بنسټونه او موجودات لـه بيخه نړوي ـ په ورته وخت کې زياتوي:

«البته نه ښايی له دې بدلونونو څخه داسې ګټه پورته کړو چې زموږ منظور له ځانګړو حواسو څخه همدغه ظاهره او باطنه (!؟) معمولي حواس دي کوم چې ټول يی پېژني، ځکه چې موږ په دې ځای کې د بشر د افرادو د عمومي حواسو پای ته د رسيدلو په لټه يا د دې بيان په لټه کې چې شونی دی د بشر ځينې افراد د معمولي حس سربېره بل حس هم لري نه يو. موږ يو کلي فارمول څخه پيروي کوو او هغه دا چې «هر حصولي علم تر شهودي حضوري علم پخوانی دی» که څه هم دغه شهودي حضوري علم د ظاهره يا باطنه معمولي حواسو د يو حس پواسطه چې ټول يی پېژني تر لاسه شي يا د بلې وسيلې په واسطه».

«له دې کبله دغه نظريه هغه القائات چې اولياؤ ته وحې او الهام او څرګندول کيږي نه نفې کوي ځکه هغه القائات هم له يو ډول شهوديه حضوريه علومو څخه سرچينه اخلي په بـل عبارت د معمولي حواسو تر شا د ماوراء حس پواسطه تر سره کيږي...»

د دې لپاره چې تخيلاتو ته علمي بڼه ورکړي دغه دروغ ورزياتوي:

«نوې ارواح پيژندنه هم چې په علمي او تجربوي ازمايښتونو ډېره لګوي د دې ډول پټ او مرموز حس امنا کوي» (۲ ټوک، ۲۸ مخ)

هغـه څه چې پـه دې مطلب يې زياتـوي معلوميږي هغـه «مرموز حس» د

«ناخـود آګاه ضمير» له زيربنديز پرته بل څه ندی. نوې ارواح پيژندنه د«اصول فلسفه» ليکنې په خلاف په پنځه ګونو حواسو بل هيڅ حس نه زياتوي پاتې لا دا چـې هغـه حس د «مرموز» هم وي! بې ګټې نـده چې ورزياته يې کړو، هغه موجودات چې په سـترګو نه ليدل کيږي (نامريې) دي لکه (پيريان، ښـاپيرۍ، ملايک او داسې نور) او هغه څه چې په«هغه دنيا» کې وعده ورکول کيږي، دا هغه شيان دي چې انسان (په دې دنيا) کې په خپلو پنځه ګونو حواسو ليدلي او پيدا کړي، په دې توپير چې دا د انسان د خيالونو جوړونه ده. انسان له موجوداتو څخه توکي را اخلي او هغه د خپلې بېرې او هوس په بنسـټ يوبل سـره ګډوي او خيالي موجودات ورڅخه جوړوي، پېرى يو بد شکلی او کرغېړن انسان دی چې خپلې سوم لرونکې پښې يې له سوم لرونکو څارويو څخه په پوور اخيستې او ښکرونه يې له ښکر لرونکو حيواناتو څخه، د اوبو ښاپېرۍ داسې يو موجود دی چې له سـر څخه تر سـينې پورې د يوې ښکلې او ښايسته ښځې بڼه لري او نور پاتې بدن يې د ماهي په شـان دي. ملايکه زياتره يوه ښـکلې او نيک سيرته انسان دی چې دوه وزرونه يې له مرغانو پوور کړي دي، براق وزر لرونکې آس دی، جنت شين او زړه راښونکې باغ دی چې ډېرې بيلګې يې«په دې دنيا» کې ليدلی شـو، د کوثر اوبه بې پايلې رڼې او صافې اوبه دي چې د جنت په ويالو کې ګبين او شـودو سـره څنګ په څنګ بهيږي او د مېوو ونې يې هماغه ونې دي چې ټول يې پېژني، جنت داسـې دروازې لري لکه زموږ د کورد دروازو په شـان چې دروازه سـاتونکي او کونجي لري او(کونجي يې لکه چې وروسته په ډاګه شوه پلاستيکي ده چې د پانګه والو په کارخانو کې جوړه شوې) او داسې نور. ښکاره ده تر څو انسان دغه نامريې موجودات او د هغوی اجزاءونه ويني شونې نده چې هغه جوړ کړي، تصور او انځور يې کړي.

## د شناخت تعقلي پړاو

د انسان شناخت په حسي پړاو کې نه پاتې کېږي او تعقلي پړاو ته لوړېږي. هغه وسيله چې حسي پړاو تعقلي پړاو ته اړوي د مغز فعاليت دی چې «انتزاع» نوميږي. انتزاع د ذهن خاص عمل دی او دا هغه ممکنه معلومات دي چې د حسي شناخت په نتيجه کې تر لاسه شوي، هغه څه چې بدلون منونکي ندي، مشترک دي، عام دي او ماهوي دي را اخلي او له دې لارې د شناخت ماهيت ته لاسرسی پيدا کوي. د انتزاع پروسه، په تصادفي اړيکو، شرايطو، او بې اهميته ځانګړتياو سترګې پټوي او هغه څه چې د يو شي يا پديدې لپاره ټاکونکي دي پيژني. د انتزاع ثمره د مفهوم (مفاهيمو) پيدايښت دی چې د موجوديت بڼه يې کلمات دي. د بيلګې په توګه د انسانانو په منځ کې راز راز کسان پيداکيږي چې د پوټکي رنګ، د سترګو او ويښتانو رنګ، تنه، قامت او څېره کې يوبل سره توپير لري، خو په ذات او وجه کې لکه مستقيم قامت، ژبه او بيان، د لاس غټه ګوته د نورو ګوتو په مقابل کې، د مغز کمي او کيفي زياتوالی او په پايله کې په بيساري توګه د زده کړې لپاره استعداد، د ابزارو پواسطه د ژوند د اړتياو برابرول يوبل سره مشترک وجوهات دي. له تصادفي او بدلون منونکو صفاتو څخه سترګې پټول او د تلپاتې او بدلون نه منونکو صفاتو په پام کې نيولو سره د انسان «مفهوم» منځ ته راځي. د «ګل» مفهوم هم په همدې ډول جوړيږي. موږ په يو شمير بوټو کې داسې ارګانونه پيدا کوو چې ګلپاڼې يې مختلف رنګونه او مختلف شکلونه او اندازې لري، د (څڼو او ښځه نوکو) شمير، اندازه او بڼه، د يو ارګان اوډل بل ارګان سره توپير لري. خو دغه ارګانونه ټول يو مشترک نوږی لري هغه د دغه ډله بوټو د مثل د توليد دستګاه

ده کوم چې نور بوتي هم د دغه شان دستګاه لرونکي دي. پدغه ځای کې هم که چېرې تصادفي او بدلون منونکي صفات په پام کې ونه نیسو او ثابت صفاتو ته توجه وکړو «مفهوم» لاس ته راوړو چې هغه د «کل» په کلمه نوموو. او ګل د ګل لرونکو بوټو د نسل زیاتولو دستګاه ده. په پورته یاد شوو بیلګو کې یا په نورو ورته مواردو کې، انسان په خپل ذهن کې د انتزاع له لارې ورته افراد یوبل سره پرتله کوي او له هغو څخه مشترک او ثابت نوږي (وجوهات) پیداکوي او د «مفهوم» په جوړولو کې ترینه کار اخلي. مفاهیم لکه کور، درمل، حیوان، کالي، ارزښت، فلز، غر، خوږ، سین له همدې لارې جوړیږي.

په دې ډول «مفهوم» د افرادو یا طبقاتو په یوې لیکه کې هغه څه په غیږ کې نیسي چې له یو فرد یا طبقې څخه په بل فرد یا طبقې کې ثابت پاتې کیږي، مانا یی دا ده چې ماهوي خصلت لري. په دې ډول کولې شو «مفهوم» دا رنګه تعریف کړو: مفهوم د هغه شي فکري ثبت او ضبط دی کوم چې ثابت او بدلون منونکي ندي.

سره له دې چې مفاهیم له دې لارې جوړیږي خو دا د مفهوم لاسته راوړنې یوائنۍ لار نده. کېدای شي «مفهوم» د دغه یا هغه شي یا د دغې یا هغې پدېدې د تجزیې او تحلیل له لارې هم تر لاسه شي. د «اصول فلسفه» حاشیه لیکونکي د دې ادعا برخلاف چې «مادیون(البته منظور یی مارکسیستان دي، ف) کوښښ کوي ټول تصورات او مفاهیم د حواسو له لارې توجیه کړي»(۲ ټوک، ۲۷ مخ) مارکسیستي فلسفه، د مفاهیمو جوړولو یوائینۍ لار د ثابتو او بدلون نه منونکو لټون پیژني. د بیلګې په توګه کولی شو د علمي سوسیالیزم «مفهوم» ته ګوته ونیسو چې د سوسیالیستي رژیمونو له پرتله کولو څخه منشا نه اخلي. د مارکس په زمانه کې دا ډول رژیمونو وجود نه درلود تر څو وکولی

شـــي د انتزاع له لارې د هغه ماهيت ترلاســـه کړي او لـــه هغه څخه د (علمي) سوسياليزم مفهوم جوړ کړي. «علمي سوسياليزم» د پانګه والې ټولنې د تحليل او تجزيې ناچاره پايله ده. حاشيه ليکونکي «علامه» لکه د خپلو نورو انډيوالانو په شـــان هيڅکله په دې باور نه درلود چې د يوې خبرې د قضاوت لپاره لمړی بايد د هغې په هکله «صحيح تصوير» په لاس کې ولرو.

ډېر عام مفاهيمد مقولاتو نوم اخلي او د علومو په هرې څانګې کې دا ډول مقولات تر ســـترګو کيږي. په ژوند پيژندنې (زيســـت شناسي) کې لکه سلول، کروموزم، ژن، اســـيدنوکليېک، DNA، وراثت، د مثل توليد، او په فزيک کې لکـــه کتله، انرژي، ميـــدان، په کيميا کې لکه کېميايی عنصـــر، اتم، ماليکول، په سياســـي اقتصاد کې لکه کالي، ارزښـــت، ســـود، کار او په همدې توګه په نورو علومو کې مقولات وجود لري. ډېرعام مفاهيم هغه دياليکتيکي مادي مقولات دي لکه ماده، حرکت، تضاد، ماهيت، ضرورت او داســـې نور چې د طبيعت، ټولنې او تفکر عام ترين خواص منعکس کوي.

«مفهـــوم» د انتـــزاع او تعميم په لار کې لومړني ګام دی. داســـې کلمه چې د مفهوم د موجوديت بڼه ده، د يو مشـــخص شـــي يا پديدې بيان کوونکې ندی، بلکـــې ډېر شـــيان، عينې واقعيتونـــه او د هغوی اړيکي په څنګ کې نيســـي. نن انســـان په فرهنګي برخه کې ګڼ شـــمير تعميماتو ســـره ښـــکيل شوی، نه ښايی داسې انګېرنه وشي چې انسان هميشه د خپل ژوند د تاريخ په ټولو پړاونو کې د انتـــزاع او تعميـــم د ځواک درلودونکې وو. په لمړنيو انســـانانو کې حتی هغه وخت چې انسان تازه خبرې پيل کړې وې د انتزاع او تعميم استعداد يې خورا کمـــزوری وو. همـــدا نن ورځ د نړۍ د مختلفو ســـيمو په وروســـته پاتې قبائلو کې د انتزاع او تعميم پديده ډېره لږ تر ســـترګو کيږي، دا په خپله هغه اوږده او

پیچلې لار په ګوته کوي کومه چې د لومړني انسان شعور د نني انسان شعور پورې نښلولې ده.

«مفهوم» د تعقلي شناخت لمړنی ګام دی. کله چې وايو «انسان حيوان دی» يا «د مثلث سطحه مساوي ده د قاعدې ضرب د ارتفاع له نيمايی سره» يا

معشوق تو همسايه ديوار به ديواردر باديه سرگشته شما در چه هواييد؟

يا «شنه بوټي د لمر نوراني انرژي په کېميايي انرژي بدلوي» او داسې نور موږ په هر ځای کې مفاهيمو سره سروکار لرو. «اصول فلسفه و روش رياليزم» يوائي هغه وخت «مفهوم» په سمه توګه توضيح کوي کله چې د انتزاع په هکله خبرې کوي.

«وروسته له هغه چې ذهن څو مشابه شيان درک کړي هغه يوبل سره پرتله کوي او د هر يو ځانګړي صفات د هغوی له مشترکه صفاتو څخه جلا کوي بيا له دغه مشترکه صفاتو څخه يو کلي مفهوم جوړوي کوم چې په ټولو کثيره افرادو صدق کوي. لکه د انسان مفهوم چې له زيد او عمر او نورو څخه انتزاع شويدی»(۱ ټوک، ۴۲ مخ)[۲۶۴]

خو اساساً د مفهوم لپاره ځانګړتيا نه مني او په مختلفو ځايونو کې هغه په مختلفو کلماتو يادوي. کله د «مفهوم» په ځای د تصور کلمه ټاکي او کله تصور او مفهوم دواړه څنګ په څنګ راوړي. په بل ځای کې مفهوم ته «قضيه» وايی (۱۴۰، مخ). او په هغه ځای کې چې «د انسان له ادراکاتو» خبرې کېږي مفهومد «تعقل» يا «کلي تصور» په ځای کارول کېږي. (۸۹، مخ) او کله چې د دوه مفاهيمو تر منځ اړيکه په نظر کې نيول کېږي مفهوم ته د «کل» نوم ورکول کېږي:

«له دې کبله چې هر کل ډېر افراد په څنګ کې نيسي که چېرې هغه يو بل کل

سره چې هغه هم د يو شمير افرادو درلودونکې دی پرتله کړو له لاندې څلورو نسبتونو څخه يو په لاس راځي» («علوم اسلامي، منطق و فلسفه»، **۳۴**، مخ) په دې ډول لوستونکې څخه د «مفهوم» په درک کولو کې چې د تعقلي شناخت لمړنی ګام دی لار ورکوي.

څرنګه چې د «مفهوم» له تعريف څخه معلوميږي، د يوې محتوا او ظرفيت (ګنجايش) درلودونکې دی. ظرفيت، د هغه افرادو مجموعه ده چې مفهوم په هغوی باندې اطلاق کيږي لکه د انسان مفهوم، ټول انسانان، د سيارې مفهوم، ټولې سيارې، د جسم مفهوم، ټول اجسام په څنګ کې نيسي. محتوا هغه صفت يا صفتونه دي چې په مفهوم کې د ننه په ټولو افرادو کې ثابت او نه بدليدونکي دي، لکه بيسوادي چې د هغه ټولو انسانانو مفهوم احتوا کوي کوم چې په ليک او لوست نه پوهيږي، د«جسم» د مفهوم محتوا هر ډول مادي جوهر ته اطلاق کيږي که هغه ژوندي دي يا مړه دي، د «سيارې» د مفهوم محتوا هغه آسماني اجـرام دي چې خپله نـور نلري د لمر چاپيره يا د نورو سـتورو چاپيره ګرځي. ګنجايش او محتوا د مفهوم دوه نه بيليدونکي مخونه دي. مفهوم پرته له محتوا څخه دومره تشـه کلمـه ده لکه مفهوم پرته له ګنجايش څخه. بيا هم اسـلامي رياليزم يواځې ګنجايش ته د مفهوم په سترګه ګوري او په محتوا سترګې پټوي. هغه څه چې په مفهوم کې اساسي دی هغه محتوا ده.

دا چـې مفهوم عيني واقعيت منعکس کوي د عينـي محتوا درلودونکې هم دی که څه هم شکل يې ذهني دی، په دې ډول مفهوم د عيني واقعيت يو ذهني شـکل دی. مارکسيستي فلســفه چې ذهني نړۍ د عيني نړۍ انعکاس پيژني له دې پرته بل څه نه وايي. اسلامي رياليزم چې مارکسيستان ساده خياله بولي، په دې باور دي چې «ادراکي مســائلو کې له وينبتانو څخه په زرګونه ځله نازکه او

باریکه مسائل وجود لري» بنایی همداسې وي خو دغه حقیقت په خپل قوت باقي دی چې د انسان د تفکر محتوا عېني خصلت لري، په بل عبارت ذهني نړۍ د عېني نړۍ انعکاس دی. په دې منځ کې مارکسیستي فلسفه غواړي د یو ټکي یادونه وکړي هغه دا چې مفهوم او په کلي توګه تفکر د عېني محتوا درلودونکې دی.

د مفهوم بنیاد او سرچینه عېني واقعیت دی، عېني واقعیت پرله پسې د بدلون او تحول په حال کې دی. په دې اساس مفهوم چي خپله په عېني واقعیت ولاړ دی نشي کولی ثابت پاتې شي او بدلون ونه کړي او که چېرې داسې نوي د عېني واقعیت انعکاس ندی. د مفاهیمو بدلون دوه خواؤ ته حرکت کوي یا موجوده مفاهیم بشپړیږي او دقیق کیږي او محتوا یی بډای کیږي او د شناخت کچه یی تر انتزاع لوړیږي یا نوي او تازه مفاهیم منځ ته راځي او یو مفهوم بل نوی مفهوم زیږوي د بیلګې په توګه:

د لرغوني دوران د ماتریالیستانو په آند اتم د ویش وړ زره نوه، دغه فرضیه چې مادي نړۍ په مختلفو بڼو، ابعادو، درونوالي اودائمي حرکت څخه جوړ شوی دی. منل شوې فرضیه وه، تخیلي اړخ یی درلود او په هیڅ علمي بنسټ ولاړه نه وه، انسان په دقیقه توګه له اتم څخه پیژاندنه نه درلوده. دغه فرضیه د منځنۍ پیړۍ په ټولو پړاونو کې په دې علت چې مذهب سره یی اړخ نه لګاوه له پامه لویدلې وه. په ۱۷ او ۱۸ پیړیو کې چې د کېمیا علومو پرمختګ او تکامل وکړ بیاځلي د اتم خبره په ژبه جاري شوه او ثابته شوه چې کولی شو کېمیاوي عناصر په کوچنیو برخو وویشو. خو دغه ویش تر بی نهایت وړاندې نه ځي او په ذراتو پای ته رسیږي چې نور د ویش وړتیا نلري (اتم) خو د کېمیایی عنصر په توګه خپل خواص په بشپړه توګه ځان سره ساتي. په

دې ډول د اتم په هکله تازه شناخت تر لاسه شو هغه دا چې «اتم د کېميايي عنصر کوچني ذره ده چې د ترکيب قابليت لري». هماغه ډول چې د منځني پيړيو ماترياليستانو باور درلود د کېميا علم رازده کړه چې شيان له اتم څخه جوړ شويدي او اتم د کېميايي عنصر ډېره کوچني ذره ده. د اتم دغه نوې محتوا حقيقت دی چې په خپل قوت باقي پاتې دی او باقي به پاتې وي.

د کېميا د علم په چوکاټ کې د اتم تجزيه او ويش شونی نه وو. دغه مسئله د فزيک علم حل کړه. دغه شناخت د ۱۹ پېړۍ په پای او د ۲۰ پېړۍ په پيل کې د فزيک علم تر لاسه کړ چې اتم د ويش وړ دی او هر اتم له دوه برخو جوړيږي. يوه برخه يې هسته ده چې د پروتون په نوم مثبت الکتريکي چارچ لري او بله برخه يې الکترون دی چې منفي چارچ لري او د هستې په چاپېر مدار کې څرخي. وروستنيو څېړنو په هسته کې نور ذرات د نوترون او نوترينو په نوم ثابت کړل. وروسته بيا له اتم څخه نورې ډيرې کوچني ذرې بهر تر لاسه شوې، په دې ډول له اتم څخه د انسان شناخت نور هم پراخ، ژور او دقيق وګرځيد، د اتم مفهوم بدل‌ای او تازه محتوا وموندله او هغه ستر ځواک چې په هر اتم کې پروت دی کولی شو د انسان په چوپړ کې ورڅخه کار واخلو. آيا همداسې نده چې د اتم مفهوم د پيړيو په لړۍ کې بدلونونو سره مخامخ شوی؟ دغه بدلونونو چې د علم او فلسفې تاريخ يې په ګوته کوي څرنګه کولی شو انکار ترې وکړو؟ آيا د اتم د مفهوم بدلون څخه انکار کول د واقعيت خلاف ندی؟ لکه چې وويل شول «اصول فلسفه و روش رياليزم» مفهوم په ګنجايش کې خلاصه کوي او هغه هم يواځې نورو مفاهيمو سره په اړيکه کې توضيح کوي او د مفهوم محتوا ته توجه نکوي. ښکاره ده چې د مفهوم بدلون ورله د درک وړ ندی.

د وجــود مقولــه تر بحث لاندې نیســو: له لرغوني دوران څخه تر اوســه د فلســفې په تاریخ کې دغې مقولې ســتر نقش لوبولی دی او په ورته وخت کې یــې راز راز محتوا درلودلې ده. د پارمنیــدس (Parmenides) لپاره «وجود» د مادي نړۍ جوهر دی چې تلپاتې (جاودان)، بې حرکته، لا بدلون او تقســیم ناپذیــر دی. افلاطــون جاوداني «مثل» حقیقي «وجــود» مني چې د مادي نړۍ شیان یوازې د هغوی سیوري دي. ارسطو «وجود» په دې مانا پېژني: «د وجود تر نوم لاندې، هغه شیان پېژندل کېږي چې ماهیت نومیږي» د توماس اکویېني لپاره وجود نه یوازې «مادي» شــی دی خــو تر هر څه د مخه وجود خداوندي دی چې د ټولو وجودونو بنســټ دی. د وجود د ترتیب په سلســله کې د خدای وجود په لومړي ســر کې ځای لري چې نورو ټولو وجودونو ته هســتي بخښي. فویربــاخ وجود د مادي وجــود په مانا، ماده عېني واقعیت ګڼي. مارکسیســتي فلسفه هم د «وجود» مقولې لپاره همدغه مانا مني که څه هم د اصول له مخې د «وجود» د مقولې کارولو څخه ډډه کوي ځکه چې دوه اړخیزه ده هم مادي په څنګ کې نیسي او هم ایده اي. لکه چې په لنډه توګه وویل شول د وجود مقوله، د فلسفې په تاریخ کې ثابته پاتې شوې نده اوپرله پسې یې بدلون کړیدی.

د «نور» مقوله په تیر وخت کې عبارت وه له الکترو مقناطیسي موجونو څخه چې په ټاکلي سرعت خلاء کې خپرېږي، هیر مو نشي چې موج د یوځای کېدو (پیوستګي) او مداومت نښه ده. وروستنیو څېړنو وښودله چې «نور» د ذرې په بڼه خپرېږي، چې هغو ته یې د «فوتون» نوم ورکړ. ذره د شکېدلو(ګسســتګي) او غوڅېدلــو (انقطاع) نښــه ده. دوه متضــاد محتوا په یو مفهــوم (نور) کې. د کوانتــا میخانیــک پر اســاس موج او ذره یو د بل تکمیــل کوونکي دي، ټول لومړني کوچني ذرات لکه فوتون، الکترون او داسې نور هم موجي خصلت لري

هــم ذره اي. آيا نور څخه زمــوږ د نن ورځې مفهوم هماغه د ۱۸ پېړۍ مفهوم دى؟

په اوســنيو حالاتو کې موږ هغه مفاهيمو ســره سروکار لرو چې محتوا يې وار په وار لا پسې دقيق، کامل اوبډايه کيږي. په ځينو وختونو کې خپله مفاهيم يو په بل بدليږي او يو مفهوم بل مفهوم زيږوي. ژوندي او مړه مفاهيم، حيوان او انســان، کتلــه او انرژي او داســې نور. کله چې وايو انســان حيواني منشــاء لري په دې مانا ده چې حيوان دانســان په بڼه بدلون کړی او د (حيوان) مفهوم د(انســان) مفهوم زيږولى دی، د «ژونديــو» د بدلون خبره په «ناژوندو» باندې پرتــه د «نا ژوندو» د مفهوم بدلون د «ژونديو» له مفهوم پرته بل څه ندي، کله چې وايو مښــل حرارت منځ ته راوړي په واقع کې مو منلې ده چې د «مښــلو» مفهــوم د «حرارت» مفهوم پيدا کړی، په بنســټيزه توګــه کله چې موږ د نړۍ د شــيانو او پديدو تړلتيا يوبل ســره منو او «اصول فلســفه» هــم ګويا دغه اصل مني په واقعيت کې د مفاهيمو تر منځ تړلتيا او يوبل څخه زيږيدل مو تصديق کړيدي. مارکسيستي فلسفه حقيقت بيانوي او رازده کوي چې:

«انســاني مفاهيم، بې حرکته ندي بلکې هميشــه د حرکت په حال کې دي، يو په بل بدليږي، يوبل زيږوي. که پرته له دې بل څه وي. هغوی يون لرونکې ژوند نه منعکس کوي» (لــنين)

اســلامي رياليزم په دواړه لاسونو صوري منطق پورې نښتي دي د مفاهيمو بدلــون او بدلون څخه انکار کوي او په انکار کولو ســره په واقعيتونو ســترګې پټوي. «اصول فلســفه» د مفاهيمو د بدلون نفې کولو لپاره دوه ټکي د لاســوند په توګه وړاندې کوي:

«لمــړی هغــه څه چــې د مفاهيمو بدلون بولــي هغه د مالوماتــو پراختيا او

ارتېدل دي چې ګویا په غلطي سره د مفاهیمو د بدلون په ځای نومول کېږي. «اصول فلسفه» په تفصیل سره د علومو «عرضي» او «طولي» تکامل څخه خبرې کوي او په پای کې دې پایلې ته رسېږي چې د علومو د تکاملتر آغېزې لاندې نوي او تازه حقایق په پخوانیو حقایقو زیاتیږي، خو پخواني حقایق هماغه شان ثابت او بدلون نه منونکي باقي پاتې کېږي او په دې ډول هغه مفهوم چې حقیقت راپه ګوته کوي بدلون نه مني.»(۱،ټوک ۱۴۱ـ ۱۴۳ مخ).

کله چې موږ د «نور» مفهوم نږدې شوي الکترومقناطیسي موجونه پیژنو شک نشته چې حقیقت بیانوو او کله چې «نور» د پرې شوو ذراتو ګډوله پیدا کوو بیا هم حقیقت تر لاسه کوو چې په لومړني حقیقت ور زیات شوی دی. خو اسلامي ریالیزم قصداً په دغه حقیقت سترګې پټوي او وایی چې دغه دواړه حقیقتونه دواړه د «نور» تر مفهوم لاندې ځای لري. لمړنی حقیقت په خپل قوت باقي دی او دویم حقیقت هم پر هغه زیات شوی. خو دغه دواړه حقایق، د «نور» مفهوم جوړوي. موږ مخکې نور نږدې شوي الکترومقناطیسي موجونه وپیژندل او اوس هم هغه نږدې شوي موجونه او هم پرې شوي ذرات پیژنو. نو بیا د «نور» مفهوم بدلون کړی، چې تر پخوا زیات دقیق او کامل شوی دی. دا چې د انسان مالومات پراختیا مومي او علوم پرله پسې نوي او تازه حقایق کشفوي ټول په دې خبرې باور لري خو خبره د تازه حقایقو په سر نده، خبره د مفهوم په سر ده. په هماغه وخت کې چې نور د نږدې شوو الکترومقناطیسي موجونو په توګه کشف شو او نور حقایق هم په مختلفو علومو کې بیان شول. وروسته تر هغه هم د علومو تکامل پر ځای تم نشو، حتی د انسان مالومات په خپله د فزیک په علم کې پراختیا وموندله. خو هیڅکله دغه حقایقو د نور تعریف بشپړ نکړ. یواځې په شلمې (۲۰) پېړۍ کې د نور مفهوم بدلون وموند

او بشـپړ شـو. د نور ذره اي خصلت حقیقت دی چې دهغه په موجي خصلت ورزیـات شـو. د نور ذره اي خصلت د نور د مفهوم پــه هکله یو تازه حقیقت دی نه بل تازه حقیقت. نوي فزیک وښودله چې اتم د ویښن وړ دی او د انسان درک یــی (ښــه توجه وکړئ) د اتم پــه هکله دقیق کړ او نــوي فزیک ډېر نور حقایق تر لاســه کړل چې له هیڅ اړخه اتم ســره تړاو نلري او هیڅ بدلون یی پــه اتم کې راوړی ندی او تازه حقیقت یی د کېمیایی اتم په حقیقت کې زیات کړی ندی. «اصول فلســفه» د حقیقــت د بدلون نه منلو د اثبات لپاره په کراتو مراتو دغه بیلګې وړاندې کوي چې «ارسطو د افلاطون شاګرد وو او دی».دا یو مســلم او بدلون نه منونکې حقیقت دی. مارکسیســتان د دې حقیقت د بدلون پــه نه منلو کي هیڅ شــک ته ځــای نه پرېږدي. د دې حقیقت په بیانولو ســره موږ یواځې د ارســطو په هکله لمړنی مالومات تر لاســه کوو. دا چې ارسطو د افلاطون شــاګرد دی په هیڅ ډول د ارســطو د شخصیت ښکارندویی نه کوي. په یقین سره افلاطون ډېر شاګردان درلودل چې له هغوي څخه هیڅ نوم پاتې ندی. د څېړنې ځای ته راګرځواو پیدا کوو چې افلاطون ارسطو ته د «مدرسې عقــل» لقب ورکــړی وو. دغه نوې حقیقــت څرګندوي چې ارســطو یو نابغه شاګرد وو. خپلو څېړنو ته دوام ورکوو او پیدا کوو چې ارسطو د صوري منطق بنســټ ایښــودنکې او د لرغونې نړۍ ســتر حکیم او فیلسوف دی. په دې ډول د څېړنو په بهیر کې وار په وار د ارســطو په هکله بشــپړ او کامل شــناخت ته لاسرسی پیدا کوو چې د هغه شاګردي د افلاطون په وړاندی د دې ښکارندویی نه کوي. د ارسطو په هکله د مالوماتو په زیاتیدو سره زموږ شناخت د دې ستر انسان په هکله بدلون کړی او د کمال په لوري تللی دی. یا که وویل شي استاد مطهري د «اصول فلســفه» حاشــیه لیکونکې طالب وو، دغه حقیقت هیڅکله

د دې جنــاب لــه مقام، مرتبې او برخلیک څخه شــناخت پــه لاس نه راکوي. ښــایی که موږ خپل مالومات ته د ټولو طالبانو او د هغوی د ټولو اســتادانو او ټولو «علامه» ګڼو او «بحرالعلومانو» په هکله پراختیا ورکړو سره له دې بیا هم زموږ شناخت له مطهري څخه نیمګړی دی که څه هم د هغه طالب توب یو نه انکار منونکې حقیقت دی. هغوی ته د مالوماتو د پراختیا نکل هغه هم په دې کلي بیان ســره یواځې د مفاهیمو د بدلون او بدلون د نفې کولو لپاره یوه حیله او بهانه ده. بیا هم د مفاهیمو د بدلون څخه د انکار لپاره دغه ټکې د لاســوند پــه توګه وړاندې کوي چې بدلون او تحول د مادې خصوصیات دي او مفاهیم مادي ندي. له دې کبله په هغوی کې بدلون او تحول منځ ته نه راځي:

«د تصوراتــو لپاره دغه خاصیت له هغه ځایه تر لاســه کېږي چې تصورات مادي خاصیت نلري او که چېرې تصورات مادي وای دهر شي تصور به د بل هر شي تصور سره یو شان کېدی، یعنې له هیڅ شي څخه به موږ ټاکلی تصور نــه درلود. مادیون چې د حرکت د عمومــي قانون د اصل له مخې افکار هم په دې قانــون کــې رانغاړي او دغــه اصل چې ادراکات همــد چاپیریال تر اغیزې لانــدې خپــل ماهیت ته بدلون ورکــوي. بله چاره نلري چې لــه دغه متافزیکي اصــل څخه انکاروکــړي»(۲ ټوک، ۱۲۳ مخ).(منظــور د «عینیت» اصل یا د «هویت» اصل دی چې لاندې توضیح کېږي)

دا چې مفهوم ماده نده هیڅ خبره نده. خو دا چې مفهوم مادي ندی د بدلون خاصیــت نلــري بې مانا او پوچــه خبره ده. د بازتاب او غبرګــون مفهوم عیني واقعیــت دی او عیني واقعیت مبدلــون او متحول دی. د هغوی غبرګون هم له ناچــارې ثابت پاتې کېدای نشــي. د A په نوم یو موجود لــرو او له هغه څخه د واقــع مطابق ادراک. یعنې د A حقیقت مو ترلاســه کړیــدی. خو د A حقیقت

همیشــه د بدلــون په حال کې دی «او دوه ګړی په یــو حال باقي نه پاتې کېږي» (۱، تـوک، ۱۳۸ مــخ) که A د A په لحظه کې پاتــې وي او موږ له هغه څخه د واقــع مطابــق ادراک لرو بیا نو په بله لحظه کــې A ندی او په پایله کې زموږ ادراک لــه دغه دوه وجودو څخه بدلون کړی A\ زبر بل ادراک دی چې زموږ ادراک باید له ناچارې A ســره توپیر ولري. دا صحیح او منطقي پایله ده چې تر لاسه کولې یې شو. کولی شو په اسلامي ریالیزم نیوکه وکړو چې د A- زبر مفهوم یو نوی مفهوم دی او دغه نوی مفهوم په هیڅ ډول دا نه نفې کوي چې د A مفهوم ثابت دی. نوی مفهومد دې ښکارندوی ندی چې د A مفهوم بدلون موندلی دی. لږ څه سوچ وکړو نوی مفهوم هغه وخت پیدا کیږي چې Aبدلون وکــړي او کلــه چې د A مفهوم ثابت وي په مطلقه توګه په A کې بدلون نشــي راتللی تر څو وکولی شي نوی مفهوم څرګند کړي، د مفهوم ثابتوالی او د اصل بدلون یو د بل نفې کوونکي دي. ولې؟ ځکه چې مفهوم د عیني واقعیت ذهني انعکاس دی. که مفهوم پرله پسې ثابت وي باید په ذهن کې د هغه واقعیت او په پایله کې په خپله همدغه واقعیت ثابت پاتې شي. پایله دا چې د مفهوم ورته والی (یکســان بودن) د واقعیت په ثبات او نه بدلون ګواهي ورکوي، کوم شــی چې اســلامي ریالیــزم هغه صحیح نه بولي. په دې توګــه د مفهوم د ورته والي اصــل، هغه ډول چې صوري منطق یې بیانوي د اصل بدلون نفې کوونکې دی او دا چــې د تحول اصل منل شــوی حقیقت دی مفهوم هم نشــي کولی ثابت او یوشــان پاتې شــي. د متافیزیک د اصل پر بنسټ ورته والی (Identite) یا د «اصول فلســفه» په اصطلاح اصل عینیت ۱۶ یا اصل هویت چې اســلامي ریالیزم په هغه اســتناد کوي چې هر مفهوم په خپله خپل دی او پرله پســې یو شــان پاتې کیږي. هغه څــه چې بدلون کوي د دغو مفاهیمــو تصدیق کوونکي

دي، هغه دا چې د نړۍ شیان او پدیدې مادي دي.

«هغـه څـه چې متافیزیـک یې مني د ورتـه والي په هکله ده. پـه دې هکله چې هرشـی په خپله خپله دی دمفاهیمو په هکله ذهني تصورات دی نه اعیان خارجي»(۲، ټوک، ۱۲۳ مخ)

اسـلامي ریالیزم دغه اصل منل شوی او سـم بولي. پداسې حال کې چې نه یوازې مارکسیسـتان بلکې په صوري منطق باورلرونکي هم دغه اصل لکه چې وویل شـول نه مني او رټي یې. ځکه کومه پایله چې له دې اصل څخه لاس ته راځـي هماغه د بدلـون او حرکت او تکامل نفې کول دي. اسـلامي ریالیزم په ټینګار سـره په تاسو مني چې هغوی د بدلون اصل مني، مادي شیان او پدیدې تـل د بدلون په حال کـې دي خو یوازې مفاهیـم او ادراکات له دې امر څخه مسـتثنی دي. د «اصول فلسـفه» لیکونکي دغې خپلې خبرې ته پام نه کوي او هیڅکله یې سـوچ هـم ندی کړی که چیـرې مفاهیـم او ادراکات ثابت او یو شـان پاتې شـي، «اعیان خارجي» هم لـه ناچارې ثابت او یو شـان باقي پاتې کیږي. هیڅکله یې سوچ ندی کړی چې د مفاهیمو ثبات او یو شان پاتېوالی د خارجي اعیان ثبات او ورته والی له ځان سره لري. کله چې مارکسیستان وایی متافیزیک ټول شـیان د چوپتیا او رکود په حال او په پایله کې یو بل څخه جلا او یوبـل څخه بې تړاوه ویني، یواځـې حقیقت وایی. د ورته والي اصل (البته هغه ډول چې صوري منطق یې بحث کوي) د دی حقیقت ښکارندوي دی.

د ورته والي (همانندي) اصل څه شی دی او څه ډول د ډیالکټیک منطق دا ډول توضیح کوي:

د ورته والي (همانندي) اصل وایی: دوه شیان یا دوه مفاهیم A او B یواځې هغه وخت یوبل ته ورته دي چې یو له هغوی څخه چې کوم خصوصیتونه لري

پــه عیــن حال کې هماغــه خصوصیتونه په بل کې هم موجــود وي او بالعکس هغه په دې ډول څرګند کړي چې A\\\ B او \\\ AB (درې موازي کرښې د ورته والي نښــې دي). دا منل شــویده، دوه شیان هغه وخت بشپړ ورته والی لاس تــه راوړي چــې د دواړو ټــول صفات او خواص یو په بل کې ادغام شــي یعني خپله شی په خپله وي. ورته والی هغه وخت بشپړ دی کله چې شی خپله په خپله وي د بیلګې په توګه هر انســان خپل ځان ســره بشپړ ورته والی لري. د مســاوي دغه نښــه A= A بشپړورته والی په ګوته کوي چې دې ډول ورته والی تــه مجرد ورته والی (انتزاعي) ویل کېــږي. صوري منطق په همدې ورته والي ډېره لګوي. دغه ورته والی هیڅکله په واقعیت کې وجود نلري. په واقعیت کې هیڅ دا دول دوه ورته شــیان پیدا کولی نشــوچې په ټولو برخو کې یوبل ســره مطابقــت او نږدېوالی ولري. غبرګوني (دوقلویی) چــې له یوې واحدې نطفې منځ ته راځي ځینې وخت دومره ســره ورته وي چې تشــخیص یی یوبل څخه ډېر زیات ســتونزمن وي. خو ســره له دې بیا هم په هغوی کې بشــپړ مطابقت ناشــونی دی. «اصول فلســفه» د ډیالکټیک په منطــق را ځغلي او وایي: «هیڅ شی په خپله خپله ندی او ټول شیان خپله پرته له خپله دي. که ووایو چې «الف الف دی او پرته له الف څخه بل څه ندی ناسمه دی» (۲ ټوک، ۱۲۲ مخ)

دا ناســمه نیوکــه ده ځکه که چېــرې د واقعیاتو په نړۍ کې هر شــی خپله په خپلــه وي هغــه به تل خپله پاتې وي. که الف الف وي. الف به تل الف وي او په پایله کې به د نړۍ ټول شــیان ســخت، ثابت او ساکن پاتې وي چې دا عیني واقعیت ســره په فاحش تضاد کې لویږي. د ادراکاتو په نړۍ کې هم وضعیت په همدې ډول دی. که چېرې مفاهیم یا ادراکات ثابت پاتې شــي بیا هم کومه پایله چې له هغه څخه تر لاســه کیږي د نړۍ د پدیدو او شــیانو ثبات دی. کله

چې د «الف تصدیق الف دی او له الف څخه پرته بل څه ندی» مارکسیستان حق لري چې دا ناسم وګڼي. کله چې موږ په بهرني عالم د A \\\ A ورته والي سره سروکار نلرو د مفاهیمو او ادراکاتو په عالم کې هم چې د بهرني نړۍ انعکاس دی، د دې ډول ورته والي په وجود باور درلودل هم پوچ او باطل خیال ګڼي خو دا تر اوسه په دې مانا ندی چې د ورته والي اصل نفې کیږي. واقعي ورته والی هماغه د دوه مختلفو شیانو یا پدېدو (A///A)ورته والی دی، لکه د دوه انساني وګړو ورته والی، لکه د دوه چنارونو ونی او داسې نور چې د مشخص ورته والي په نوم یادیږي. دوه انساني وګړي، دوه د چنارو ونې چې په عین حال کې یو بل ته ورته دي ناورته هم دي. لکه چې په واقعیت کې ترسترګو کیږي، ورته والي همیشه ناورته والي سره ملګری دی او د ورته والي په اصل کې باید دواړه غاړې په پام کې ونیول شي او که داسې ونشي واقعیت سم انعکاس نه پیدا کوي. A او B په یوې اړیکې کې ورته دي او په بلې اړیکې کې ناورته دي. په واقعیت کې مشخص ورته والی ناورته والی دی. صوري منطق چې د امتناع تناقض په اصل باورمن دی دغه دوه غاړې نه ویني د ورته والي اړخ A=A یعنې مجرد ورته والي ته توجه لري چې یوائې د مشخص ورته والي یو مخ دی.

د دیالکتیک منطق نه د ورته والي اصل له پام څخه غورځوي او نه حتی مجرد ورته والی نفې کوي بلکې دغه دواړو ته د دیالکتیک د دود له مخې ګوري. ورته والی د شیانو او پدېدو د کیفیت د ټاکنې پایله ده، کیفي ټاکنې څخه منظور، ټول هغه صفات او خصوصیات دي چې شیانو او پدېدو ته نسبي ثبات (هویت) وربخښي. او هغوی یوبل څخه بیلوي، همدغه کیفي ټاکنې دي چې د ډیر یا لږ وخت په تیریدو سره د دې موجب ګرځي چې شی

يــا پديــده بيا هم خپله خپل پاتې وي لکه د دمانــدو څوکه، چې دوماندو څوکه ده، د کرج ســيند، د کرج سيند ده، شاهنشاهي رژيم، شاهنشاهي رژيم دی او خمېني، خمېني دی. همدغه کېفي ټاکنې د دې موجب کېږي چې شی يا پدېده ســره له بدلونونــو چې په هغوی کې پيښــيږي په خپله خپــل وي، هدغه کېفي ټاکنــې دي چې په مفاهيمو او مجرد ورته والي کې انعکاس پيدا کوي. همدغه کېفــي ټاکنې دي چــې «هر مفهوم په ذهن کې له بل مفهوم څخه «منعزل» وي او د هر شــي تصور پرته له بل تصور څخه وي، «د ژوند تصور د مرګ تصور څخه بيل دی او د سپين والي تصور له جسم څخه...»

(۲، ټوک، ۱۲۳ مخ)خو دغه ثبات نسبي دی نه مطلق. که چېرې دغه کېفي ټاکنې موقتي نه وای او نســبي ثبات وجود نــه درلودای په طبيعت او ټولنه کې به د شــيانو او پدېدو تنوع او په تفکر کې به د هغوی تړاو يو بل ســره هيڅکله هم منځ ته نه راتلای.

ديالکتيکي تفکر نه يوازې بدلون او تکامل ويني کېفي غوره والی او نســبي ثبات هم له نظره نه غورځوي. په هماغه حال کې چې شــيان او پدېدې بدلون کــوي نســبي ثبات څخه هم برخــه ور دي. صوري منطق کېفــي غوره‌والی او نسبي ثبات مطلق کوي او د دې اصل له مخې بدلون د قرباني ځای ته ليږدوي. البته اســلامي رياليزم ظاهراً په مادي نړۍ کې بدلون او تکامل مني خو په واقع کې د مفاهيمو په تل ترتله پاتې کېدو او ثبات د باور له مخې هغه نفې کوي.

# د حقيقت په هکله

حقيقت څه دي؟ د شــناخت په اړه، ژر پوهېدونکي مســائل ذهن ته راځي؛ آيا بهرنۍ نړۍ څخه د انســان شــناخت صحيح دی؟ آيا ممکنه ده چې د انسان شــناخت نا صحيح وي؟ د صحيح او سم شــناخت معيار څه شی دی او بايد

هغه په کوم ځای کې وپلټو؟ دا هغه مسائل دي چې د «حقیقت» په مبحث کې تــر بحث لاندې نیول کېږي. د «حقیقت» فلســفي مفهوم د شــناخت موضوع ســره د شــناخت ســمون (مطابقت) دی. کله چې وایو «ځمکه کــروي ده» یا «سپوږمۍ د ځمکې په چاپېر ګرځي» یا «ژوندي موجودات له ساده توب څخه د پیچلتیا په لور تکامل کوي» یا «د ایران انقلاب د ۱۳۵۷ هجري شمسي کال د سلواغه په ۲۲ کې پېښ شو» هر ځل مو یو حقیقت بیان کړی دی ځکه چې زموږ شــناخت، زموږ خبره د شناخت موضوع سره سمون لري، واقعیت سره سمون لري. برعکس، بطلیموس چې خمکه یې د نړۍ مرکز پېژندله او مدعي و چې لمر د خمکې په چاپېر څرخي، ناسم شناخت درلود ځکه چې شناخت، د واقعیت مطابق ندی، «د انواعو د ثبات تئوري» چې د هغې په بنسټ ژوندي موجــودات د ازل له ورځې په همدې بڼه پیدا شــوي چې همدا اوس یې وینو، ثابــت لابدلون باقي پاتې دي، حقیقت نه بیانوي ځکه چې حکم یې د واقعیت مطابق ندی. نتیجه دا شــوه چې کېدای شــي د انسان شناخت سم یا ناسم وي، د «حقیقت» مفهومشناخت سره د صحت او سمون په اړیکه کې نغښتی دی.

په حســي شناخت (احســاس او ادراک) کې چې د شي اغیزه مستقیمه او بلاواســطه دی، شــي ســره په مطابقت کې د بلاواســطه توب د علت له مخې د شــناخت اړیکه اجتنــاب ناپذیره ده، هیڅوک هغه بوتل چې دهغه د ســترګو په وړاندې پروت دی بل شــی ســره په اشــتباه کې نه نیســي. له همدې کبله د «حقیقت» فلســفي مفهوم ته د حســي شــناخت په حریم کې لار نشته. تر ډېره بریده کولی شو ووایو چې حسي شناخت (ادراکات) همیشه حقیقت دی.

پــه تعقلي شــناخت کې وضع په بــل ډول ده. تعقلي شــناخت مفاهیمو او مقولاتو ســره سروکار لري چې خپله د انتزاع او تعمیم ثمره ده. سربېره پر دې

انســان د مفاهیمو په ترکیب او یوځای کولو کې آزاد لاس لري او هغوی ته په تصدیق، اندیشو، تئوریګانو او فرضیو کې په مختلفو بڼو شکل ورکوي. په دې ډول امکان لري چې خبره یا وینا د شــناخت موضوع سره سمون ونلري، یعنې حقیقت نه وي او تېروتنه وي. د تعقلي شناخت په ډګر کې ده چې د مطابقت او نه مطابقت موضوع مخې ته راځي. ځکه چې دغه شناخت واقعیت سره په مســتقیمه او بلاواســطه اړیکه کې نده. د «حقیقت» مقوله هم په دې ډګر کې تصدیق کوونکې پیدا کوي.

د مارکســیزم درک او تعریف د «حقیقت» مقولې څخه روښــانه ده اوهیڅ شــي ته د پټېدو ځای نه پرېږدي. دغه تعریف له یوې خوا توضیح کوي چې په حســي شــناخت کې د «حقیقت» مقوله مانا او مفهوم نلري ځکه چې همیشــه او په هر حال د حاضر شــي تصویر په مغز کې، په خپله شــي ســره د انطباق په حالت کې دی او له بلې خوا، حقیقت پداسې حال کې ضروري کېږي چې هلته د تېروتنې امکان شتون لري یعنې په تعقلي شناخت کې،له دې سره سره بیا هم مطهري په مارکسیزم کې له ځانه د «حقیقت» مقولې لپاره تعریف جوړوي چې بیا هم له مارکســیزم او د مارکســیزم د شناخت له تئوري څخه دهغه بې خبري او ناپوهي په ګوته کوي. تعریف یې په دې ډول دی:

«حقیقت عبارت دی له هغه اغیزې څخه چې حاســه (عصبي سلسله) یې وروسته د محسوس له اغېزې جوړوي»(«اصول فلسفه و روش ریالیزم» لمړی ټــوک، ۱۷۴ مخ) دغــه تعریف له دوه پلــوه ناخرګند دي لمړی لــه دې خاطره چې حقیقت په مارکســیزم کې حســي شــناخت پورې، هغې اغیزې پورې چې محسوس یې په حاسه کې منځ ته راوړي محدود ندی او اصولاً د دغه شناخت پــه ډګر کــې د «حقیقت» د مقولې کارول په مطلــق ډول د څرګندیدو ځای نه

مومـي، ځکـه چې د تیروتنـې امکان په کې نشـته تر څو وکولی شـو د هغه په وړاندې حقیقت مخې ته کېږدو. په حاسـې باندې د محسوس اغیزه پرله پسې د هر چا لپاره له واقع سره په انطباق کې دی. له همدې کبله ده چې د«حقیقت» د مقولې سم کارول په هغه ځای کې ضرورت مومي خو په پورتني تعریف کې په مطلق ډول (تعقلي شناخت) ته اشاره هم نشته.

په مارکسـیزم کې د «شـناخت» مسـولې څخـه بی خبري او د شـناخت له دوه مرحلو حسـي او تعقلي شـناخت څخه بې خبرید دې موجب ګرځي چې «اسـتاد» د کتـاب ډېـرې پاڼې د «حقیقـت» په بحث کې تـورې کړي، هغوی مارکسیسـتان په ځانګړې توګه ډاکټر اراني تر نیوکې لاندې نیسـي پداسې حال کې چې خبره یې په هدف نه مښلي او په هوا ځي. مطهري له ډاکټر اراني څخه نکل کوي او لیکي: «ماخ وایی یو پنسل په هوا کې مستقیم تر سترګو کیږي او په اوبو کې مات لیدل کیږي.... تجربه د دې سبب نه ګرځي چې موږ یو حالت حقیقي او بل حالت تیروتنه وګڼو(هغه شـان چـې ماخ وایی) بلکې د تجربې په مرسـته کولی شـو د دغه دواړو تر منځ د اختلاف او حقیقت علت په ګوته کړو» (هماغه ځای، هماغه مخ) ډاکټر اراني دواړه حالتونه حقیقت بولي ځکه پـه دواړه حالتونو کې کـوم تصویر چې بوتل څخه په مغـز کې منعکس کیږي (شناخت) د شناخت موضوع (پنسل) سره بشپړ مطابقت لري. که د مطهري تعریف هم حقیقت ومنو «حقیقت له واقعیت سـره د مطابقت او نفس الامر لـه مخې د ادراکاتو صفت دی» بیا هم دواړه حالتونه عین حقیقت دی. د نور هغه وړانګه چې پنسـل څخه زموږ سترګو ته راځي تر هغه وخت پورې چې په هوا کې خپریږي مسـتقیم مسـیر طی کوي. خو کله چې د اوبو له محیط څخه د هوا محیط ته ننوځي تر یوې ټاکلې زاویی لاندې خپل مسـتقیم مسـیر څخه

منحرف کېږي (د انکسار زاويه) او په پايله کې پنسل ماتيږي. چې دا يوه فزيکي پديده ده او قوانين يې هم کشف شويدي. دا منل شويده کله چې پنسل زموږ په وړاندې قرار لري موږ ټول (پرته له استثنا) هغه مستقيم وينو. په دې حالت کې هيڅوک ختا او تيروتنې سره نه مخامخ کېږي. کله چې دغه پنسل به اوبو کې ځای نيسي ماتيږي، بيا هم هيڅ چا ته شک نه پاتې کېږي چې پنسل په اوبو کې مات شويدی. په دې دواړو حالتونو کې پنسل څخه زموږ شناخت د شناخت موضوع سره انطباق لري. پنسل په هوا کې مستقيم دی او په اوبو کې مات. دا دواړه حقايق دي (که وکولی شو د حسي شناخت په هکله حقيقت څخه خبرې وکړو). مطهري په ټينګار سره مدعي دی چې پنسل مستقيم دياو په اوبو کې د پنسل ماتيدل د سترګو خطا او تيروتنه ده. که چېرې هغه د خپل تعريفپه حقيقت ټينګ ولاړ وی نو پيداکولی شو چې په اوبو کې د پنسل ماتيدل «واقع او نفس الامر سره د ادراکاتو مطابقت دی» يعنې حقيقت دی. دا د سترګو ختا او تيروتنه نده چې پنسل په اوبو کې ماتيږي. بلکې دا واقعيت دی چې پنسل په اوبو کې مات ښکاره کوي او سترګې هم هغه په اوبو کې مات ويني.

بل مثال وړاندې کوو. «د غږ سرعت په هوا کې برابر دی ۳۴۰ متره په يوه ثانيه کې» دا يو حقيقت دی په دې شرط چې د غږ موج په هوا کې خپور شي. د دې حقيقت د لمنې غځول بل محيط ته د حقيقت په ځای د تيروتنې کښنيول دي ځکه چې «په اوبو کې د غږ سرعت ۱۴۲۵ متره په يوه ثانيه کې دی» او په خلاء کې غږيز امواج نه خپريږي او د غږ سرعت په هغه کې چټي او تشه خبره ده يا دا چې «په خلاء کې د غږ سرعت صفر دی» آيا ښکاره نده چې حقيقت په مختلفو شرايطو کې يوشان نه پاتې کېږي؟ آيا روښانه نده چې حقيقت په مختلفو شرايطو کې لابدلون ندی او بدلون منونکې دی؟ د اسلامي رياليزم

لپاره حقیقت بدلون سره نه مخامخ کېږي ابدي او جاويداني دی.

د دې خبرې دویم ځل یادول ښایي بې ګټې نوي دغه حکم چې «د غږ سرعت په یوې ثانیه کې ۳۴۰ متر سره برابر دی» کېدای شي هم حقیقت وي هم خطا له ویلو سره سم غږیز امواج چې په کومو شرایطو کې خپرېږي حقیقت دی که د موجونو سرعت په هوا کې اندازه شي، دا به تیروتنه وي که هغه ته په هر محیط کې تعمیم ورکړو. په دې مطلب کې کوم شی عجیبه وجود لري چې مطهري له هغه څخه وېره لري؟ په مارکسیزم کې هر حقیقت یواځې په یو ټاکلي چوکاټ کې حقیقت دی. البته د ښوونځي هر ماشوم په دې نه پوهیږي خو پرته له شک څخه د یو سم حکم دی. د دې حکم نفې کول د حقیقت د مطلق کولو په مانا دی او لکه چې وویل شول اسلامي ریالیزم د منځ پرېښودل غوره بولي.

«حقیقت» عیني دی د مارکسیست په فلسفه کې د «حقیقت» د مقولی اهمیت د هغی په «عیني» خصلت او «عینیت» کې پروت دی او له «عینیت» څخه منظور دادی چې د محتوا شناخت، د محتوا تصدیق، له پیژندونکي څخه مستقل وجود لري. «عیني حقیقت» دوه لاندني ټکي په ځان کې لري:

لمړی دا چې شناخت همیشه د «شناخت د موضوع» تصویر او انځور اخیستنه ده خو په هر حال کې له هغه تصویر څخه چې د انسان په مغز کې نقش تړي مستقل وجود لري. کېدای شي د «شناخت موضوع» یا «مادي» وي یا «ایده اي» په دې تصدیق کې چې «له بخار څخه باران زیږي» یا «انسان د حیوان د تکامل محصول دی» پرته له شک څخه حقیقت ویل شوی ځکه د شناخت موضوع سره چې مادي دی مطابقت لري. خو دغه تصدیق چې د ډاروین زده کړه مذهبي زدو کړی سره په تضاد کې ده هم حقیقت دی ځکه

چې اړیکه د «ایده اې» په کچه ځای په ځای شـوی چې واقعاً وجود لري او دا د دوه زده کـړو د ډارویـن د زده کړې او د دیني زده کړې د اړیکو تر منځ تضاد دی. دواړه حالاتو کې د حقیقت،عیني خصلت په دې کې دی چې د شـناخت موضـوع پرتـه له دې چې موږ یـې وپیژنو یا یې ونه پیژنـو، وغواړو او که ونه غواړو واقعیت لري.

دویـم دا چې حقیقت له دې څخه مسـتقل دی چې کـوم پیژندونکي هغه تر لاسـه کړی دی، له دې څخه مسـتقل دی چې دغه شـناخت د پیژندونکي غوښـتنې او ارادې سـره سـمون لري او که نه او مسـتقل له دې څخه چې د شـناخت صحـت د منلو وړ دی او که نه، په بل عبـارت حقیقت زمان، مکان او ټولنیـز نظـام پورې تړاو نلـري. هر حقیقت د «شـناخت د موضوع» ټاکلی غبرګون دی، داسـې غبرګون چې د ټولو انسـانانو لپاره یو ډول دی، برخلاف د هغه چې مطهري یې مارکسیستانو ته نسبت ورکوي، حقیقت له یو انسان څخه بل انسـان ته توپیر نه کوي. لکه چې تر مخه وویل شـول د اعصابود سـتګاه د جوړښـت، سازمان او فونکسـیون له پلوه په ټولو انسانانو کې یو شان ده. دا د حیرانتیـا خبره نده که چېرې د بهرنۍ نړۍ غبرګون (بازتاب) په ټولو انسـانانو کې یو ډول وي. خو دغې مسولې ته د بورژوازي فلاسفه او ایدئولوګان لږترلږه په اجتماعي علومو کې «د پیژندونکي د شناخت د صحت استقلال ته» د شک او تردید په سـترګو کتل کېږي او دغه مرکزي مسـئله (د عیني حقیقت وجود) چـې په اجتماعي علومو کې د عیني حقیقت وجود منل شـویدی په کلکه نفې کېږي. د هغوی له نظره د تاریخ په اوږدو چې کومې علمي څېړنې یا کومې هلې ځلې د ټولنې د تکامل د عیني قوانینو د کشفولو لپاره شویدي چټې او بې ګټې دي، حقیقت ته نه رسـیږي. هغه هلې ځلې چې هغوی یې د دې ادعا د ثبوت

لپاره په لار اچوي او د بورژوازي اوسني فلسفه له دې څخه ډکه ده دا ټولې د دې لپاره دي ترڅو د تاريخي تکامل په هکله مارکسيستي درک او د سوسياليزم او کمونيزم تئوري بې اعتباره کړي. په دې برخه کې د هغوی د کوښښونو جاري ساتل د دې لپاره په لار اچول کيږي چې د علم او ايدئولوژي تر منځ او د انسانانو د ګټې او شناخت تر منځ ژورې کندې و باسي. هغوی وايي يوازې طبيعي علوم کولی شي د عيني حقايقو په لټه کې بوخت شي پداسې حال کې چې ايډيالوژی د ګروهي او طبقاتي ګټو وياندويي کوي له ناچارې د واقعيت په نسکورولو پای ته رسيږي. له همدې کبله علمي ايدئولوژي چې د کارګرې طبقې د نړۍليد د ادعا بحث ده بې مانا او متضاد خبره ده.

سمه ده چې په ټولنه کې د عيني حقايقو ټکر له ګروهي او طبقاتي ګټوسره د طبيعي علومو په اندول ډېر زيات پياوړی دی. خو له دې څخه دا نتيجه نه اخيستل کيږي چې په اجتماعي علومو کې يا د تاريخ په حرکت کې عيني حقيقت د شناخت موضوع سره د انکشاف وړ ندی. دغه ادعا چې په ټولنه کې وګړي د ګروهي ګټو، غوښتنو او ارمانونو درلودونکي دي، او د ټولنې تکامل د هيڅ قانون خيال نه ساتي او هيڅ عيني حقيقت هلته پيدا کولی نشو دا پوچه او باطله ادعا ده. د ټولنې او تاريخ تکامل د عيني قوانينو په بنسټ حرکت کوي او د طبيعت د عيني قوانينو خصوصياتو سره توپير نلري. سمه ده چې هره ايدئولوژي د خپلو موخو او موازينو درلودونکې ده او د يو ټاکلي درک په بنسټ له ټولنيز واقعيت څخه تومنه اخلي او د انسان د فعاليت او عمل جهت يا جهتونه ټاکي. خو دا هم شونې نده چې عيني حقيقت د په افکارو، خيالونو او اجتماعي تئوريګانو کې څرګند نشي او لکه د بل هر عيني حقيقت په شان د شناخت موضوع سره نږدېوالی ونلري. اجتماعي حقايقو څخه انکار کول

یوه داسې کېسه ده چې د بورژوازي لوبغاړو جوړه کړی. او د کارګرې طبقې ایدئولوژي یوائځینۍ ایدئولوژي ده کومه چې د اجتماعي تکامل واقعیاتو سره په انطباق ده او حقیقت دی د دې موضوع د «رد» کولو په نیت نندارې ته وړاندې کوي. مارکسیزم ــ لنینیزم دغه د کارګرې طبقې ایدئولوژي چې د علمي شناخت او د ټولنې د قانونمندي تر منځ په اجتماعي پراتیک کې انقلابي لوری ټاکي یوځای کوي چې د طبقاتي ګټو او عیني حقیقت تر منځ له هر ډول تضاد څخه تش دی. یوائځې په همدې ایدئولوژي کې عیني حقیقت د زیارکښانو او زبیښاک کېدونکو ګټو سره په بشپړ انطباق کې ځای لري.

بورژوازي په ټولنه کې عیني حقیقتونه نه مني ځکه چې د هغوی له ګټو او هیلو سره په تضاد کې لویږي. دغه مطلب چې بورژوازي په ټولنه کې په عیني حقایقو باور نلري، دلیل یی دا په ګوته کوي چې په ټولنې او تاریخ کې عیني حقیقت وجود نلري. موږ ترمخه واضح کړه چې عیني حقیقت د پیژندونکي د میل او ارادې تابع ندی، زمان او مکان پورې تړاو نلري. دغه مطلب په اجتماعي علومو او تاریخ کې هم په قوت سره شتون لري. خو دغه عیني حقیقت چې د یوې ډلې او طبقې له ګټو سره سمون نلري د منلو وړ نه ګرځي. د ایدئولوژي موضوع چې د دې کتاب په (دریم څپرکي) کې د «اخلاقي ارزښتونو» په بحث کې په تفصیل سره تشریح شوی نه غواړم په دې ځای کې یی تکرار کړم.

حقیقت بدلون منونکې دی که ابدي او تلپاتې؟

نسبي حقیقت او مطلق حقیقت

عیني حقیقت، د انسان په وړاندې، مخې ته ایښودل شوی چې د انسان د شناخت موضوع ټاکي، داسې موضوع چې ډیرې بڼې لري او ډیره پیچلې

ده، آیا شـونی دی چې د دغه عیني واقعیت ټول اړخونه او خواوې په بشـپړه او دقیقه توګه په یو وار سـره وپیژندل شـي، او بیا د انګلس په خبره انسـان لاس تـر زنې لاندې کېـږدي او د دغه نظام او انتظا م، عظمت ځینې په اریانتیا او په تعجب کې ډوب پریوځي؟ داسـې کس نشـو پیداکولی چې سـلیم عقل ولري او دغې پوښـتنې ته مثبت ځواب ورکړي، پداسـې حال چې د زرګونو کلونو په تیریدو سـره د بشر د شـناخت تاریخ دې پوښـتنې ته منفي ځواب ورکړیدی. عیني واقعیت «راز لرونکې» دی او خپل «اسـرار» په اسـاني او خپله خوښه نه ښکاره کوي، باید هغه د دغو اسرارو بربنډولو ته اړ باسو. سربېره پر دې هغه ټول «اسـرار» یو ځای په یو وخت انسـان ته په لاس نه ورکوي، باید هغه یو یو او ذره ذره له هغه څخه بهر راوباسو. په پایله کې شناخت یو اوږد او بې پایه بهیر دی، وار پـه وار او ګام پـه ګام مخ په وړاندې ځي. هغه څه چې تر لاسـه کېږي تر اوسـه د شـناخت ځواب ویونکې ندي. باید دهغه په مخ نورې کېندنې وشي تر څو عیني واقعیت ته نږدې او نږدې شـو تر څو شـناخت عیني واقعیت سره په بشـپړه او دقیقه توګه سـمون پیداکړي.عیني واقعیت بې پایه راز راز او ډول ډول بڼې او انځورونه لري، انسان یا ټول انسانان په یو پړاو کې، هغه وس واک نلري چې دغه واقعیت له ټولو پیچلتیاو او ننګونو سـره سـره په یو پړاو کې تر لاسـه کړي. شناخت همیشـه د حقیقت یوه برخه په څنګ کې لري. او دا هغه وخت چې شـیان او پدیدې پرله پسـې د بدلون او تحول او تکامل په حال کې دي. پایله یې داده چې شـناخت یو داسـې تلپاتې تکاملي بهیر دی چې د پای تصور یې کېدای نشي..

د شـناخت د پرمختګ په بهیر کې چې پرله پسـې نوي ټوکي او تازه هستې لاس ته راځي پر هغه ورزیاتوي او انسان هر ځل د عیني واقعیت په پیدا کولو

کې خپل کل ته نږدې کېږي پرته له دې چې دهغه پای ته ورسېږي. يادول يې ضروري دي چې د شناخت بهير د انسان د پراتيک بنسټ سره نه شليدونکې پيوند لري.

د تاريخي شناخت د بهير منطقي پايله داده چې عيني حقيقت، نسبي دی، د شناخت ټولې موضوع سره په نسبي اړيکې کې، نسبي په دې مانا چې شناخت پرله پسې يواځې د عيني واقعيت يوه ګوښه، هغه هم دټاکلو بريدونو د ننه په غېږ کې نيسي، يواځې تر ټاکلې درجې د شناخت موضوع سره او عيني واقعيت سره په مطابقت کې دی. د شناخت د پرمختګ په بهير کې پرله پسې نوي ټوکي او تازه هستې چې تر اوسه لاس ته راغلي پر هغه ورزياتيږي او انسان هر ځل زيات دقيق، کامل، پراخ او عام شناخت تر لاسه کوي، هر ځل د واقعيت په موندلو کې خپل کل ته نږدې کېږي. په دې ډول دغه حقيقتونه چې يو د بل په مخ انباريږي نسبي حقيقتونه دي چې د وخت په تيريدو د پوهې د کچې لوړيدو او د تخنيک تکمل سره بدلون مومي. که دا رښتيا وي چې هر ځل دعيني واقعيت ټوکي او نښې په حقيقت کې انعکاس پيدا کوي او که رښتيا ده چې واقعيت هر ځل په يو ټاکل بريد کې تر ټاکلې درجې عيني واقعيت سره مطابقت لري ښکاره ده چې حقيقت، جاويداني پاتې کېدای نشي، د زمان تابع دی، نشي کولی لابدلون اووسي، بدلون منونکې دی.

د څو بيلګو يادونه د دې مطلب درک کولو سره مرسته کوي: «مښل ګرمي منځ ته راوړي» دا يو حقيقت دی چې له تاريخ څخه وړاندې انسانان پری پوهيدل، د مښلو له لارې يې اور تر لاسه کاوه او ساړه شيان يې د مښلو پواسطه ګرمول... په زرګونو کلونه تير شول تر څو ژول په ۱۸۴۲ کال کې همدغه حقيقت ته تعميم ورکړ:

«هر میخانیکي حرکت کولی شي د اصطحکاک (مښل) د حقیقت له لارې په حرارت بدل شي» او هغه یې په عمل کې اثبات ته ورسوله. څو کاله وروسته مایــر آلمانــي فزیک پوه دغه عام حقیقت بیان کړ چــې اوس هم په خپل قوت ســره باقي پاتې دی: «د حرارت هره بڼه کولی شــي په هره برخه کې تر ځانګړو شــرایطو لانــدې، په مســتقیم یا غیرمســتقیم ډول د حرکت په بلــه بڼه واوړي او جبــراً اړول کېــږي» (انګلس: «ډیالکتیک طبیعت»). څوک کولی شــي پدغه تکاملي مسیر کې چې دلته په لنډه توګه وویل شول مدعي شي چې په حقیقت کــې بدلون ندی راغلــی او د مطلب اخرین بیان هماغه لمړنی بیان دی؟ څوک کولی شي مدعي شي چې لمړنی حقیقت: «مښل تودوخي منځ راوړي» نسبي نــدی، د خپل زمان د پوهې او تخنیک په نســبت؟ آیا دغــه تکاملي یون د دې نکل چي ندی چې د بیان د پای مطلب بیا هم نســبي ندی؟ کلاســیک فزیک را اخلــو چې نیوټن د هغه بنســټ کېښــود. پــه هغه کې فضا او زمــان دواړه له متحرک جســم څخه جلا او په خپل منځ کې یو بل څخه جلا، یوشــان او سره ورته په نظر کې نیول شــویدي، د حرکت ســرعت، هماغه معمولي ســرعتونه دی چې د نور د سرعت په اندول ډېر کوچني او ناڅیز دي په همدې چاپیریال کې وو چې د کلاســیک فزیک ډبره کېښــودل شــوه او د عمومي جاذبې قانون کشــف شــو چې په واقع کې د ګالیله د اجسامو د سقوط د قانون تعمیم دی. د کلاســیک فزیک ځینې حقایق له هغه تولګې دغه حقیقت چې «د جســم کتله ســرعت سره بدلون نه کوي» د دوه ویشت (۲۲) کلونو په اوږدو کې په علمي چاپیریــال کې د ابــدي او جاویداني حقیقت په توګه ګڼل کېده. لســګونه کلونه تیر شــول تر څو ګام په ګام د هغه نســبي عناصر په فزیک کې رامنځ ته شــول او بالاخــره د نســبیت په تئــوري (خاص او عام) پای ته ورســیده چې په واقع

کې د کلاسيک فزيک «نفې» وه. د اينشتين د نسبيت تئوري د دې حقيقت ثبوت دی چې زمان او مکان يو بل څخه جلا او له متحرک جسم څخه جلا واقعيت نلري. (څلور بعدي فضا). سربيره پر هغه سرعتونو چې لږ او ډېر د نور سرعت ته نږدې دي. نه کتله ثابته پاتې کيږي، نه فضا او نه زمان. د زمان، مکان او کتلې جاويداني پاتې کېدل تر يو ساده نکل پرته بل څه پاتې نشو. خو يواځې په متعارفو سرعتونو کې بدلونونو دومره لږ دي چې نه تر سترګو کيږي، په محاسبه کې هم دومره نا څيز او کوچني دي چې کېدای شي سترګې پرې پټې کړو. نوي فزيک د کلاسيک فزيک په «نفې» کولو سره تازه حقايق ترلاسه کوي چې له عيني واقعيت سره په مطابقت کې ډېر پراخ، دقيق او کامل دي. کلاسيک فزيک عيني حقيقت وه خو نسبي وه، يواځې خاصو بريدونو (په ځانګړې توګه په ټيټو سرعتونوکې)، د پوهې او تخنيک په ټاکلې کچه او ټاکلې درجه کې له واقعيت سره په مطابقت کې ځای درلود. د علمي امکاناتو بدلون سره، د نيوټن فزيک هم بدلون سره مخامخ شو او نه يی شو کولی چې بدلون ونکړي او اوس يی د يو خاص حالت په توګه د مدرن فزيک د ننه کې چې ډېر عام او پراخ دی ځای نيولی دی. دغه نښه هم په ښکاره ډول د عيني حقيقت د بدلون منلو او نسبي والي څرګندويی کوي.

د اقليدس هندسه يوه بله نښه ده. له ميلاد څخه درې پيړۍ وړاندې رياضي پوه اقليدس د منل شوي اصول له مخې او د مځکې او فضا انحنا ته په نه کتو سره له هغې تړلکې دغه قضيه چې «د يو مثلث د داخلي زاويو مجموعه دوه قايمو سره مساوي ده» چې مطهري په کراتو کراتو هغه د نسبي حقيقت د نفې تر عنوان لاندې يادوي هندسي قضيو يو په بل پسې د نسبيوالي مسئله اثبات ته ورسوله. د اقليدس هندسه لکه د کلاسيک فزيک په شان پرته له شک څخه

د عيني حقیقت د شناخت په لار کې يو ستر ګام وه، د انسان په عملي مسائلو کــې يې ســتر نقش ولوباوه او لوبــوي يې او په عمل کې يــې خپل صحت په اثبات ورساوه. د دوه زره (۲۰۰۰) کلونو په اوږدو کې د اقليدس هندسه ابدي او جاوداني حقیقت بلل کېده. نيوټن په دې باور وو چې د اقليدس تر هندسې پرته بله هندســه موجوديت پيداکولی نشــي. خو په نولســمه پيړۍ کې په ډاګه شوه چې د اقليدس هندسه يواځېنۍ ممکنه هندسه نده او په پايله کې د اقليدس تر هندســې پرته د بلې هندســې ډېره کېښــودل شــوه. او د اقليدس د هندســې جاودانه والی يو نکل پاتې شو، په ډاګه شوه چې دغه هندسه په خاص چوکاټ کې د ننه او په ټاکلو درجو کې د شناخت مطابقت عيني واقعيت په څنګ کې لري چې د مطلق حقیقت په لار کې يو ګام دی پرته له دې چې هير مو شي دا په خپله نسبي حقیقت دی، غير اقليدسي هندسې اقليدسۍ هندسه «نفې» کړه. دا د خاص حالت په توګه، چې په هغې کې د فضا کږوپيدل محسوس ندي.

نــورې بيلګې لکــه کېميايي اتم او فيزيکي اتم، د نــور موجي تئوري او ذره اي تئــوري، د منــدل د وراثــت تئــوري او د ډاروين د تکامل تئــوري، تخيلي سوســياليزم او علمي سوسياليزم او.... دا ټول د دې ښکارندوی دي چې عيني حقیقت نســبي دی او هر ځل عيني واقعيت سره په پراخه پيمانه مطابقت کې ځای لري.

منل شويده چې په دې ځای کې د «نفې» کلمه په ډيالکتيکي مفهوم کارول شــويده چــې يواځې د پخوانيو له منځه وړل يا څنــدې ته کول نه په ګوته کوي. هغه له يوه سره نه ويجاړوي يواځې د هغه منفي عناصريوې خوا ته کوياو مثبت عناصــر يــې په ځان کې ځايــوي. هر نوی کېفيت دمادي نــړۍ د تکامل په لار يــو ګام دی، داســې ګام چې ډېر لوړ او جامع دی. کلــه چې مثبت عناصر زوړ

کېفیت په خپل ترکیب کې خوندي کوي ادامه کاري خپله لار د تاریخ په مسیر کې پرانیزي. یواځې له همدې لارې ده چې مادي نړۍ د تکامل په صعودي مسیر روانیږي او له ساده والي څخه د پیچلتیا او ټیټواله څخه د لوړتیا په لور روانیږي. وویل شول چې په مارکسیستي فلسفه کې عیني حقیقت، نسبي دی. آیا په دې فلسفه کې مطلق حقیقت څخه خبرې کیږي؟ مارکسیزم پرته له هر ډول زړه نازړه توب او تردید څخه دې پوښتنې ته مثبت ځواب ورکوي. یواځې هغه کسان چې د مارکسیست په فلسفه کې د حقیقت له بحث څخه (په ټولیزه توګه د مارکسیست فلسفې) څخه په سوچه بې خبري کې ژوند تیروي په دې ګما ن دي چې مارکسیزم په مطلق حقیقت باورمن ندی اوهرڅیز ته د نسبي والي له کړکۍ ګوري نو ځکه د نسبي والي (رلاتیویزم) د مکتب پیروان دي. مخکې له دې چې د مطلق حقیقت مسئله د مارکسیست فلسفې له نظره تر بحث لاندې ونیسو د مطهري یو تور ته اشاره کوو.د نیوټن ښوونه او د اینشتین د نسبیت تئوري تر منځ ستر توپیر ته په کتو سره په ډاګه کیږي چې: که کلاسیک فزیک حرکت یواځې د ځمکې په مخ په ټیټو سرعتونو کې پام لاندې نیسي (پرته دجاذبې عمومي قانون ځینې) په یوې ماناکولی شو ووایو چې دا یوه ځمکنۍ پدېده ده، د نسبیت تئوري د بې پایه فضا پدېدې په لمن کې رانغاړي چې ځمکنۍ پدېده د هغې یو خاص حالت دی. آیا روښانه نده چې مدرن فزیک په کلاسیک فزیک کې د بدلون او تحول په راوستو سره انسان یې په ډېرې ژورتیا او پراختیا سره عیني واقعیت ته نږدې کړیده؟ آیا روښانه نده چې کلاسیک فزیک نسبي وو او حقیقت تر یوې درجې پورې له عیني واقعیت سره په مطابقت کې ځای درلود؟ مطهري خپله «د معلوماتو تدریجي پراخیدل او په طبیعي علومو کې د فرضیاتو بدلون» مني (لمړی ټوک، ۱۸۱ مخ). د

معلوماتــو تدریجــي پراخوالی په دې مانــا ده چې معلومات نــه یوائې بدلون منونکي دي بلکې خواره واره کمیتونه هم، نســبي دي. زموږ د نن معلومات د پرون ورځې په نسبت پراخ دي، یعنې زموږ د تیرې ورځې معلومات نسبي وو او زموږ د نن ورځې معلومات چې پراخ شــویدی هم نســبي دی. دغه مسئله د تاریخ په شــناخت کې لکه د لمر په شــان تر ســترګو کېږي. سربېره پر دې هغه زیاتوي چې دا «مادیونو پورې اړه نلري» دلته خبره د «مادیونو یا الهیونو» په سر نده خبره د عیني حقیقت د نسبیوالي او بدلون منلو د صحت په سر ده. مطهري هماغــه د ډاکټر اراني خبره کوي چې وایی: «هر څومره چې زمان وړاندې ځې د بهرني واقعیت د اړیکو ډېر اجزاء د نسبي حقیقت جزء ګرځي». له دې سره بیا هم د هغه خبره رټي. مطهري دغه لاســوند مخې ته اچوي چې مارکسیستي فلســفه عیني حقیقت نســبي بولي دغه فلسفه د نســبي مکتب (رلاتیویزم) په کتار کې شمیري او مارکسیستان نسبیون بولي. تر مخه توضیح شوه چې نسبي مکتب له یو پلوه د کانت د فلســفي د شــناخت تئوري ســره نږدې دی او له بل پلــوه ایدآلیســتي مکتب دی چې عینــي واقعیت له ذهن څخه بهــر نفې کوي. مارکسیستي فلسفه نه عیني واقعیت نفې کوي، نه حقیقت او نه دا چې حقیقت د ټولو انســانانو لپاره یو شــان دی. له دې کبله په اســاس کې نسبي مکتب سره هیڅ ډول نږدیوالی نلري. خو له حقیقت ســره د مطهري هیڅ ســروکار نشته، تــور په ســپین لیکي: «مادیین د مادیتوب نظریې له مخــې فکر او دا چې د هر ادراک شــناخت د اعصابــو عمل څخه ماوراء ندی، د هر شــي د پیژندلو کړه وړه د پیژندونکــي د اعصابــو د جوړښــت ډول او مغز پورې تــړاو ورکوي او وایی هرکله چې د انســانانو د اعصابو د جوړښــت ډولونه یوبل سره توپیر لري نو د حقیقي شناخت ډولونه به هم د انسانانو په منځ کې یوتربله توپیر لرونکې

وي» (لمړی ټوک، ۱۷۶ــ ۱۷۷ مخ)

په رښــتيا ســره انســان دغه ټولو بې مانا اپلتو څخه اريانيږي. «د فکر مادي والی» يعنې څه؟ د مارکسيســت فلســفې په کوم ځای کې راغلي چې فکر مادي دی؟ د انسانانو تر منځ «د اعصابو او مغز د جوړښت د ډولونو» توپير څه مانا لــري؟ د هر ښــوونځي زده کوونکې پوهيږي چې د مغز او اعصابو دد ســتګاه جوړښــت او فونکســيون لکه د نورو دستګاهو په شــان په ټولو انسانانو کې يو ډول دي او د همدې علت له مخې حقيقت يو انسان ته له بل انسان څخه توپير نه کوي. په مارکسيســتي فلســفه کې نسبي والی په دې مانا ندی چې حقيقت د اشخاصو په نسبت توپير لري (دا يوه پوچه او بابېزه خبره ده).

مارکســيزم ســره د مطهري د دښمني ســره ســره کله ناکله د مارکسيستانو خبرې کوي خو د دې لپاره چې «روحاني» مقام يې ټيټ نشي په ځانګړې توګه د مارکسيزم په دام کې په کښيوتلو تورن نشي په ټکي او درغلي لاس پورې کوي تر څو د هغه فلســفي موضع پيکه نشــي. دحقيقت په همدې مبحث کې هغه د دې لپاره چې مارکسيســتانو څخه انحصار تر لاسه کړي (چې دا ډول انحصار پــه مطلق ډول خيالي دی) د «معلوماتو تدريجي پراختيا» او «په طبيعي علومو کې د فرضياتو بدلون» څخه خبرې کوي او په بل ځای کې په ډېر تفصيل سره ليکي چې «د معلوماتو تدريجي براختيا» هماغه د شــناخت تاريخي تګلاره ده چې مارکسيستي فلسفه په هغی ټينګار کوي، په دې توپير چې دا ډېر عاميانه او ملنډيزه خبره د او د حقيقت يوه پيچلې غوټه هم خلاصولی نشي. د «معلوماتو د تدريجــي پراختيــا» په يادولو ســره مطهري غواړي ووايی چې مارکسيســتي فلســفه کومه تازه خبره نکوي، اســلامي رياليزم هم همدغه خبره کوي. خو په لږ فکر ســره هر څوک پيداکولی شــي چې داســې نده: دوه سوه (۲۰۰) کلونه

کلاسیک فزیک د ابدي او جاویداني حقیقت په عنواند نړۍ په علمي چاپیریال حکومت درلود. د دې مودې په لړ کې د بشر معلومات په تدریجي ډول پراختیا وموندله خو دغه پراختیا په ډېرو برخو کې کلاسیک فزیک سره هیڅ ټراو نه درلود. د بیلګې په توګه دغه پړاو کې معلومه شوه چې ژوندي موجودات ټول له یوې حجرې (پاخته) ځینې جوړ شوي او حجره د ټولو ژوندیو موجوداتو د جوړښت واحد دی. وروسته د حجرې جوړښت، د هغوی کیمیايي ترکیب او فزیکي ځانګړتیاوې تر مطالعې لاندې ونیول شوې. په کیمیا کې ډېرمعلومات تر لاسه شول، په علومو کې نوې اړیکې پیداشوې، د بشري پوهې اوفق په بیساري توګه پراختیا وموندله، تازه حقایق ډګر ته راووتل. خو دغه ټول د کلاسیک فزیک مشخص حقیقت سره ټراو نلري. هغه څه چې کلاسیک فزیک یې «نفې» کړ په ټولیزه توګه د «معلوماتو تدریجي پراختیا» نه وه. د کلاسیک فزیک نسبي حقیقت د اینشتین د نسبیت تئوري په راتګ سره «نفې» شوه او بل حقیقت، ډېر عام او پراخ حقیقت د هغه ځای ونیو چې په مادي نړۍ کې د شناخت موضوع سره ډېر نږدې ځای لري. البته د اینشتین د نسبیت تئوري هم په یو وار پرته له مقدمې آسمان څخه را کښته شوې نده. «د معلوماتو تدریجي پراختیا» د میخانیکي تفکر په اړوند معلوماتو خپله اغیزه په کلاسیک فزیک واچوله او د نسبیت په تئوري پای ته ورسیده. مطهري د دې حقیقت «د مالوماتو تدریجي پراختیا» له مخې خپل ګریوان د بحث موضوع څخه چې حقیقت بدلون منونکې دی خلاصوي او په څنګ کې دا ډول ښکاره کوي چې د «مالوماتو تدریجي پراختیا» د «مادیونو مدعا سره اړیکه نلري» دا مطلب سم دی خو د بحث موضوع سره هم اړیکه نلري.

بله ټکي چې یادول یې بې ګټې ندي هغه دا ده چې د بشر د مالوماتو پراختیا

یواځې کمي ندی. د کمـي مالوماتو انبار کېدل د وخت په تیریدو سـره د کار پای کیفي بدلون ته رسـوي او دا هماغه ډیالکټیکي قانون «جهش» دی چې یو کیفیت په بل کیفیت بدلوي او اصولاً اسـلامي ریالیزم په دې برخه کې موافق ندی. کله چې مطهري د «مالوماتو تدریجي پراختیا» ته په ټینګار سـره اشـاره کوي په واقع کې پرته له دې چې دهغه خصلت او اهمیت ته پام وکړي یواځې د مالوماتو کمي زیاتولی په نظر کې نیسي. خو کله چې په طبیعي علومو کې د فرضییو بدلون په هغه ورزیاتوي پرته له دې چې خپله وغواړي د یوې فرضیی جهـش بلې فرضیی ته یا د یو کیفیت جهش بـل کیفیت ته په ګوته کوي. البته هیڅوک باور نلري چې کله یوه فرضیه اعلام شي ډېر زر به بله فرضیه د هغی په ځای کېښـیني. د «فرضییو بدلون» یعنې د یوې فرضیی بدلون، دې ته اړتیا لري چې د بشـر مالومات د خطا او رد سـره پیل شي او زیات شي. په پای کې دغه ډول زیاتوالی دی چې کولی شـي نوې فرضیه د زړې فرضیی په ځای کېښـینوي او دا پـه واقع کـې هماغه د مارکسیسـتي ډیالکټیک قانون په بنسـټ د کمیت بدلون په کیفیت او د یو کیفیت جهش بل کیفیت ته او غوځېدل په یووالي کې (ګسیسـتګی در پیوستګی) دي. داسې نه ښکاري چې مطهري به دغه قانون ته د منلو په سترګه وګوري. خو هغه څه یې چې د کاغذ په مخ راوړي دي غواړي که نه غواړي د دې قانون تصدیق کول دي. موږ تر مخه ولیدل چې مطهري په څـه ډول د «ضدینو د مبارزې او وحـدت» قانون په هکله خپلې لمړنۍ موضع ته بدلون ورکوي او دې پایلې ته رسیږي چې «ښایی صحیح هم وي»،«موږ نه پوهیږو».د «فرضییو بدلون» د ډیالکټیک د قانون بله بڼه ده خو بیا هم هغه پرته له دې چې خپله هغي ته متوجه اوسي.

## مطلق حقیقت څه شی دی؟

مطلـق حقیقت عیني واقعیت سـره د شـناخت د جوختوالي تـر ټولو لوړه درجه ده خو په پایله کې شـناخت تر دې بریده وړاندې نه ځي. مطلق حقیقت له کمي او کېفي لحاظه د مادي نړۍ پېژندنه ده د ا رنګه چې بل شی په هغه کې د پېژندلو لپاره باقي پاتې نشـي، د وخت په تیریدو او د وروسـتي تکامل په لړ کې، ممکنه نده چې په هغه څه زیات یا کم شي او یا هغه تر شک لاندې ونیول شي. مطلق حقیقت د زمان او د علم پرمختګ سره بدلون نه کوي.

مطلق حقیقت په دې علت چې د شناخت بهیر پای منونکې ندی یواځې د شـناخت د حرکت لار د بشـریت د تاریخ په بهیر (تیر، حال او راتلونکې) کې په ګوته کوي. په دې لار کې پرله پسـې جزیې تازه حقیقتونه په هغه حقیقتونو چې په دې یا هغې تاریخي لحظه کې تر لاسه شویدي ور زیاتیږي، په دې ډول د شناخت تګلاره بې پایه ادامه پیدا کوي، مادي نړۍ سره د شناخت مطابقت وار په وار لوړو درجو ته ارتقاء پیدا کوي پرته له دې چې پای ورله متصور شي. پرته له دې چې د شناخت بهیرته د پای ټکې کښیښودل شي.

څرنګه چې نشـو کولی د مادي نړۍ واقعیت یو وار او په یو ګوزار وپېژنو، له ناچارۍ دا نتیجه تر لاسـه کیږي چې هرځل د زمان په یوې ټاکلې برخه کې یواځې د هغه یوه څنډه او یو جزء تر شـناخت لاندې راځي او هر څومره چې وخـت تیریـږي د پوهې د کچې لوړیدو او د عملي امکاناتو تکامل سـره زیات نه زیات اجزاء په پخواني شـناخت ورزیاتیږي. ښـکاره ده هغه حقایق چې په دې ډول یو په بل خرۍ کیږي نسـبي حقیقتونه دي چې د زمان په تیریدو سـره بدلون کوي. خو د عیني واقعیت هره ګوښه چې په نسبي حقیقت کې انعکاس

پیدا کوي د شناخت موضوع سره په بشپړ مطابقت کې ځای کوي، له دې کبله مطلق دی او د وخت په تیریدو سره هغه کې بدلون نه پیښیږي.

په مارکسیستي فلسفه کې نسبي او مطلق یوبل څخه بیلیدونکي ندي، د هغوی په منځ کې ډیالکټیکي اړیکه ځای لري: هر مطلق له نسبي څخه راپورته کیږي او په هر نسبي کې مطلق پټ دی. شناخت، د نسبي او مطلق یووالی دی. هر نسبي حقیقت د مطلق حقیقت عنصر دي او مطلق حقیقت د نسبي حقیقت له لارې تر لاسه کیږي.

د «امتناع تناقض» اصل چې د اسلامي ریالیزم لاس او پښې یې کلکې اوټینګې تړلي دي بیا همدا چې حقیقت هم نسبي دی او هم مطلق په غوسه کیږي ځکه چې هغوی «حقیقت» لابدلون او جاویداني پیژني او په دواړو لاسونو دغه مطلق حقیقت پورې چې «ارسطو د افلاطون شاګرد وو» یا «دوه دوهځلور» پورې نښتي دي، البته دا ډول مطلق حقایق وجود لري او کولی شو په دې دوه مثالونو نور ډېر مثالونه ورزیات کړو: «تهران په ایران کې پروت دی»، «تي لرونکې تي لري»، «آزاده شاعر میرزاده عشقي د جمادي الاخر د ۱۳۱۲ هجري قمري کال په ۱۲ تاریخ، د ۱۲۷۲ لمریځ کال مطابق د همدان په ښار کې وزیږید»،«د ۱۲۹۹ کال د اسفند میاشت کودتا د رضا خان میر پنج له لوري وشوه»، «مطهري د ۱۳۵۷ کال د بهمن په ۲۲ تر انقلاب وروسته ترور شو» دا او داسې نور ډېر مثالونه، ټول مطلق حقایق دي، داسې حقایق چې په نړۍ کې یو ځل پیښ شوي او د وخت تیریدل په هغوی کې بدلون نشي راوړی. خو په مارکسیستي فلسفه کې، دا رنګه عامیانه او تر نظره لویدلو حقایقو ته شناخت نه ویل کیږي. که څه هم دا شناخت دی. شناخت څخه منظور، د مادي نړۍ پیژندنه ده، شناخت د حالاتو، وضعې، خواصو او د

هغـوی د قانونمنـدي پېژندنــه ده چې د نــړۍ د بدلون، موخو ته د رسـیدو او غوښــتنو لپاره د انســان د عملي فعالیت بنســټ جوړوي. په دې شناخت کې، حقیقت نســبي دی او مطلق حقیقت د نسبي حقیقت له لارې لاس ته راځي. تر هغه ځایه چې حقیقت د عیني واقعیت یوه ګوښــه او یو جزء منعکس کوي او د وخت په تیریدواو د شرایطو او بریدونو په بدلون سره بدلون مومي، نسبي دی، او دا چې د شناخت موضوع سره بشپړ مطابقت لري مطلق دی او په پایله کې د وخت تیریدل په هغه اغیزه نلري. د اقلیدس هندسه او د نیوټن میخانیک چــې په پیړیو پیړیو ټولو مطلق حقیقــت او بدلون نه منونکې پېژانده، هر یو په خپل وار بدلون ســره مخامخ شــول. غیر اقلیدســي هندسه د اقلیدسي هندسې پــه ځــای او مدرن فزیک (د اینشــتین د نســبیت تئوري) د نیوټــن د فزیک په ځای کښیناستل. مالومه شوه چې د اقلیدس هندسه او د نیوټن فزیک په ټاکلو بریدونو او ټاکلو شرایطو کې یواځې د عیني واقعیت یوه ګوښه ده، له دې کبله نســبي دي. غیر اقلیدســي هندســه او مدرن فزیک هم په خپله نسبي دي، دوه پخواني حقیقتونه یې نفې کړل په دې مانا چې د هغو ناسم او منفي عناصر لکه (د اقلیدس په هندسه کې د فضا مستقیموالی او د نیوټن میخانیک کې د زمان او مــکان یوبــل څخه مطلق جلا والی او د حرکت په ســرعت کې محدودیت) یــې یــوې څنډې ته کېښــودل او هر یــو د عیني واقعیت دقیــق او پراخ تصویر پــه لاس ورکړل، پــه ورته وخت کې هر یو پخوانــي حقایق د یو خاص حالت په توګه (په اقلیدســي هندســه کې، صفر ســره برا بره د فضا انحنا، او د نیوټن فزیــک کې معمولي ســرعتونه) په خپل ځان کې وســاتل. پــه دې ډول پخواني نسبي حقایق د عامو حقایقو په منځ کې د حقیقت د یو جزپه توګه مطلق پاتې کیږي او اوس هم د مطلق حقیقت په بڼه ځای لري. تر اوسه «د مثلث د زاویو

مجموعه (هغه مثلث چې معمولاً موږ ورسره سروکار لرو) دوه قايمو سره مساوي ده» او د «دايرې د محيط نسبت قطر ته ثابت عدد سره مساوي دی» مطلق حقايق دي چې د وخت تيريدلو، د پوهې تکامل او علمي امکاناتو په هغوی کې بدلون ندی راوړی او نه به يې راوړی شي. د اقليدس هندسه او د نيوټن ميخانيک همدا نن ورځ په ټولو ځايو کې د انسان تر ګټې لاندې په کار اچول کيږي او پرته له هغوی د انسان عملي فعاليتونه شوني ندي. کېميايی اتم سربيره پر دې چې د هغه تقسيم ناپذيري خطا ثابته شوه، مطلق حقيقت دی چې په ټولو علمي څيړنو کې سره له دې چې نسبي دی مطلق دی.نن ورځ انسان نوی اوفق خپلې مخې ته پرانيستی دی: لايتناهي فضاء، آسماني ډېر ستر اجرام، د ډېرو کوچنيو ذراتو نړی، مدرن ژنتيک، انفورماتيک او داسې نور. په دې افقونو کې د انسان شناخت د کار پيل دی. آيا په راتلونکي کې به دغه افقونو پسې نور تازه او نوي افقونه ښکاره نشي؟ عيني واقعيت څخه د انسان شناخت بې پايه دي، په بې پايه فضاء کې او په بې پايه زمان کې، د انسان شناخت علم او تخنيک سره پراخوالي مومي، پرله پسې نوي نسبي حقيقتونه منځ ته راځي او په ټاکلو شرايطو د عيني واقعيت تازه ګوښې منعکس کوي، له هر نسبي حقيقت سره د مطلق حقيقت عناصر د شناخت لپاره پيدا کيږي او انسان همدارنګه د مادي نړۍ په پيژندلو کې ستونزمنې او پيچلې لارې وهي. کله چې مارکسيزم فلسفه له شناخت څخه خبرې کوي د مادی د کمي او کېفي حرکاتو شناخت په لايتناهي فضاء او بې پايه زمان کې په نظر کې لري. مطهري بيا همد مادي نړۍ د دومره سترو اريانوونکو لاسته راوړنو په منځ کې لکه اتم، شمسي منظومه او آسماني ستر اجرام، د جاذبې عمومي قانون، د اينشتين د نسبيت تئوري، مدرن ژنيتيک او داسې ډېرو نورو لاسته راوړنو سره د

نسبي او مطلقو حقایقو په منځ کې چې تړول یې په اریانتیا کې ډوب کړیدي د مطلق حقیقت په اړه د هماغه دوه خلخنده بیلګو په چوکاټ کې «ارسطو د افلاطون شاګرد وو» او «دوه دوه تر څلورو» د ساډوبې تر پولې تنګ کړیدی، هر څوک ویني چې شناخت څخه د مارکسیست فلسفې لید لوری د اسلامي ریالیزم په پرتله څومره وړاندې، دنګ او پراخ دی. مطهري چې له پوهې او علم (علم په واقعي مانا) څخه برخه نه اخلي مدعي دی چې د مارکسیست فلسفې علم سره سروکار نشته. په لاس کې شته دغه لیکنه چې له علمي لاسته راوړنو ډکه ده او په خپله د مارکسیزم فلسفې په تایید شاهدي ورکوي او تر اوسه د مارکسیست فلسفې د ډېرو کوچنیو لارو تنګې اړیکې علم سره په ګوته کوي. مارکسیستي فلسفه، ماتریالیستي ډیالکتیک، د علومو د لاسته راوړنو په بنسټ علم دی، د حرکت ډېر عام قوانین او د طبیعت، ټولنې او د تفکر تکامل، د مادي پدیدو او شیانو تر منځې د اړیکو ډېرې عامې تړلتیاوې په لاس راکړې او د علومو تکامل سره خپل حکمونه بشپړ، دقیق او بډای کوي. یوائې هغه کسان چې مارکسیستي فلسفه او (مارکسیزم) نه پیژنیکولی شي دغهواقعیت تر پوښتنې لاندې ونیسي یا حتی له هغه څخه انکار وکړي.

## د حقیقت معیار، پراتیک دی

په تعقلي شناخت کې دغه امکان شته چې حکم، فرضیه، تئوري یا نتیجه اخیستنه د شناخت موضوع سره مطابقت ونلري. د دې لپاره چې وکولی شو حقیقت له خطا څخه بیل کړو، باید وسیله یا زرکانی (محک) په لاس کې ولرو تر څو د هغه په مرسته حقیقت له خطا څخه وپیژنو. د مارکسیست په فلسفه کې دا ډول وسیله د «حقیقت معیار» نومول کیږي. پرته له دې ډول معیار څخه د سم او ناسم او د حقیقت او تیروتنې تشخیص شونی ندی.

په بهرنۍ نړۍ کې د صحيح او غلط تشخيص داسې شی ندی چې اهميت يې له چا څخه پټ وي. د شــناخت واقعي ارزښت هم د صحيح او نا صحيح تــر منــځ توپير څخه لاس ته راځي. د حقيقت د معيــار اهميت په دې کې دی چې امکان ورکوي حقيقت له خطا او سره له نا سره څخه وپيژندل شي. او دا داسې مسئله نده چې وکولی شو له هغې څخه سرسري تير شو. مطهري په دې مســئله کې هم لکه د نورو ډېرو مســولو په شان فکر نده کړيوړاندې او وروسته يــې کتلي ندي، حتی کولی نشــي چــې د خپلو ليکنو ســر او بيخله تناقضاتو او تضادونــو پرته يوځای کــړي. هغه د دې حکم د اثبات لپاره چې «د بشــر ټول مالومات ســل په سلو خطا او خيالي ندي» او «حقيقت وجود لري» ليکي: «له واقعی ســره دانســان د ادراکاتو مطابقت (فی الجمله) حقيقت منل شويدی» (۱ ، ټوک ۱۳۴ مخ) که بهرنۍ نړۍ څخه د انســان ادراکات حقيقت او د واقع مطابق وي په دې صورت کې د خطا د څرګنديدو امکان له منځه ځي او د بشر مالومات (ســل په ســلو) کې صحيــح دی (که چېرې ادراکاتــو څخه منظور حســي شــناخت وي). نو بيا حقيقت څخه د هغه تعريف د پورتني مطلب په تاييد کې ندی: «له واقع او نفس الامر ســره په مطابقتکې حقيقت د ادراکاتو ســتاينه ده» يا «هغه قضيه رښــتونې ده کله چې واقع سره په مطابقت کې وي» (هماغه ځای، ۱۳۱ ــ ۱۳۲ مخ). له دې عبارت او دې تعريف څخه په هيڅ ډول داسې نه ښکاري چې «د انسان ادراکات حقيقي او واقع سره مطابق دي» ممکنــه ده داســې هم نــه وي. د دې تعريف تناقض پورتني عبارت ســره چې «واقع ســره دانســان د ادراکاتومطابقت (فی الجمله) حقيقت منل شــويدی» ښــکاره دی. د انســان ادراکات يا ټول سل په ســلو کې حقيقت دي او تر هغه بريده حقيقت دي چې د منلو او بديهياتو په دايره کې لويږي او يا رښــتيني دي

کله چې واقع سره په مطابقت کې وي، البته ممکنه ده چې نه وي. څرنګه کولی شو دغه تناقض توجیيه کړو. آیا هغه چې کلمات د کاغذ په مخ راوړي اندیښنه نکوي یا اساساً د حقیقت مبحث څخه حتی په اسـلامي فلسـفه کې هم درک نلري یا لږ تر لږه سم درک نلري؟ مطهري ډېر لیکلي او ویلي خو (په دې ځای کې چې د اسـلام د اصولو او د اسـلام د تاریخ په سر خبره نده) په مسایلو کې یې لږ سوچ او پلټل کړیدي. هغه څه چې د حقیقت معیار پورې اړه لري یعنې «د حقیقت او خطا د تشخیص میزان» مسله ده، وروسته تر هغه چې د پوهانو عقاید یویو ردوي بیا دغه حکم صادروي «له خطا څخه د حقیقت د تشخیص معیـار او مقیاس منطق نومیږي». (البته منظور یې صوري منطق دی). یو ځل بیا په وضاحت سـره لیدل کیږي چې مطهرید لنډو او تنګو فکرونو هغه هم په زړو او شـاته پاتې فکرونو کې لاس او پښـې وهي، هیڅ فلسفي مسایل حتی د خپلې مدرسـې طالبانو ته اود نورو ځوانانو د جلب لپار د اسـلامي فلسـفې په چوکاټ کې حل کولی نشي. «د حقیقت معیار منطق دی» یعنې منطق انسان ته امـکان ورکـوي چې حقیقت له خطا څخـه وپیژني. البته کولی شـو د صوري منطق په مرسـته ډېرو مواردو کې حقیقت له خطا څخه بیل کړو. ماتریالیستي ډیالکټیـک هیڅکلـه د منطق حکمونـه او د تفکر ډولونه او نتیجه اخیسـتنه نه ردوي، یواځـې دهغه ناسـمې او کور دلیلـه اړخونه یوې خوا تـه کوي او هغه لازیـات دقیق او هراړخیزه کوي. ډیالکټیک منطق تر صوري منطق یو ګام لوړ دی. مفاهیم، مقولات او افکار چې د خارجي نړۍ انعکاسـات دي، د حرکت او تکامل په حال کې ویني نه په چوپتیا او سکون کې او په دې عنوان کولی شو صوري منطق د ډیالکټیک منطق یو حالت وپیژنو.، خو په هر تقدیر ممکنه نده چې وکولی شو د حقیقت او خطا د تشخیص معیار یې وګڼو، د کیمیا علم را

زده کوي «اوبه د هايدروجن د دوه ماليکولو او د اکسيجن د يو ماليکول مرکب دی. آيا دغه تصديق حقيقت دی که خطا؟ منطق څه ډول کولی شي دغه تشخيص په غاړه واخلي؟ د ډاروين د تئوري په بنسټ هر ډول ژوندي موجودات يوه منشه لري او يو له بل څخه مشتق شويدي. منطق څه ډول کولی شي د دغې تئوري سمون او نا سمون تميز کړي؟ په دې وخت کې د حقيقت د لاسته راوړلو امکان د منطق په مرسته دا مانا نلري چې موږ هميشه حقيقت ته رسوي. دغه مثال (دوه مقدمې ــ صغرىَ او کبريا ــ او نتيجه اخيستنه) چې د منطقي تفکر له شکلونو څخه يو شکل دی ـ موجه کوو: ۱ـ باران اوري هر څوک چې باران لاندې پاتې شي جامې يې لمديږي. ۲ـ بابا راغی او جامې يې لمدې دي. نتيجه اخيستنه: بابا تر باران لاندې پاتې شويدی. آيا دغه شکل ـ د يومهم شکل په توګه چې له منطقي تفکر څخه زيږيدلی دی دا نتيجه په لاس راکوي چې حتماً حقيقت دی؟ د پوښتنې ځواب منفي دی. ګورئ چې دغه منطقي شکل يقيني حقيقت په لاس نه راکوي او کولی شي انسان په تيروتنه کې واچوي. له يو هراړخيز ليد څخه، شونې نده چې منطق وکولی شي د حقيقت معيار وګرځي. منطق له حکم کولو، تصديق کولو او نتيجه اخيستنې سره سروکار لري چې دا ټول د انديښنې او تفکر په کتار کې راځي له دې کبله لکه د بل هر حکم او تصديق په شان شونې ده چې سم وي يا ناسم. بنايی د هغه حقيقت يا خطا تر څيړنې لاندې ونيول شي. څه ډول ممکنه ده کله چې د يوې انديښنې ارزښت معلوم ندی وکولی شو د نورو انديښنو د ارزښت لپاره معيار وټاکل شي. نو ځکه بايد معيار په لاس کې وي تر څو د منطق د حکمونو او تصديقونو د سمون او نا سمون توپير وشي. اصولاً له هغه ځايه چې هر حقيقت د تعقلي شناخت په دايره کي دی، ممکنه نده چې د ايده اي (منطق)

په معیار پرتله شي ځکه چې دغه ادیده اي معیار په خپله بل معیار ته اړتیا لري تر څو د هغه سـمون او ناسـمون تشخیص کړي، نتیجه دا شوه چې د حقیقت معیـار باید پـه بل ځای کې پرته د افکارو له غولي څخـه ولټو. د ټولو مکاتبو اساسـي تیروتنه داده چې د حقیقت معیار د شـعور او ذهن په غولي کې ګوري او هغوی د دې ډول معیار پښوالی نه درک کوي، پام نکوي چې د ذهن له ډګر څخه د ټاکل شوی معیار سمون او ناسمون باید منل شوی وي، تر څو وکولی شـي د بـل حکم تر صحـت لاندي ځای ونیسـي. په کوم محـک د دې معیار سموالی او ناسموالی مالومیږي؟ ښایی د بل ذهني معیار په واسطه؟ خو بیا هم دغه سـتونزه زموږ په وړاندې مخې ته راځي او د حل لار یې نه پیدا کیږي. تر مخه وویل شول هغه څه چې د ټولو د منلو وړ دی حتماً حقیقت ندی یا ګټور توب چې د پراګماتیزم په مکتب کې د حقیقت د معیار په توګه ګڼل کیږي نشي کولی د حقیقت ملاک وګرځي.که چیرې ذهني ملاک د حقیقت معیار ندی، نو د حقیقت معیار څه دی او چیرې باید ولټل شي؟ مارکسیستي فلسفه په دې آند دی چې د حقیقت معیار باید په هغه ډګر کې وکتل شي چې شعور بهرنۍ نړۍ سـره نښـلو ي، په هغه ډګر کې چې هلته د مادی او ایده ای تر منځ پرتله کول شونی وي. د شعور دغه پیوند بهرنۍ نړۍ سره یواځې د انسان او چاپیریال د متقابلـې اغیزې په ډګر کې، او یواځې په اجتماعي پراتیک کې ځای په ځای کیږي. له دې کبله مارکسیسـتي فلسـفه په دې آند ده چې اجتماعي پراتیک، په وروسـتني تحلیـل کـې، د حقیقت یواځینی مقیـاس او معیـار دی. د پراتیک اهمیت د حقیقت د معیار په توګه په دې کې دی چې: لمړی: دغه معیار عیني دی، د انسـان له ذهن او شـعور څخه مستقل دي که څه هم شعور هغه لره لار ښـوونه کوي. معیار، عیني پراتیک دی ځکه چې د شـناخت موضوع د پراتیک

په مخ واقع کېږي او همدارنګه د دې موضوع او د انسان تر منځ متقابله اغيزه دواړه د عيني واقعيت په ډګر کې ځای لري. سربيره پر دې هغه تشخيص چې په دې معيار جوړ شــوی هغه ځيز پورې تړاو لري چې د انسان شعور او ارادې سره سروکار نلري. دويم: پراتيک د حقيقت د معيار په بڼه خپله د شناخت په توګه يو تکاملي بهير دی. په پايله کې هر وخت د پراتيک د تکامل د محدوديت له مخې د دغه ارزښــت تشــخيص له علمي انديښــنې سره شــونی ندی خو د وخت په تيريدو او د پراتيک پرمختګ ســره کولی شــو د هغه ارزښت روښانه کړو يا يې يوې خوا ته ګوښــه پرېږدو، يا تصحيح شــي او يا د هغه په دقت او ژورتيا ورزيات شــي. هيڅ بل معيار له دا ډول خصلت څخه برخه ور ندی. د بيلګــې په توګه کولی شــو له هغو علمي فرضيو څخــه يادونه وکړوچې د خپلې زيږدې په وخت کې د پراتيک د پڅ علت له مخې د هغه د ارزښــت تشــخيص شــونی نه ښکاري خو د وخت په تيريدو دغه فرضيه خپل صحت ښکاره کوي او د علمــي تئوريګانــو په کتار کې راځــي. د کپرنيک فرضيه په دې ډله کې دی چې وروســته د ګاليله او کپلر له خوا يې صحت په اثبات ورســيد، يا د مادې د اتمي جوړښت فرضيه چې په لرغوني يونان کې د دموکريت له خوا وزيږېده او پــه ۱۸ او ۱۹ پيړيــو کې د علمي حقايقو جرګې ســره مل شــوه. يا د کېميايی عناصــرو د دورانــي خصلت په اړه د مندليف فرضيه چــې د اجتماعي پراتيک پرمختګ ســره د حقيقت په عنوان وپيژندل شــوه. يا دغه انديشــه «مانيفست کمونيســت» د ټولــو ټولنو تاريخ چې تر اوســه وجود لــري د طبقاتي مبارزې تاريخ دی. څلويښــت کاله وروســته مالومه شوه چې تر طبقاتي ټولنې وړاندې، انســانې ټولنــې پرته له طبقاتــي ټولنې يو تاريخي پړاو له ســره تير کړيدی او انګلس په ۱۸۸۸ کال، د يو ياداشــت په پای کې «مانيفســت» دارنګه مانا کړ:

یعنــې ټــول تاریخ چې اســناد او مدارک یــې زموږ په لاس کــې دي» یا د لنین فرضیه، د امپریالیزم په شرایطو کې یو واحد هیواد کې د سوسیالیستي انقلاب په هکله چې صحت یې د اکتبر په انقلاب په اثبات ورسید. ټولې دغه فرضیې او دا ډول نورې فرضیې وروسته له هغې چې وزیږیدې د پراتیک د تکاملي بهیر په مرســته د علمي حقایقو په بڼه خپل مقام تر لاســه کړ. پورتنۍ بیلګې له یوې خوا په ګوته کوي چې پراتیک د شناخت د تکامل په ټولو پړاونو کې بې پایه دی او د حقیقــت معیار دی، له بلې خوا هر حکم، هر تصدیق چې پراتیک د خپل تاریخي تکامل پړاو کې پر هغه د حقیقت مهر ټاپه کړ، د شناخت د وروستني تکامــل په لړ کې نور دهغه په حقیقت توب کې بدلون منځ ته نه راځي، د هغه د حقیقت توب دایره ممکنه ده تنګه شي یا برعکس پراختیا ومومي خو اعتبار ته یې خلل نه پیښــیږي. د مارکسیست په فلسفه کې د پراتیک دغه خصیصه د حقیقــت د معیــار مطلق اړخ دی. د پراتیک د پرمختــګ په یو ټاکلي پړاو کې پرته له شک څخه علمي احکام، فرضیې او تئوریګانې پیدا کیږي یا وجود لري چــې پراتیکپــه هغه پړاو کې لا د دې وس نلري تر څو د هغوی لپاره د حقیقت د معیار نقش ولوبوي. د وخت په هرې ګړۍ کې کېدای شي تر بحث لاندې یو شمیر مسایل په علمي محافلو کې چې دغه ډول وضع سره مخامخ دي ولیدل شــي. په بل عبارت پراتیک د تاریخ پــه یوې ټاکلې لحظه کې د دې وس نلري چې د هغې لحظې د ټولو علمي لاســته راوړنو ارزښــت په هماغه لحظه کې د حقیقت یا خطا په توګه وټاکلی شي. د مارکسیست په فلسفه کې د پراتیک دغه خصیصه د حقیقت د معیار نســبي اړخ دی. په دې اســاس د حقیقت د معیار یــو اړخ مطلــق دی په دې مانا چې په آخري تحلیل کې، د بشــرد ټول تاریخ د تکامل او پرمختګ په اوږدو کې د شــناخت د حقیقت یواځېنی معیار دی. او

بل اړخ يې نسـبي دی په دې مانا چې د تاريخ په هرې لحظې کې ممکنه ده تر هغـه ځايـه چې د پراتيک پرمختـګ امکان ورکوي د مالوماتو علمي ارزښـت وټاکي. د حقيقت معيار په هرې ګړۍ کې هم مطلق دی هم نسبي او نشو کولی دا دواړه يوبـل څخـه جلا کړو که څه هم د «امتنـاع تناقض»پلويانوزړونو ته د خپکان لامل وي.

# یادښتونه:

۱ ـ معمــولاًد اصل کلمه د جرړې او بنســټ په مانــا ده. کله چې د اصالت خبره مطرح کېږي له ناچارې خبره د یو شــي لمړیتوب دی په بل شــي، د فرع په مقابل کې اصل غوره کېږي. مارکسیســتان په ســمه توګــه د اصالت کلمه په همدې مانا کاروي. «اصول فلســفه» خپله هم مني چې «معمولاً په تازه فلسفي اصطلاحاتــو کې اصالــت د لمړیتــوب او اصلیت په مانا د فرعېتــوب او نتیجه اخیســتنې په مقابل کې استعمالیږي» له دې سره سره بیا هم اسلامي ریالیزم د «اصالــت» کلمې ته د عینیت مانا ورکوي: «اصالت چې په دې ځای کې مطرح دی د اعتباریــت پــه مقابل کې د عینیــت او خارجیت په مانا دی چې د عینیت او خارجیت د نشــتوالي په مانا او د ذهنیــت محصول دی» (۳ ټوک، ۳۹مخ) کــه چېــرې اصالت د عینیت په مانا وي هغه وخت د ریالیزم تعریف: «ریالیزم یعنــي د خارجــي واقعیت اصالــت» څه مفهــوم پیدا کوي؟ خارجــي واقعیت عینیــت نه نفې کوي او عینیت هماغه واقعیت (ریل) دی. د «اصول فلســفې» اصلي لیکونکي واقعیت په دې مانا نیســي چې «له ما څخه پرته بل نړۍ شتون لري» (۱ ټوک، ۵۷مخ). لــه مــا څخه بهر نړۍ، عیني نړۍ پــه غیر کې رانغاړي. لــه دې کبله پــه خارجي واقعیت باندې د «اصالت» (عینیت) کلمې زیاتول بې ګټــې او عبث کار دی. مارکسیســتان عیني واقعیت څخــه خبرې کوي او هغه «مادی» نوموي. دلیل یې دادی چې واقعیت (ریل) کېدای شي هم عیني اوسي هم ذهني. «عیني واقعیت» د ذهني واقعیت یوه برخه جلا ګوښــه کوي او عیني برخــه چــې هماغه مادي نړۍ دی اراده کوي. تر هغــې ډېر نامفهومه د اصالت (عینیت) کلمې په مرســته د ایدآلیزم تعریــف دي. «ایدآلیزم د ذهن یا تصور د

اصالت په مانا دی» آيا د ذهن اصالت لپاره (چې هغه ته د عينيت مانا ورکول کېږي) يا دا چې د «ذهن عينيت» لپاره کولی شــو مانا او مفهوم قائل شــو؟ آيا لــه دې پرتــه بل به څه وي چې په دې ځای کې اصالت ته د اصل او ريشــې په مانا لومړيتوب ورکړل شــوی وي؟ دا به مطلب پــه ډاګه کړي که د ايدآليزم بل تعريــف تــه چې په بــل ځای کې راغلــی پاملرنه وکړو: «ايدآليــزم يعنې د هغو کســانو مسلک چې ايده يا ذهني تصورات اصيل بولي يعنې انځورونه صرفاً د خپل ذهن پنځول شوي بولي او په خارجي عالم کې د دغه صورخارجي وجود تــه قائل ندي» (۱ټوک، ۵۶مــخ)د «اصيل» صفت د اصل والــي او لمړيتوب (مقدم بودن) له مانا پرته د درک وړ ندی. ايده او ذهن دی چې د خارجي نړۍ جوړونکــي دي يعني ايــده ترمادې وړاندې دهاو دا هماغه صحيح تعريف دی چې ايدآليزم له مارکســيزم او ماترياليزم ســره کوم چې ماده تر ايده يې وړاندې پيژني په تقابل کې اچوي. بل «اســتاد» د وســبحاني په نوم هم خپلو فلســفي درســونو کــې د «اصالــت» کلمه د عينيت پــه مانا کاروي. خــو خپله هغه هم اصالــت پــه واقع کې اصل (د فرع په وړاندې) او د علت په مانا پيژني. هغه په دې بــاور دی چې دوه نړۍ‌ونه «طبيعت» او «وروســتی طبيعت)د واړه عينيت لــري. خو دغــه دويم د لومړنــي پنځوونکې دی. هغه ليکي: «الهي فيلســوف» پداســې حال کې چې د دواړو نړۍ‌ونو په عينيت او واقعيت باور لرياو د دواړو لپــاره د ذهــن لــه محيط څخه بهر د هغــوی په وجود او شــتون قائل دي، خو د وجــود لــه نظره، «وروســتی طبيعت اصــل او د مادي نړۍ علــت او عينيت پيژني او ماده او انرژي د هغه معلول». او دا پرته له شــک څخه په دې مانا ده چــې «مــاوراء طبيعت» لمړنی وجود دی او په ورتــه وخت کې د مادي نړۍ او طبيعت پنځوونکې (اصل او علت) دی. په ريښــتيا له ســرخوږي او سربډالي

پرتــه بله کومه ګټه تر لاســه کېږي؟ که چېــرې د «اصالت» کلمه د خپلې واقعي مانــا لــه مخې نه بلکې د عینیت په مانــا وکاروو. په واقع کې په همدې «اصول فلسفه» کې په روښانه توګه هر ځای اصالت د خپلې واقعي مانا سره سم یعنې لمړیتوب او اصل توب راغلی دی.

۲ ـ پــه «اصول فلســفه و ریالیزم اســلامي» کې د واقعیــت (Realite) او عینیــت(Objective) او عیني واقعیــت (Realite Objective) مفاهیمو تــر منځ توپیر نه ایښــودل کېږي پداســې حال کې چې دغــه مفاهیم د یوې مانا او مضمــون لرونکي ندي. په مارکســیزم کې واقعیت (ریل) هر هغه شــی دی چې شــته او کولی شــي مادي وي یا ایده اي. عیني وي یا ذهني. سربیره پر دې یوازې د واقعیت مفهوم د فلســفې د اساسي مســئلې لپاره کافي ځواب نده. د «واقعیت» مفهوم د مشــخص طرف نیول نه ایجابوي. عیني (ابژکتیو) هر هغه شی دی چې انسان (د فرد په توګه) او د هغه شعور څخه مستقل وجود لري او کولی شــي مادي یا ایده اي وي. په دې مانا کې غر او بیدیا، اوبه، دېره په هغه کچه عیني دي لکه د اجتماعي شعور مختلف شکلونه لکه هنر، علم، اقتصاد، مذهب او داســې نور. له دې کبله روښــانه ده چې عیني له مادې ســره مترادف ندی. مادي هر هغه شــی دی چې د انســان شعور څخه مستقل او له هغه پرته وجــود لري پداســې حال کې چې ایده اي د شــعور له لارې حیــات پیداکوي. بالاخره په مارکســیزم کې کله چې خبره د «عیني واقعیت» منځ ته راځي منظور هر هغه شــی دی چې د انســان شــعور څخه مســتقل په خارج کې وجود لري. دغه اصطلاح مادي نړۍ ســره مترادف ده. ســربیره پر دې «ریل» او «عیني» د یو واحد مضمون درلودونکي ندي، «ریل» مخکې تر «عیني» د فرد شــعور هم په خوا کې نیسي.

۳ ـ اسلامي ریالیستان هر ځل دغه کرغېړنه او ناموزونه نغمه راپورته کوي چې «ګېډه او هغه څه چې ګېډې سره تړاو لري هغه د (انسان) لپاره اهمیت لري» اقتصاد ورله ارزښت لري «د دې لپاره چې حیوان دی»(«مارکس و مارکسیزم»، دریم دفتر، ۳۰مخ)ته به وایی د دې خلکو لپاره په هر تقدیر لکه هر انسان چې حیوان دی، ګېډه او هغی پورې تړلي ارګانونه ورله هیڅ اهمیت نلري. آیا دغه خلک پرته له دې چې لږ تر لږه وخوره او مه مره (قوت لایموت) د خپلې ګېډې په کڅوړه کې واچوي د دې وس لري چې قلم او ژبه یې په حرکت راولي او په ټوله کې ووایی چې «اقتصاد خره سره تړاو لري» آیا د دې وس لري چې په ساعتونو د پرګنو د دوکه کولو لپاره اپلتې، اوتې بوتې او روضه خواني وکړي؟ د هر ډول فعالیت لپاره که بدني دی، فکري یا ژبني دی تر هر څه لمړی باید ژوندي اووسو او د ژوندي پاتې کېدو لپاره باید خوراک وکړو. تغذیه او خوراک د انسان هغه فونکسیون دی چې نور فونکسیونونه هغه پورې تړلي دي، خوړل حیواني غریزه ده دا یو حقیقت دی خو که انسان ونه خوري مړ کېږي او خوسا کېږي، انسان چې نه خوري زیات نه پاتې کېږي او د ګور غاړې ته روانیږي. دا انکار نه منونکې واقعیت دی. ولې له سپکاوي ډکې کرغېړنې خبرې وکړو؟. مارکسیستانو روښانه کړیده چې هغوی د روحانیونو برخلاف د ګېډې بندګان ندي. خو دا په دې مانا نده چې انسان نباید وخوري، نباید و څکي، نباید جامې په تن کړي، نباید سرپناه ولري باید د دې ټولو برابرولو لپاره تولید وکړي. دغه شعار چې «ګېډې او هغه څه چې ګېډې سره تړاو لري اهمیت مه ورکوئ» یواځې دخلکو دوکه کول دي، په فقر او لوږې د انسان محکومول دي، د بې رحمه کار فرمآیانو لاس ته د کارګرانو او زیارکښانو سپارل دي، کارګرانو او زیارکښانو ته بلنه ده چې د کار فرمآیانو د ظلم او تېر

غمي په وړاندې مبارزې څخه لاس واخلي. له ټولو ناوړه دا چې دغه شعار د یو دوکه مار، د یو پند ورکوونکي واعظ خبرې دي، د داسې کسانو شعاردی چې له ګیډې پرته د بل څه په اړه فکر نه کوي. د میلمستیا او ښادیګانو په بنډارونو کې لاس او پښــې نه پیژني. په همدې درغلیو کې ده چې د اســلام پیشوآیان د زبیښاکګرو، زرلرونکو او زورواکو مرستې ته دانګي.

۴ـ د پراتیک په اړه د مارکس مشــهور تز په یادراوړو: «فیلســوفان یوائحي د نړۍ په تفسیر او بیان په وخت شوی، خو خبره د هغه د بدلون په سر ده» دغه تــز مارکس په ۱۸۴۵ کال د خپلــو فعالیتونو په پیلکې د فویرباخلیکنې څخه د نیوکې په توګه لیکلی دی. له دې کبله د مارکس پاملرنه «پراکســیس» ته د خپل کار په منځ کې شویده نه دکار په وروستیو وختونو کې.

۵ ـ د علومو پرمختګ په ځانګړې توګه د وروســتنیو لســیزو علمي لاســته واوړنو او د هغوی پراختیا د نړۍ عمر پرله پسې په شا تمبولیدي. په ۱۷ پیړۍ کې انګلیســي اسقف اشــر Ussher د خپلې محاســبې له مخې دغه نتیجه تر لاسه کړې چې نړۍ له میلاد څخه ۴۰۰۴ کلونه وړاندې پنځول شویدی. روڼ آندو، فیلســوفانو همدارنګه ژوندپیژاندو (زیست شناســان) او مځکه پیژاندو دغه رقم شاته وتمباوه. په ۱۷۴۹ کال کې فرانسوي طبیعي پوه بوفن په لومړي ځــل د مځکې عمرحســاب کړ اوهغه یې تــر اویــا زره(۷۰۰۰۰)کلونو زیات اټکل کړ. وروســته په ځینو ناخپاره شــوو یاد داشــتونو کې تر پنځه ســوه زره (۵۰۰۰۰۰) کلونو پورته کړ. په ۱۷۵۵ کال کله چې د المان مشــهور فیلسوف کانت د ځمکې د پیدایښــت خبرې کوي د ځمکــې عمر میلیونونو کلونو حتی ســلګونو میلیونه کلونو ته رســوي. دغه ارقام له هغو سره چې نن ورځ د کیهان پیژانــدو له څېړنو تر لاســه شــوي په مطلق ډول د پرتله کېــدو وړ ندي. په دې

اساس د عالم د پیدایښت نوې تئوري«د سترې چاودنې» تئوري له مخې اوسنی نړۍ له ۱۶ څخه تر ۲۰ میلیارد کلونو پخوا د کوټه شـوو شـیانو د چاودنې له املـه منـځ ته راغلی چې پرله پسـې پراختیا مومي. پـه دې ډول د نړۍ عمر له څلور زره کلونو څخه شـل (۲۰) میلیارد کلونو ته په شـا وتمبول شـو. هیر مو نشـي چې دغه وروسـتني رقم لا تر اوسـه د نړۍ عمر په لاس نه راکوي بلکې دا د «سـترې چاودنې» او د اوسـني زمان تر منځ زماني واټن دی. مثل شـویده کوټه شوي او متراکم غبارچې چاودنې سره مخامخ شول څه وخت او څه بڼه درلـوده مالومه نده خو بـاوري خبره داده هر څومره چې د نړۍ لرغونتیا ته پام واړوو د هغه لپاره پیل او بنسـټ ټاکلی نشـو چې دا په خپله د دې ماتریالیستي حکم پیاوړتیا په ګوته کوي چې نړۍ ازلي دی او د هغه لپاره آغاز او پیل نشـته تر ټولو جالبه داده چې نن ورځ کیهان پیژندونکو د هسته اي فزیک د تئوریګانو په مرسـته او د نوې کیهان پیژندنې لاسـته راوړنو د نـړۍ د ډیر لرې راتلونکې لپاره فرضیې په لاس راکړي البته داسـې فرضیې چې د دوه وروسـتیو لسـیزو د اکتشـافاتو په بنسـټ جوړې شـویدي. کال لس په طاقت د سلو ۱۰۰ (۱۰) چې په ډیرې سـختي تصور کې ځاییږي. آیا دا په خپله د مارکسیست فلسفې د حکم په تایید کې نده چې نړۍ ابدي دی او دهغه لپاره د پای تصور نه کیږي؟ د عالـم دلایتناهـي توب په هکله هم وضع پـه همدې ډول ده. که په نږدې تیر وخـت کې سـتوري پیژندل شـوی وو چې یو یا څو نـوري کلونه یې له ځمکې څخه واټن درلود، نن ورځ تر ټولو ډیرلرې ستوري پیژندل شوي چې له ځمکې څخـه پـه ۱۶ میلیارد نوري کلونه واټن لري یعنې ۲۱ (۱۰ x ۱۶)کیلومتر او دا په یقین سـره د نړۍ پای ندی. جالبه ده د مادې ازلي توب او دهغې حرکت یا په بله خبره د مادي نړۍ ازلي توب په «اصول فلسفه و روش ریالیزم» کې تایید

شوی دی. داسې نه برېښي چې د دې اثر لیکونکي د دا رنګه نیت ولري چې د مارکسیست فلسفې په تایید خبرې وکړي خو په هر تقدیر د هغوی له قلم څخه دا ډول پونه بهر څڅیدلي ده. په دریم ټوک، ۲۰۷ مخ کې داسې لولو: «هیڅکله نشـو ویلای یوه زمانه وه چې زمان نه وه او بیا وروسـته زمان پیدا شـو یا یوه ورځ وه چې ورځ نه وه او بیا وروسته ورځ پیدا شوه.» او دا په دې مانا ده چې زمـان پیـل او مبدا نلري او ازلي دی. د دې عبارت په څنګ کې راغلي «زمان د مادې د عمومي حرکت معلول دی» هغه نتیجه چې له دې څخه تر لاس کېږي پـه دې ډول ده چـې د «مادې عمومي حرکت» یا مـاده او د هغې حرکت یا په بله خبره مادي نړۍ لکه د زمان په شـان پیل او مبدا نلري او ازلي دی. آیا دغه نتیجه اخیسـتنه چې له ناچارې له دغو عبارتونو څخه تر لاسه کېږي د پنځونې نکل او کیسه تر پوښتنې لاندې نه راولي؟ او آیا دغه نتیجه واقعاً د دوه آیت الله ګانو د منلو وړ کیدای شي؟

۶ ـ د سبحاني په نوم یو «استاد»، د فلسفې د اساسي مسولې (د ایده اې او مادې تر منځ اړیکه) د طرحې په څرنګوالي مارکسیستان په خیانت تورن کوي. اوس ولې د یوې فلسفي مسولې طرح، په هرې بڼه چې وي ـ او فلسفي مسایل چـې هر فیلسـوف په ځانګړې بڼه مطرح کړیدي ـ خیانـت دی مالومه نده چې دغه خیانت د چا دی او څه شـی دی بیا هم مالومه نده. خو ښـکاره خبره دا ده د مسـولې د بڼې هغه طرحه چې مارکسیزم وړاندې کړې د ریالیزم له مخ څخه د ریا او ټګۍ پرده لرې کوي او د ریالیزم د پردې تر شا ایده آلیزم بهٔ ګوته کوي. په دې ډول د مارکسیستانو له لوري د فلسفې د اساسي مسولې طرح «استاد» ته د منلو وړ نده، ځکه د مسولې طرح په دې بڼه «هر بې خبره کس له دغه عنوان سره د لومړي ځل مخامخ کیدو په صورت کې حق ماتریالیستانو ته ورکوي او

مقابل لوری باطل بولي» له ناکامه داهم د مارکسیستانو یوه درغلي او ټکماري ده! او زیاتوي: «مارکسیستان یاده شوې مسئله به لاندې بڼه مطرح کوي: «آیا عین (ماده) له ذهن (خدای او ماوراء طبیعت) څخه مقدم دی او که ذهن مقدم دی تر عین څخه؟ که مسئله په دې ډول مطرح شي په قطعي توګه لومړنی بڼه د تصدیق وړ دی او دویمه بڼه د مطرح کولو وړ ندی پاتې لا دا چې تصدیق شي ځکه هر ناوار ده سړی ــ پاتې لا وارد سړی پوهیږي چې عین پر ذهن مقدم دی» څرګندیږي چې د مارکسیستانو له خوا د فلسفې اساسي طرح په دې علت خیانت دی چې د ټولو لپاره د منلو وړ ده. او د «استاد» د منلو وړ هم ده. لوستونکې هم هرومرو توجه لري چې مارکسیستان له ذهن، درک، شعور او د انسان شناخت څخه اراده کوي نه له «خدای او ماوراء طبیعت» څخه چې ډېر لږ شناخت هم له هغه څخه نلري، هیڅوک له هغی ډلې «استاد» هم شناخت نلري. «استاد» د فلسفې د اساسي مسولې طرح چې د مارکسیستانو له خوا مطرح شوې ناسمه بولي او له بده مرغه همدغه تیروتنه د هغه په ژبه پای ته رسیدلې ده ځکه خپله «استاد» چې البته «وارد سړی» دی د «خدای او ماوراء طبیعت» ځینې د مادې د تقدم په منلو سره په لویی او نه بخښونکې ګناه اخته شویدی له ریالیزم څخه د ماتریالیزم په لمن کې کښیوتی دی. د مادی تقدم په «خدای او ماوراء طبیعت» کیدای شي په دې مانا وي چې «خدای او ماوراء طبیعت» مادي دي یا په دې مانا چې «خدای او ماوراء طبیعت» د انسان د مغز او ذهن جوړجاړی دی که څه هم حقیقت سره بشپړ سمون لري خو په یقین سره د «استاد» لپاره د منلو وړ نده. ښه ده اوس چې مسئله په پورتنۍ بڼه مطرح شوې «خیانت» دی نو سمه طرحه څه ډول ده؟ «استاد» یې توضیح کوي: «د مسولې ستونزه په دې ځای کې ده چې په دې بڼه د مسولې طرحه او بحث کاملاً

دوکــه او غــداري ده ځکه چــې خدای او ماوراء طبیعــت د الهي له نظره ذهني ندي بلکې د نړۍ په شــان، ماده خارجي عینیت لري. کوم شــی چې شــته هر واقعیت د خپل شناخت لپاره ځانګړي وسایل لري: ماده د حس او تجربې په واسطه او ماوراء طبیعت د عقلي دلایلو او فلسفې له لارې پیژندل کیږي او که ماوراء طبیعت د حســي ابزارو په وســیله نه پیژندل کیږي هغه د دې دلیل نشي کېدای چې په بهر کې عینیت نلري. خو پداســې حال کې چې ریالیزم د دواړو نړۍ‌ونو په عینیت او واقعیت باور لري او د دواړو لپاره د ذهن له محیط څخه بهر وجود او هستي باندې باورمند دي خو د «مابعد طبیعت» د وجود درجه د مــادي نړۍ او طبیعــت لپاره اصل او علت پیژني، ماده او انرژي دهغه معلول» پــه دې ډولد «اســتاد»ریالیزم واقعیت له ذهن څخه بهــر مني او هغه نه یواځې پــه طبیعت پــه «مابعد طبیعت» هم ګڼوي او نتیجه اخلي هغه فلســفي ګرایش چې د نړۍ (طبیعت او ماوراء طبیعت) په عینیت باور لري نشو کولی ایدآلیزم ونومول شي. «که څوک له ذهن څخه بهر په یو واقعیت هم باوري شي د هغه ایدآلیست نومول خیانت دی». «د علمي مارکسیزم ډېر ستر خیانت (او بیا هم خیانــت، او دا ځــل د هغه علمي ډوله خیانت!!) داســې تور دی چې هغه ته د خپلو مخالفو رقیبانو پام را اړوي»د ویلو ده چې «استاد» خپله د «فولکېه پول» څخه داسې عبارتونه نقلوي چې په ښکاره د هغه د دې نظر خلاف دي او هغه ته یې پام ندی کړی: «د ســقراط د زمانې ایده الیســتان او وروســته تر هغه له ذهن نه بهر واقعیتونو باندې منکر نه وو» دا په دې مانا ده چې ایده الیزم کولی شي له ذهن څخه بهر واقعیتونه ومني او «د مارکسیزم ډېر ستر علمي خیانت» په دې کې دی چې حقیقت یې له پردې څخه بیرون کړیدی. وروســته تر هغې «اســتاد» پــه دې بــاور دی چې ریالیزم دغه پوښــتنې ته چې طبیعــت او مابعد

طبیعت (دهغه په وینا «مجرد» او له مادې څخه سینګار شوي یعنې غیر مادي دي) کــوم یــو د بل پنځونکــې دی صریح ځواب ورکــوي: «د الهي په نړۍلید کې ماده او پرهغې ټول حاکم شؤن یو غوره او برتر وجود، عقل او لوړ شعور او بــې پایــه علم او قدرت پورې تړلي دي» «اســتاد» په بل ځای کې لیکي چې ریالیزم «پداســې حال کې چې په عینیت او واقعیت د دواړو نړۍو باور لري او د دواړو لپــاره د ذهــن له محیط څخه بهر وجود او هســتي مني خو د درجې له پلوه د «ما بعد طبیعت» وجودد مادي نړۍ او طبیعت اصل او علت پیژني ماده او انرژي د هغې معلول»«مابعد طبیعت» چې «مجرد او له مادې څخه سینګار شوي یعنې غیر مادي دی» هماغه «عقل او لوړ شعور او بې پایه علم او قدرت دی» چې د مادي نړۍ پنځونکې دی. عقل او شعور ذهني مقولات دي، داسې مقولات چې انســان د شــناخت په بهیر کې پنځولي دي. او دا چې هغوی لره لکــه «برتــر»، «ډېر لوړ» او «بې پایه» صفتونه زیاتوي په خپله د انســان د ذهن جوړ شوي مفاهیم دي او دهغوې په ذهني توب کې کوم بدلون نه راځي، نتیجه دا شــوه چې مادي نړۍ د ذهن پنځونکې دی او «اســتاد» چې په پیل کې ذهن (عقــل، شــعور او ادراک او...) د عین یعنې د طبیعــت پنځونه پیژانده، په دې بیان سره عین د ذهن پنځونه شمیري او د مادي نړۍ عینیت تر پوښتنې لاندې راولي.«اســتاد» لکه چې مخکې وویل شــول «هر واقعیت د خپل ځان لپاره د شناخت خاص وسایل لري». «ماوراء طبیعت د عقلي اوفلسفي دلایلو له لارې پیژندل کیږي». خو کله چې خپل شناخت له «ماوراء طبیعت» څخه را وړاندې کوي، اړینه نه بولي چې هغه منطقي او فلســفي دلایلو ســره یوځای کړي او نه یــې مالومــوي چې د «ماوراء طبیعت» د وجود لپــاره کوم دلیل وړاندې کولای شــو. په کوم منطقي یا فلســفي دلیل «ماوراء طبیعت غیر مادي ســینګار شوی

دی»؟. واقعاً هم نشو کولی دا ډول دلایل وړاندې کړو.

۷ ـ مارکسیزم سره په مبارزه کې زیاتره د انګلس پدغې لیکنې استناد کوي چې مارکس او انګلس ګویا د ټولنې په تکامل کې د افکارو او ایدئولوژي نقش څخه بی خبره پاتې شوي. خامنه اي تر هغه ځایه وړاندې ځي چې حتی د دې لیکنې مفاد په مارکسیزم کې له سره کتنه حساب کړی ده «تجدید نظر طلبي از مارکس تا مائو». د دې لیکنې کښه په دې ډول ده چې نه مارکس د روبنایی عواملو اغیزه د تاریخ په بهیر کې له پامه غورځولې او نه انګلس. منتها هغوی په اخرین تحلیل کې اقتصادي عوامل ټاکونکي پيژندلیدي. دا دی د هغه لیک یوه برخه: «.... د تاریخ مادي درک له مخې په تاریخ کې ټاکونکې عامل، په اخرین تحلیل کېتولید او بیا تولید واقعي ژوندون دی. له دې څخه زیات نه مارکس او نه ما، څه ویلي دي. اوس که څوک دغه مطلب تر هغه ځایه پيچلی کوي چې اقتصادي عامل یواځینیټاکونکې عامل دی دغه عبارت په سختي سره په ترینګلی او مجرد عبارت اړوي چې ګویا هیڅ شی نشته. اقتصادي وضع زیر بنا ده، خو مختلف عوامل روبنا ـ د طبقاتي مبارزې سیاسی ستونزې او د هغوی پایلې... حقوقي ستونزې او حتی د دې ټولو واقعي مبارزو غبرګون د ګډونوالو په مغزو کې، سیاسی، حقوقي، فلسفي تئوریګانې، مذهبي نړۍلید او د هغوی تکامل د دګمي سیستمونو په لور، خپله اغیزه د تاریخي مبارزو په بهیر په ځای پریږدي او ډېرو برخو کې په زیاته کچه د هغوی شکل او بڼه ټاکي. د دې ټولو عواملو متقابله اغیزه چې په پایله کې د بې پایه تصادفونو له لارې... اقتصادي حرکت د یو ضروري عامل په توګه خپله لار پرانیزي... «موږ خپله تاریخ جوړوو خو لمړی د یو شمیر ټاکلو شرایطو او مقدماتو په منځ کې با لاخره اقتصادي شرایط ټاکونکي دي. خو سیاسي شرایط او داسې

نور، لیوني کونکي سنتونه د انسان په مغز کې لوبې کوي که څه هم دا ټاکونکي نقش ندی» (لندن۲۱ـ ۲۲ سپتامبر، ۱۸۹۰)مائو په ځینو مواردو کې روبنا ټاکونکې شمیرلې ده. په روبنا او زیربنا کې تضاد «هغسې چې روبنا (سیاست، فرهنګ، او نور) د اقتصادي زیربنا د تکامل مخه ونیسي هغه وخت سیاسی او فرهنګي تحولات ټاکونکې نقش پیدا کوي»(په څلور ټوکو اثاروکې، لمړی ټوک، ۵۰۹مخ)

۸ ـ د مغز زیاتوالی یا کموالی د شعور په زیاتوالي یا کموالي دلالت نکوي. ستر انګلیسي شاعر لرد بایرون د اناتول فرانس د مغز دوه برابره مغز درلود (۱۱۰۰ ـــ ۱۰۰۰ او ۲۲۳۰ ګرام) او د عادي افرادو مغز د ۱۳۰۰ ګرام په شاوخوا څرخي.

۹ ـ په ایران کې د ریالیزم مکتب لارویان په دې آند دي چې د انسان جوهر اندیشه دی نه کار. د دې تصدیق تر لیرد وروسته سمدستي پرته له ځنډه مجبوریږي اعتراف وکړي چې: «انسان د کار او ممار پواسطه بهرني نړۍ سره د خپلو خبرتیاؤ مواد له بیروني نړۍ څخه ترلاسه کوي تر څو ذهن له دغه لمړنیو موادو څخه غني نشي د هیڅ ډول شناخت لپاره موکه نه پیدا کوي»(ته به وایی د دغو موادو لاس ته راوړنه لا تر اوسه شناخت ندی!) «د دغو موادو تر راټولولو وروسته، ذهن متقابلاً په دغو موادو په مختلفو بڼو لکه «تعمیم»، «انتزاع»، «استدلال» عمل کوي او د صحیح شناخت لپاره زمینه برابروي.»د دوی لپاره شناخت یواځې په تعقلي مرحلې کې ځای لري او د شناخت حسي مرحله په پام کې نه نیسي. آیا کله چې د دایرې انځور زموږ په مغز کې انعکاس پیدا کوي له دغې دایرې څخه شناخت نه تر لاسه کیږي ځکه چې په دې منځ کې تعمیم، استدلال او انتزاع نشته. کله چې انسان پوره لمرویني د هغه رڼا او

ګرمي احساسـوي پرته له شکه لمر څخه شناخت لري پرته له دې چې تعميم، انتزاع يا استدلال صورت ونيسي. رياليستان دغه حسي شناخت ته شناخت نه وايي او نه غواړي ومني چې د شـناخت پروسـه د دوه مرحلو لرونکې ده حسي مرحله او تعقلي مرحله او دغه وروستی شناخت که هر څومره انتزاعي، مستقل او له عيني واقعيت څخه جلا بڼه ولري بيا هم منشاء د هغه واقعيت بهرنی دی. که له خارجي نړۍ څخه پرته انتزاع، تعميم او استدلال صورت نه نيسي او په پايله کې شناخت لاس ته نه راځي او انديشه منځ ته نه راځي څرنګه کولی شو ادعـا وکړو چې انديشـه تر کاره وړاندې دی؟ عجيبـه دا ده له پورتني عبارت څخه دغه نتيجه اخيسـتل کيږي چې: «کار د اندیښنې (فکر) منشاء او په ورته وخت کې اندیښـنه د کار منشـاء دی». په واقع کې له هغه وړاندې شـوو ويناؤ څخه هم کومه نتيجه نه اخيسـتل کيږي پرته له دې چې «کار د اندیښنې منشاء دی» په دې صورت کې کوم شـی چې په دې حکم زيات شوی «په ورته وخت کې اندیښـنه د کار منشـاء ده»، يواځې د لومړي حکم د تيرايستلو لپاره ده. څه ډول شـونې ده دوه شـيان په متقابله توګه يو د بل منشـاء اوسي؟ آيا کولی شو ووايو د فصلونو منشـاء د لمر په چاپير د ځمکې تاويدل دي او په ورته وخت کې د ځمکې تاويدل د لمر په چاپير، د څلورګونو فصلونو منشاء دی؟ څرنګه ممکنه ده چې د فلزاتو د انبسـاط منشـاءحرارت دی او د حرارت منشـاء د د فلزاتو انبسـاط وي؟ انسـان له طبيعت څخه راپورته شوی دی نو آيا د طبيعت منشـاء انسـان دی؟ او داسـې نور. په نوليزه توګه که A د Bمنشاء دی بيا نو B نشـي کولی چې د A منشـاء وګرځي. البته دا په دې مانا ندی اندیښـنه چې له کار څخه منشـاء اخلي په کار اغيزه نه کوي اوهغه مخ په وړاندې نه شـړي. د همدې مطلب په لړ کې د «اثبات» لپاره د اندیښـنې تقدم په کار، رياليستان بيا

هم په دې «منطقي» اســتدلال منګولې خبنوي، همیشه په هغه ځای کې چې د دوه شــیانو متقابلې اړیکې «ایجابي» او«ایجادي» دي، له بل پلوه «اعدادي» او «امکاني»، همیشه تقدم د ایجابي او ایجادي په خوا دی، په «پایله کې» دا چې انسان د کار ایجابي او ایجادي علت دی او د انسان کار «اعدادي» او «امکاني» علت، نو انســان پر کار مقدم دی نه کار پر انســان. په بل عبارت هر علت له ناچارې تر شا معلول لري او پر هغه مقدم دی. انسان د کار علت دی. نوځکه په کار مقدم دی. خو د دې ډول نتیجې اخیستنې لپاره دغه پیچلي او بې بنسټه او نا مفهومه اســتدلال ته اړتیا نشــته. ښکاره ده که انسان نه وي کار صورت نه نیسي او دا دومره منل شویده چې استدلال ته یې اړتیا نشته. خو اساساً بحث د اندیښنې په سر د کار تقدم دی او نه د انسان تقدم په کار. که دا سمه ده چې «انسان بهر نې نړۍ سره د کار او ممارست په واسطه خپل اطلاعاتي مواد بهر نې نړۍ څخه تر لاســه کوي تر څو ذهن له دغه اولني موادو څخه غني نشــي د هیڅ ډول شناخت موکه پیدا کولی نشي»، هغه څه چې ایجابي او ایجادي دي هماغه بهرنې نړۍ ســره کار او ممارســت دی او په پایله کې د کار او اندیښــنې تــر منځ هغه څه چې ایجابي او ایجادي دی کار دی نه اندیښــنه. کله چې اولیه انســان وینــي کومه ډبره یې چې لاس کې نیولــی یا هغه ډبره چې څنډه یې تیره اوغوڅوونکېده د حیواناتو د ښــکار لپاره مناســبه ده، دغه اندیښــنه په هغه کې پیدا کېږي چې ډبره وتوږي او پداسې بڼه یې واړوي چې په ښه توګه د استفادې وړ وګرځــي او پــه دې کار لاس هــم پورې کوي. د کار په لړ کــې نوې او تازه اندیښــنې په انســان کې ټوکېږي چې وار په وار د تولید نوي وســایلو ته تکامل ورکوي او انسان طبیعت سره په مبارزه کې سمبال او پیاوړی کوي. کوم تمدن چې نن ورځ زموږ په وړاندې دی د همدې کار او اندیښنې متقابل اغیز او ثمره

دی. د اولني انسان په هکله د انتزاع او استدلال خبره بې ځایه او بې ګټې ده. ته به وایی له هغی ورځې چې انسان د وجود ډګر ته راغی تعمیم او انتزاع او استدلال ته یې پام کاوه. البته انسان د خپل مغزي جوړښت له لارې د تعمیم او استدلال وړتیا لري. خو دغه کړنې باید طبیعت او د هغه شیانو سره په اوږدو پړاونو کې سروکار ولري او هغو ته د خپل تولیدي فعالیتونو په لړ کې بدلون ورکړي تر څو په تعمیم او انتزاع او استدلال لاس پورې کړي. خو د اسلامي ریالیستانو لید د بشرد ثبت شوي تاریخ له حد او برید څخه وړاندې نه ځي د همدې علت له مخې په چټې انګیرنو لتاړ دي چې ګویا بشر همیشه له منطقي لارو چارو ګټه اخیستې ده. د ریالیزم د مکتب لارویانو په آند، ریالیزم«د کار او اندیښنې په متقابلې اغیزې قائل دي» او دغه حکم د ماتریالیزم ډیالکټیک د رد لپاره راوړي چې ګویا د کار او اندیښنې په متقابلې اغیزې باوري ندي. کله چې هغوی د مارکسیست ډیالکټیک څخه خبرې کوي د شیانو او پدیدو متقابل اړیکي د دې ډیالکټیک له اصولو څخه شمیري خو کله چې په هر ځای کې لازمه شي له هغی تولکې په همدې بحث کې، د شیانو او پدیدو د اغیزې اصل د مارکسیست ماتریالیزم په متقابل لوري کې ځای ورکوي. ډاکټر شریعتي په دې آند دی چې مارکسیزم د فکر او مادې متقابله اغیزه نفې کوي، د هغه ریالیست ملګري هم په مارکسیزم همدغه تور لګوي چې د کار او اندیښنې په متقابلې اغیزې باور نلري. دغه اسناد د ناپوهي له کبله دي یا د غرض له مخې؟ پرته له شکه ناپوهي او غرض دواړه په کار کې دي. (پام وکړئ د آیت الله مطهري د«جامعه او تاریخ»اثرته، ۸۷ ــ۸۴ مخونه)

۱۰ ـ د خدای اراده یا د مادي طبیعت جبر؟ آیا خدایی اراده هماغه د مادي طبیعت جبر دی؟ البته داسې نده ځکه خدایی اراده «دغه ناخود اګاه مصالح»

د يوې ټاکلې موخې په لور شـړل کيږي په داسې حال کې چې د طبيعت مادي جبر هغه تحولات چې په موجوداتو کې د عيني قوانينو مطابق منځ ته راځي په مطلق ډول کومه موخه نه پلټي. بالاخره مالومه نده چې دغه مصالح، د وړانده جبر په لاس کې مجبوره دي يا د آګاه ارادې په لاس کې!

۱۱ ـ لـه انسـان څخـه دغه تعريف په هيـڅ معيار جوړ نه راځـي. بالاخره څوک چې په دوه پښـو په لار ځي، د لاس ورغوی او تندی يې ويښـتان ونلري د شـعور، ارادې او موخې درلودونکې وي يعنې انسـان دی، هيڅ داسې انسان پيدا کوي نشـو چې ايـده آل ونلري او هغه ته د رسـيدلو لپاره هڅه ونکړي. د ځينو ايده آل مال وي د ځينو کمال، د ځينو جمال، يوه ډله د نفسانياتو انديښنه کوي او يو شـمير پت او مقام ته او داسې نور، د ډاکټر شـريعتي په آند انسان هغـه کـس دی چې چاپيريال ته د خپل ايده آل له مخې بدلون ورکړي کوم ايده آل؟ په ټولنه کې هره اجتماعي طبقه ښايي وويلی شو هر فرد خپل ايده آل لري. دغه ايده آل کېدای شـي سـپيڅلی وي چې په دې صورت کې د هغې په خاطر مبارزه، انسـان ښـاغلی او لوړوي، خو کېدای شي نامقدس، کرغيړن او نفرت پاروونکي وي. د ډاکټر شـريعتي په باور که انسـان د همـدې ايده آل په خاطر هڅه کوي انسان دی او نور ناطق حيوانات دي!!

۱۲ ـ په ايران کې د مذهبي واک تر شـرايطو لاندې بيا دغه انديښـنه سربيره پر دې چې ډېې او بې ګټې ده له سره زور اخيستی، آيت الله ګيلاني د اسلامي جمهوري مشرانو څخه د کيهان ورځپاڼې په يوې مقاله کې وروسته تر هغې چې د نړۍ د اريانونکي نظام په هکله خبرې کوي او دا چې «د دې سـترپنځوونکي ماشين د غټو او کوچنيواجزاؤ هر جزء په دې منظور دلالت کوي» ليکي: «دغه ټولې بخښـنې او پيرزوينې (دعالم ټولې بخښـنې) د انسان لپاره دي او انسان د

هغو د خلقت موخه ده... د هغوی پیدا کېدل د انسان لپاره دی او که چېرې د هغوی د غایت خصلت انسان نه وی په یقین سره به د پیدایښت نقشه به په بله بڼـه وی». پنځونکي د «غیرت او اختصـاص غریزه» نارینه ته ډالۍ کړې د دې لپـاره چې:«جـوړه (جفت) یې مختص دهغه لپاره وي او د بل چا لاس پهٔ کې وهل شـوې نه وي چې پرته له دې نسـلونه یو بل څخه پرې کېږي او که داسې نه وای دغه پریکوڼ به د انساني معشیت بنسټ او د هغوی ټولنیز ژوند کاواکه کړی وه»!؟ یا للعجب! د شـلمې پیړۍ په وروسـتیو کې له دومره سترو لاسته راوړنو سره سره که دغه بیانونه دجهالت لوړه څوکه ندی نو څه دی؟

۱۳ ـ «ښاغلی علامه» اوس هم ونه لکه د ډبرې په شان د غیر زنده موجوداتو په ټولګې کې شمیري چې په رښتیا سره دغه جهالت هیښ کوونکې ده (اصول فلسفه و روش اسلامي)

۱۴ ـ نیوټن څخه مخکې کله چې به یو جسم د محرک په واسطه په حرکت لویده داسې فکر کېده چې د هغه جسم په منځ کې یو محرک ځای لري، داسې ځواک دی چې د خارجي محرک تر لرې کېدو وروسته حرکت ته دوام ورکوي او کله چې دغه ځواک مصرف کېږي جسم له حرکت څخه پاتې کېږي. او هغه جسـم چې هوا ته پورته کېږي او بیا کښـته پریوځي داسـې توضیح کاوه چې په لومړي سر کې دغه ځواک د جسم په وزن بری لري او جسم لوړ پورته الوځي خو ډېر ژر اړیکه معکوس کېږي او د جسـم وزنپه داخلي ځواک پیاوړی کېږي چې په دې صورت کې جسـم سـقوط کوي. د «ننوتلي ځواک» تئوري اصلاً د ارسـطو دی چـې د منځنیو پیړیو په ټولو پړاونو کـې باقي پاتې ده، نیوټن دغې تئوري ته د پای ټکې کېښـود. له دې سـره بیا هم اسـلامي ریالیزم هغې څخه لاس ندی اخیستی، اساساً اسلامي فلسفه سربیره په علمي پرمختګونو او حتی

د وروستۍ پيړۍ فلسفي حدودو څخه يو ګام هم وړاندې اخيستی ندی.

۱۵ ـ D ددوتريوم Deuterium، د هيدروجن درونډ ايزوتوپ دی چې اتمي وزن يې دوه (۲) دی.

۱۶ ـ په «اصول فلسفه و روش رياليزم» کې په دوه ماناګانو راغلی دی: له يو پلوه له ذهن څخه بهر د عيني واقعيت((Objective به مانا او له بل پلوه د اصالت په مانا ده. اوس هغه د ورته والي (همانندي) په ځای کاروي. په منطق او فلسفه کې کلمات بايد حد او رسم يې مشخص وي تر څو له هر ډول ارياټيا او پريشاني څخه ځان ساتل وشي. د «اصول فلسفه» ليکونکي دغه ټکو ته پام ندی کړی.

# د لیندۍ میاشت